## د کتاب پېژندنه

**د کتاب نوم :** **د يرغل پر وړاندې**

**ليکوال :** **مولوي عبدالهادي (مجاهد)**

**د چاپ کال :** ۱۳۹۵**هـ ش** (۲۰۱۶) **م**

**چاپوار:** **اول**

**دچاپ شمېر:** (۲۰۰۰) **ټوکه**

**د ترلاسه کولو درکونه :**

**د افغانستان او پښتونخوا ټولې مشهورې کتابخانې.**

# فهرست

# د دې ټولګې په اړه څوکرښې!

**عبدالرحیم ثاقب**

د "یرغل پر وړاندې" دا ټولګه د محترم مولوي عبدالهادي (مجاهد) د هغو مقالو مجموعه ده چې د صلیبي یرغلګرو په خلاف د جهادي مقاومت په جریان کې په ډېرو سختو شرائطو کې لیکل شوې دي.
د "یرغل پر وړاندې" اثر ټولې مقالې هره یوه د خپل وخت د جهادي احداثو یو ښه انعکاس، یو پرځای تحلیل او یو ژوندی تصویر دی چې درانه استاذ په ډېر دقت او غور او خورا امانت داري سره ورباندې قلم خوځولی او د پېښې هر اړخیزه ارزونه یې کړې. د یادې ټولګې په راټولولو کې د پېښو زماني تسلسل هم په داسې ډول په پام کې نیول شوی چې د **۱۵** کلن جهادي بهیر د مهمو او اساسي احداثو ډېره برخه یې احتواء کړې.
په لنډه کې ویلای شو چې د "یرغل پر وړاندې" تر لاس لاندې ټولګه هم د جهادي احداثو هینداره او هم د یرغلګرو د پوځي او فرهنګي جنایتونو رسوا کوونکې وسیله ده.
دلته هم د یرغلګرو په خلاف د پوځي مقاومت سنګرونه ستایل شوي او هم د هغوی په وړاندې ځوان نسل ته د فرهنګي او فکرې مقابلې تکتیکونه ورښودل شوي دي.
په دې مجموعه کې د یرغلګرو په خلاف مبارزه کوونکو مجاهدینو ته د دیني پوهاوي له لارې د جهاد او مبارزې شعور ورکړل شوی او د یرغلګرو اصلي ماهیت ورته بربنډ شوي دی.
د "یرغل پر وړاندې" په مجموعې کې د صلیبي یرغلګرو ټولې هغه دجالي دسیسې ښې افشاء شوې کومې چې دوئ په افغانستان کې د خپل وحشیانه یرغل د تبریر لپاره د ډیموکراسۍ، آزادۍ او بیا رغونې تر نامه لاندې پر لاره اچولې.

د "یرغل پر وړاندې" لیکوال د پخواني او اوسني جهاد د پېښو یو ژوندی تاریخ دی چې زمونږ د هېواد د تېرو دریو لسیزو د ټولو پوځي او سیاسي جریاناتو عیني شاهد پاتې شوی او له هغو څخه په تجربې اخیستو سره یې خپل معلومات له ځوان نسل سره د همدې لیکنو په وسیله شریك کړي دي.

د "یرغل پر وړاندې" اثر لیکوال یو له هغو جهادي لیکوالانو څخه دی چې د پوځي جهاد ترڅنګ یې د یرغلګرو په وړاندې د فرهنګي جهاد سنګر هم تود ساتلی ، په یرغلګرو یې د علم ، پوهې او بصیرت په رڼاکې اغیزناك ګوزارونه کړي او د فرهنګي جهاد په ساحه کې یې د ډېرو ځوانانو په روزلو سره د یادولو وړ خدمتونه کړي.

د "یرغل پر وړاندې" لیکوال ته په دې لاره کې د مزید توفیق غوښتنه کوم او له الله تعالی څخه غواړم چې زمونږ په ټولنه کې یې امثال زیات کړي.

والسلام

**عبدالرحیم ثاقب**

# "د یرغل پر وړاندې" کتاب یوه ځانګړې مبارزه

**لطف الله خیرخوا**

موږ د قضیې او دښمن په پېژندلو کې تل ستونزه لرلې. همدا د دې لامل ګرځېدلی چې موږ ډېر ځلې د دښمنانو د یر غلونو د واقع کېدلو په مخنیوي کې پاتې راغلي یو. او د یر غل له واقع کېدلو او د هغه په خلاف د اوږدو مقاومتونو له رامنځته کېدلو وروسته مو چې هر ځل دښمن په پوځي لحاظ مات کړی بیا هم تقریبا هر ځل موږ د هغه د فکري او سیاسي دسیسو پر وړانې ماتې خوړلې. د دې ټولو تکراري پېښو لامل یو دی، او هغه دا چې موږ په خپله قضیه په تمامه معنا هېڅکله نه یو پوه شوي.
د سوبې لومړی شرط دا دی، چې په مبارزه کې انسان په خپل فکر، کړنلارې، هدف او دښمن پوه شي. هله به مناسبه رویه او د لومړیتوبونو انتخاب رامنځته کیږي او کرار به د هدف خوا ته درومي. همدا پوهه مبارز انسان پر حالاتو، شرایطو او ظروفو حاکم ساتي او د خپل انتخاب حق ورکوي. که دا پوهه نه وه، نو حالات، شرایط او ظروف به ځان مسلطوي، بیا نو مبارز ته بویه، چې څه ډول رویه کاروي او څه ډول د حالاتو مقابله کوي؟
د"د پرغل پر وړاندې"کتاب د فکري مبارزې شهکاره نمونه ده او یو داسې کوښښ دی چې د روان یرغل په اړه دې بشپړ پوهاوی رامنځته شي. موږ کاش د استاد مجاهد په څېر شخصیتونه ډېر لرلی، چې تر شوني بریده ډېر پوهاوی رامنځته شوی وی، خو دا چې نه شته، ځای یې دا نیسي، چې د دې کتاب مفاهیم په ژوره مطالعه کړو، عقل او زړه ته یې وسپارو او تر نورو یې ورسوو.

په کتاب کې ډېرې خبرې د پام وړ دي، چې څو خبرې ترې زه د نمونې په توګه راوباسم :

**د يرغل ماهيت** :

د غرب او سيمې د استعماري او نيمه استعماري زورواکانو د مغالطو په پايله کې زموږ ډېر خلك د دې جګړې په ماهيت نه پوهيږي. څوك وايي دا مازې اقتصادي جګړه ده. څوك وايي دا د څو هېوادونو د نيابتي جګړو ميدان دی. څوك وايي ټول کار د امريکا دی او د خپلې سلطې د دوام لپاره يې ځان ته مصنوعي مقاومت پيدا کړی چې تر شونې بريده يې دلته قيام اوږد شي. اصل هدف يې چين او روسيه ده...
دغو خلکو کې شعوري خلك هم شته، چې د موضوع عمق ته رسيږي، مګر په لوی لاس د هغو خلکو د بې لارې کولو کوښښ کوي چې نه پوهيږي او يا د نورو په تقليد ځان يوې نتيجې ته رسوي. دغه شعوري ډله د دې کتاب د محتوی له نظره څو جنايات کوي او لارويان يې ورسره د هغو مرتکبين دي:
اول دا چې دوئ د دښمن عقيدوي او فکري هويت پټوي، او په دې کار پر هغه حکم باندې هم خاورې اړوي چې اسلامي شريعت يې ورته ټاکي.
دوهم دا چې د دې دښمن پر وړاندې د جهاد حکم کې شکونه پيدا کوي، ځکه چې دوئ د دښمن اصلي څېره پټه کړې او خلکو ته داسې ښيي چې ګوندې دا هغه صليبيان نه دي چې اسلام يې په اړه دا او هغه حکم کوي.
دريم جنايت يې دا دی، چې د دې خاورې مسلمان ملت له خپل رزمي تاريخ او اصيل فرهنګه شکوي. دې مسلمانانو چې هر مهال بهرنی دښمن په ځغاسته او مات مات له خپل کوره وېستلی، اوس يې په دې تېرباسي چې ګوندې دا جګړه درباندې بل چا تپلې. هغوی نه غواړي افغانستان ارام شي، پرمختګ وکړي او...

دا کتاب خپل خلك بېرته خپل تاریخ او ثقافت ته ورګرځوي، چې ګورئ دا تپونکي په هغه وخت کې نه ول چې تاسو دا ډول جګړې ګټلې. د دې تپونکو نوم لا نه و، چې تاسو ځان څه چې لانور ملتونه هم ګټل!
څلورم جنایت دا کوي، چې د دې مسلمانانو پر حافظه ملنډې وهي. دې مسلمانانو په نړدې تېر کې غزاګانې وګټلې، دښمنان یې مات کړل، مګر دوئ یې رزمي تاریخ اوس داسې تفسیروي چې ګوندې تاسې خو هېڅکله له دښمن سره جګړه نه ده کړې، او دا اوس مو چې څه روان کړي دي دا د ناپوهۍ له امله دي. دا دېرش کاله دا ولس بې علمه پاتې شوی، او دېته ورته نورې خبرې. دوئ کوښښ کوي چې د کفر د سلطې په دوران کې د شکلي ښوونې په ترویج دې له مسلمانانو هوتکي، ابدالي، غزنوي او د تېر جهاد پېرونه هېر کړي. دا ملت د یوه غبي او متهاك منځي ملت په توګه مخاطب کړي!!
پنځم جنایت یې دا دی چې د دې مسلمان ملت افتخارات او سرښندنې په ډېر مهارت بل چا ته منسوبوي. دغه خلك، چې د افغان دوستۍ په جامه کې د افغانانو اصلي دښمنان دي نه غواړي دا ملت خپل تاریخي تسلسل وساتي، نه غواړي دا ملت د خپل ثقافت اصول په ژوندي ډول مراعات کړي، ویې پالي او د عمل په میدان کې یې ترجمه کړي.
دا کتاب د روانې جګړې اصل ماهیت روښانوي، او له هغو څېرو پرده پورته کوي، چې دا جګړه بدله ښیي او پورتنې یاد شوي جنایتونه ترسره کوي.

**د یرغل کیفیت** :

په کتاب کې به ځای ځای تاسې ته "بله جګړه، فکري جګړه، د مفاهیمو جګړه، خاموشه جګړه" یا دې ته ورته ترکیبونه مخې ته درځي. استاد کوښښ کړی چې د جګړې کیفیت روښانه کړي او خپلو خلکو ته وښیي چې دا جګړه دومره په ساده کیفیت کې نه ده څه ډول یې ځینې خلك

تعبيروي، بلکې دا يو هر اړخيز يرغل دی او په يو وار زموږ تنه او روحيه دواړه له منځه وړي.
دا جګړه، چې ځومره مساحتي وسعت لري او ټوله اسلامي نړۍ يې لاندې کړې او هر ځای کې يې مسلمان په شکنجه کې نيولی، همدومره يې معنوي اړخونه هم ګڼ دي. همدومره تکتيکي تعدد لري. او هر اړخ او هر تکتيك يې ځانګړې توجه، دفاع او مقاومت غواړي.
دا کيفيت چې په دې کتاب کې په څه ډول روښانه شوی ښيي چې دا جګړه د تجزيې قابله نه ده. او د هغې په خلاف هم په حکم او هم د حکم په تعميل کې منظم او هراړخيز ستراتيژيك مقاومت ته ضرورت لري.
د کتاب محتوی په دې ډېر دلايل لري چې دا جګړه په مجموع کې د يوه فکر او يوې عقيدې له لوري اداره کېږي. په دې جګړه کې د دښمنانو تشکيلاتي توپير نه د هغوئ د ارزښتونو او اهدافو تغيير دی، او نه ورباندې دليل دی. د کتاب د دلايلو ساده خلاصه دا ده چې د دې جګړې د مقابل لوري مدير د هغه د ټولې ادارې مدير دی، نو ولې ورسره په رويه او حکم کې توپير پيدا کړی شي؟
هغه خلك، چې په همدې ډول ادارو کې کار کوي او ځان په تشکيلاتي توپير کې له جنايته پاك ګڼي، دا کتاب يې سر خلاصوي، چې څنګه پر يوه ښکاره وضعي فکر او فلسفي اصل خړوبه اداره په خپلو تشکيلاتو کې د خپل اساس اغېز ردولی شي؟
تاسې به کتاب کې ولولئ، چې غرب دلته په فکري برخه کې څه راوړي؟ همدغه فکر په ټوله اداره حاکم دی که نه؟ څه ډول خلك په کې استعماليږي؟ کومې لارې انتخابيږي؟ او دا هر څه بيا د کومو اهدافو لپاره کاريږي؟ که په ټوله اداره کې داسې کوم تشکيل وي، چې دې اهدافو ته کار نه کوي نو بيا خو سمه ده، او که نه نو د ځان د تېر ايستو هيڅ اړتيا نه شته.

## د دښمن کلتوري هویت

یو څوك یوازې په جغرافوي انتساب نه پېژندل کیږي، چې فلانی کومه محدوده کې زېږېدلی او ژبه یې څه ده؟ که عبارت مې غلط نه وي نو دا یوه شکلي پېژندنه ده. اصل پېژندنه دا ده، چې د هغه تاریخي ژور ته کوز شې، د هغه فکري رجحان او میلان راوسپړې، د هغه د خوځښتونو تر شا هڅاند فرهنګ مطالعه کړې، چې د دې فرهنګ او نظریې سرچینې کومې دي؟ نو ایله به دې د دښمن د پېژندو لار میندلې وي.

که دښمن په دې وپېژنو، چې هغه په خپله په تزویري ډول د ځان په اړه څه وایي؟ ملګري یې د هغه په اړه څه وایي؟ خادمان او مزدوران یې په اړه څه وایي؟ نو دا یوازې هغې لومې ته ځان وربرابرول دي چې دښمن د همداسې غافلو خلکو لپاره ایښې او همدا ډول نا بلدي ورکې رانیسي!

بیا هم مهمه دا ده چې د دښمن له عقیدې زېږېدلی فرهنګ مطالعه شي او وشنل شي، ځکه چې د یوې معلومې قضیې په اړه د هغه د تمایلاتو فکري او فرهنګي ارزونه تر نورو ټولو لارو چارو د هغه هویت ښه روښانوي.

دا کتاب په همدې بنسټ په روانه قضیه کې د مسلمانانو د دښمن اصل هویت څرګندوي. د فکر سرچینې یې دربښیي. د هغه د کار مېتود ته دې دروي. دکار وسایل یې در په ګوته کوي، د هغه د کار چورلیزونه برسېروي، د ترکیز نقاط یې مخې ته درږدي، تر ټولو مهم دا چې د دښمن کار او زیار په داسې بڼه درته ږدي چې د خپل غفلت انتها ته دې پام واوړي!

تاسې به په کتاب کې ولولئ چې د روانو جریاناتو ستره بهانه «دیموکراسي» څه شی دی؟ په دې کې به هغو نکتو ته ستاسې پام واوړي چې دا دیموکراسي څه ډول د «اسلام» بدیل ګڼل کیږي؟ شریعت په کومو دلایلو له ژونده ویستل کیږي؟

پدې مطالعه به مو د هغو خلکو په اړه هم ذهن خلاص شي چې ولې هغوی د اعتدال او سولې په نوم د دښمن رضاکار لښکریان دي. هغه منځلاري

چې هر حرکت، منډه او هڅه یې یوازې او یوازې دښمن حاکمیت ته مشروعیت ورکوي.
د کتاب په اړه دې څوك دا فکر نه کوي، چې ولې لیکوال د یو علمي څېړونکي په څېر بې طرفه نه دی. دا بې ځایه فکر دی، ځکه چې یو خو کتاب په یوه موضوع نه څرخي، بلکې د څوارلسو کلونو د بېلابېلو جریاناتو په اړه د مقالو ټولګه ده. دوهم دا چې لیکوال د قضیې سړی دی او لیکوال د میلیونونو مسلمانانو تر منځ یو هغه مسلمان دی چې روانو جریاناتو د ژوند پر داسې سختو مورګو درولی چې ممکن کوم رفاه پلوی یې یوازې په کیسه لوستو زاره چاودی شي.
لیکوال د هغه علمي منافق په څېر نه دی چې عقیده یې یوه وي، خو لیکي او وایي بل څه. دی چې څه وایي د یوه مؤمن په څېر پر هغه معتقد هم دی. لیکي یې، اوروي یې، بل ته یې رسوي او د یوه بلا همت په زور د منزل په لو ردرومي.

**لطف الله خیرخوا**

# د پیل خبرې

الحمدالله رب العلمین، والصلاة والسلام علی رسوله المرسل بالبلاغ المبین، الذي بلغ الرسالة، و أدّی الأمانة، و کشف الغمّة، و جاهد في الله حق جهاده، وعلی آله و صحبه الهداة المهدیین المجاهدین الذین رضي الله عنهم و رضوا عنه، و علی من اتّبعهم بإحسان إلی یوم الدین أجمعین.

په تېرې یوې نیمې پېړۍ کې غربي هېوادونو د اسلامي نړۍ ډېر هېوادونه او ولسونه تر خپل اثر لاندې راوستل، او په سیاسي، پوځي، اقتصادي، فکري، او فرهنګي لحاظ یې په ځان پورې وتړل.

غربیانو نه یوازې دا چې په اسلامي نړۍ کې پر خلکو د خپلې خوښې حکومتونه نظامونه، قوانین او احزاب ومنل، بلکې په ټول توان یې د هر هغه چا په خلاف هم د ژوند په ټولو ډګرونو کې خپلې هر اړخیزې جګړې او دښمنۍ ته دوام ورکړ چې په اسلامي نړۍ کې د دوئ د استعماري پلانونو او ظالمانه پالیسیو د پلي کېدو د مخنیوي په لاره کې فعالیت او مبارزه کوي او مسلمانان بېرته د اصیل اسلام غېږې ته ورګرځوي.

د ۲۰۰۱ میلادي کال د سپتمبر له یولسمې وروسته چې د امریکا په مشرۍ غربي ائتلاف افغانستان اشغال کړ نو دلته یې هم د افغانانو د تسخیرولو او په افغانستان کې د خپل اشغال د دائمي ساتلو په مقصد په بېلابېلو شکلونو کې خپلې پالیسۍ او پلانونه طرح او عملي کړل.

غربیانو د افغانانو د تابع کولو او په خپل ځان پورې د تړلوپاره ډول ډول پوځي، سیاسي، اجتماعي، تعلیمي، فکري او فرهنګي پروژې په ډېر مهارت سره پداسې ډول تر کار لاندې ونیولې چې له یوې خوا په افغانستان کې د غرب په ګټه یو هراړخیز تحول رامنځته کړي، او له بلې خوا دلته د غرب د پلانونو او خطرناکو سیاستونو په خلاف د خلکو احساسات او حساسیتونه هم راونه پاروي.

د غرب د پوځي يرغل پر وړاندې خو د افغانانو ځواب دا ځل هم د تل په څېر د پاڅون، جهاد او نه ستړي کېدونکي مسلح مقاومت په شکل کې مخې ته راغی، خو دا چې د دې يرغل ډېرو نورو اړخونو د ښکاره جګړې بڼه نه درلوده نو ډېرو خلکو په آسانه دا خبره نشوه درك کولی چې دلته نورې پټې فکري، فرهنګي، تعليمي، سياسي او رواني (روحي) جګړې هم روانې دي.

دا چې د دغه ډول ناپوځي جګړو په مقابل کې درېدل د علماوو، ليکوالو، دعوتګرو، او د فکر او نظر د خاوندانو کار وي، او د هغوئ مسؤوليت وي چې ولس د دښمن له پلانونو، عزائمو او پټو توطيو خبر کړي، او په خلکو کې له دښمن سره د مقابلې لپاره روحيه، انګيزه او معنوي توانايي پيدا کړي، نو له همدې امله د نورو علماوو، ليکوالو او د اسلامي فکر د سپاهيانو په کتار کې د درېدلو او د خپل انفرادي مسؤوليت د ادا کولو په مقصد ما هم د دې يرغل په مقابل کې خپل ولس او د جهادي صف ځوانانو ته په بېلابېلو وختونو کې د يو لړ فکري او تحليلي مقالو د ليکلو هڅه کړې چې د هغو له جملې څخه يوه برخه يې د (***فکري پوهنه***) د کتاب په شکل کې څو کاله مخکې افغان ولس ته وړاندې شوې او د الله تعالی په فضل هغه کتاب په پښتو او دري ژبو کې په تېرو څو کلونو کې په مکرر ډول په لسګونو زره نسخې چاپ او د دې مسلمان ولس له تاوده استقبال سره مخ شو.

دا دی اوس يوه بله مجموعه مضامين چې هغه هم د امريکايي اشغال په خلاف د مقاومت په سلسله کې ليکل شوي دي او د همدغه زماني مقطع د حالاتو او فکري ادبياتو څرګندوونه کوي تر بيا کتنې او ځينې اصلاحاتو وروسته يې مجموعه کې د (***د يرغل پر وړاندې***) د کتاب په شکل کې د لوستونکو مخې ته ږدم.

د دې کتاب مضامين د بېلابېلو سياسي، فکري او د افغانستان په روان وضعيت پورې د اړوندو موضوعاتو په اړه دي، خو د ټولو ترمنځ مشترکه نقطه د دې صليبي يرغل پر وړاندې د ولس په ځوانانو او لوستو خلکو کې د مقاومت د روحې رابيدارول او د دښمنانو پر توطيو او عزائمو د هغوئ خبرول دي. الله تعالی دې وکړي چې پدې هکله مې خپلو خلکو ته داسې څه ليکلي وي چې ما ورکې خپل ديني مسؤوليت اداء کړی وي او د آخرت لپاره مې توښه وګرځي، او خپلو خلکو ته مې د روانو جريانونو څو داسې زاويې روښانه کړي وي چې د هغوئ د ايمان ساتنې، آزادۍ پالنې او له اسلام سره د هغوئ د محکم شعوري تړاو وسيله وګرځي.

پدې کتاب کې به ځينې مقالې داسې هم وي چې په کوم خاص حالت او وضعيت پورې به تړاو لري، خو پدې کتاب کې يې د راوړلو اهميت پدې کې دي چې راتلونکو نسلونو ته دا ور معلومه شي چې پر افغانانو او افغانستان د امريکا د يرغل په وخت کې دلته څه تېرېدل؟ او د دې يرغل پر وړاندې د دې مسلمان ولس څه دريځ وو؟

د امريکا د اشغال په مقابل کې د قلم د پورته کولو تر څنګ ما ته الله تعالی د غږ د پورته کولو توفيق هم را په برخه کړ، چې پدې ډګر کې مې په بېلابېلو وختونوکې د هېواد له مجاهدينو، لوستو خلکو، او د فکر او فرهنګ له خاوندانو سره چې په هغو کې د پوهنتونونو، مدارسو، مکاتبو استاذان او محصلين هم شامل ول د فکري پوهاوي درسونه او مجالس درلودل.

د فکري پوهاوي په سلسله کې مې پر بېلابېلو هغو علمي او فکري موضوعاتو چې په موجود وضعيت او جهادي جريان پورې يې اړه درلوده او پر هغو باندې پوهېدل او پوهول د معاصر اسلامي دعوت له ضرورتونو ګڼل کېدل يوه سلسله درسونه درلودل چې له نيکه مرغه د هغو درسونو يوه برخه يې د ځينو مخلصو دوستانو او شاګردانو په همت په صوتي شکل

ثبت شوې او نشر شوي هم دي چې لاندې عنوانونه يې ځينې مهم موضوعات تشکيلوي:

۱ – استشراق او پر اسلامي نړۍ د هغه فکري تأثيرات.

۲ – استعمار، د استعمار تاريخ ، استعماري دولتونه، استعمار شوي دولتونه، د مستعمرينو ځايي ملګري اوځايناستي، او د مسلمانانو د ژوند پر بېلابېلو اړخونو د استعمار تأثيرات.

۳ – ويسټرنايزيشن ( داسلامي نړۍ غربي کول).

۴ – په اسلامي نړۍ کې د (شريعت) پر ځای د (وضعي قوانينو) د رائجولو اوږد او پراخ جريان.

۵ – ډيموکراسي.

۶ – سيکولريزم ( د دين او دولت بيلول) .

۷– نشنلزم.

۸ – تنصير (د غرب له لوري د انسانانو د نصراني کولو نړيوال حرکت).

۹ – صليبي جګړې.

۱۰ – د اسلامي امت د ذلت اسباب او عوامل .

۱۲ – د اسلامي نړۍ معاصره پېژندګلوي.

۱۳– فکري استعمار.

۱۴– فکري جګړه او د هغې ډولونه.

۱۵– پر اسلامي نړۍ د غربی ډوله تعليم اغېزې.

۱۶ – د اسلامي تعليم او تربيې اهميت او ورکې موجود مشکلات.

۱۷ – د افغانستان د اشغالولو ترشا د امريکا سياسي، اقتصادي، پوځي او فکري اهداف.

۱۸ – د مجاهدينو لپاره د نړۍ او نړيوالو د پېژندلوضرورت.

۱۹ – د مجاهدينو ديني، پوځي او ټولنيز مسؤوليتونه.

۲۰ – د زاړه او معاصر جاهليت پيژندل.

۲۱ – د اسلامي دعوت اهميت او ضرورت.

۲۲ - قرآن ښوونه.

۲۳ - پـه افغانسـتان کـې سياسـي او فکـري جريانونـه (اسـلامپالي، کمونستان او غرب پلوي) .

۲۴ - د غرب له نظره منځلاري اسلام او منځلاري مسلمانان.

۲۵- غرب ولي او څنګه د مسلمانانو ځوانان بې لارې کوي؟

۲۶ - په اسلامي عقيده کې د حاکميت تصور.

۲۷ - په افغانستان کې امريکايي اشغال او د قوانينو تبديلي.

۲۸ - د امريکـايي اشـغال د وخـت پـر اساسـي قـانون د شـرعي تبصـري تفصيلي درسونه.

۲۹- په افغانستان کې د امريکا د جګړې بېلابېل اړخونه .

۳۰- د ( معالم في الطريق) درسونه.

۳۱- د اسلامي فکر مشخصات.

۳۲ - د جهادي اعلام ( مېډيا ) اهميت، تأثير او وظائف.

۳۳- جهاد چيست؟

۳۴ - عقيدۀ ولاء وبراء.

۳۵- د معاصر کفر د ډولونو د پېژندلو د درسونو سلسله.

۳۶- کافران څنګه مسلمانان د قوت له عواملو محروموي؟

۳۷- ويژه گی های افغانها و افغانستان در جهاد .

۳۸- ولې جهاد کوو؟ څنګه جهاد وکړو؟ د چا په خلاف جهاد وکړو؟( د درسونو سلسله).

۳۹- غرب څنګه ځينې اسلامي جهتونه د خپلو اهدافو لپاره استعمالوي؟ او په لسګونو نور مهم موضوعات.

پـه پورتنيـو عنوانونـو کـې تقريبـا ۲۰۰ سـاعته صـوتي درسـونه دي چـې د ځوانانو د فکري پوهاوي په لاره کې به ان شاء الله تعالی بې فائـدي نـه وي، او پدې مقدمه کې يې يادونه ماتـه ځکـه ضروري ښـکاره شـوه چـې مفـاهيم

اوموضوعات یی د دې کتاب له محتوی سره قوي مناسبت لري، او ښایی په ډېرو مواردو کې د دې کتاب د مضامینو شرحه او متمم هم وګڼل شي.
پورتني صوتي درسونه د افغانستان په ټولو ولایاتو کې ترلاسه کېږي، او که په ځینی ځایونو کې موجود نه وي نو هیله ده چې د اسلامي فکر ځوانان به یې بېلابېلو ځایونو ته د رسولو همت وکړی. او دا هم د یادولو ده چې د پورتنیو درسونو له صوتي شکل څخه لیکلي متن ته پر را اړولو هم کار روان دی او په راتلونکي کې به ان شاء الله تعالی په کتابي شکل کې هم هېوادوالو ته وړاندې شي.
د دې کتاب په ځینې مضامینو کې د غربي یرغلګرو په خلاف د ستر اسلامي مقاومت ( د طالبانو د جهادي حرکت) په اړه څرګندونې او پر موجود وضعیت د هغه د تأثیراتو یادوونه هم شوې ده. پدې اړه زما خبرې د دغه حرکت د ترجمانۍ، تبریر او یا تردید په معنی نه دي، بلکې پدې جهادي بهیر کې د یوه شریك مسلمان په حیث چې ما ته کوم څه د واقعیت په حیث ښکاره شوي دي هماغه مې په دې مقصد لیکلي دي چې د نړیوال کفري یرغل په مقابل کې مې د یوه مسلمان مقاوم جهت ملاتړ کړی وي چې همدا مې ایماني مسؤولیت هم وو، خو دا چې تاریخ او تجربې ښودلې چې تقریبا ټول اسلامي او جهادي حرکتونه د خپلې مبارزې د مسیر په کړلېچونو کې کله ناکله له یو لړ خطاګانو او اشتباهاتو سره هم مخ کېږي نو دا حرکت هم له دغې عارضې مبرّأ او معصوم نه بولم، خو د افغانستان په اوسني وخت کې یې د موجودو اسلامي جهتونو په منځ کې اسلامي شریعت، جهاد او جهادي فکر ته تر نورو ښه ملتزم او متعهد بولم. او دا هم عین ممکن ده چې ما دې د دغه حرکت سمه ارزوونه نه وي کړې. نو په کار ده چې د (طالبانو) مواقف او پر هغوئ حکم دې له هغو وثائقو او مصادرو واخیستل شي چې دوئ په خپله د خپل ځان په اړه په رسمي ډول نشر کړي دي.

په پای کې پداسې حال کې چې مسلمانانو ځوانانو ته د دغه ډول کتابونو د لوستلو توصیه کووم د دین له علماوو او د اسلامي فکر او نظر له خاوندانو احترامانه هیله کووم چې ځوان نسل ته پر معاصرو اسلامي موضوعاتو مؤثر لیکل وکړي، د دین (اصلي پیغام) خلکو ته په معاصره ژبه او معاصر اسلوب وړاندې کړي، او نوی نسل د اسلام د دښمنانو له فکري او عقائدي فتنو خبر کړي تر څو د هغو ښکار نشي.
او د دین له باخبره علماوو او د اسلامي فکر له استاذانو مې دا هیله ده چې که زه چېرې د دې کتاب په کومه موضوع او یا کوم حکم کې تېروتلی یم نو هغه به زما د کم علمۍ نتیجه وی، نه دا چې زه به پر غلطۍ اصرار کووم،نو د مهربانۍ او لورینې له مخې دې دوئ ما خپلې غلطۍ ته متوجه او خپل مسؤولیت دې رفع کړي.
د دې کتاب په اړه دا خبره یادول هم ضروري بولم چې زما دا کتاب ګوتې کوم علمي او تحقیقي أثر او په تخنیکي لحاظ یو معیاري کتاب ندی، بلکه یوازې د یرغل پر وړاندې زما د انفرادي مسؤولیت د اداء کولو یوه نیمګړې هڅه ده، او مضامین یې پدې مقصد لیکل شوي چې له غرب څخه د را صادرو شویو فکري او عقائدي انحرافاتو او د غربیانو او د هغوئ د پیروانو له ورانوونکو پلانونو او پټو توطیو مې خپل ولس ته د خطر په مقابل کې د را ویښېدلو څو له سوزه ډکې چیغې وهلې وي. الله تعالی دې یې راڅخه قبولې کړي، او د خطا په صورت کې دې الله تعالی عفوه راته وکړي آمین.
(رَبَّنَا لاَتُؤَاخِذْنَا إِن نَّسِينَا أَوْ أَخْطَأْنَا رَبَّنَا وَلاَ تَحْمِلْ عَلَيْنَا إِصْرًا كَمَا حَمَلْتَهُ عَلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِنَا رَبَّنَا وَلاَ تُحَمِّلْنَا مَا لاَ طَاقَةَ لَنَا بِهِ وَاعْفُ عَنَّا وَاغْفِرْ لَنَا وَارْحَمْنَا أَنتَ مَوْلاَنَا فَانصُرْنَا عَلَى الْقَوْمِ الْكَافِرِينَ).

**مولوي عبدالهادي (مجاهد)**

## امریکا د افغانانو د اسلامي هویت د له منځه وړلو په هڅه کې

امریکا ته په افغانستان کې د انګریزانو او روسانو له تجربو دا ورمعلومه وه چې افغانستان یوازې په زور او جګړې نه ایل کېږي او ترڅو چې د افغانانو په فکري او ټولنیز ژوند کې د افغانی هویت عناصر موجودوي تر هغه به دوئ د هر یرغلګر په خلاف د مقاومت توان لري، نو ځکه خو امریکا د افغانانو په ژوند کې د دوئ د اسلامي هویت عناصر تر برید لاندې ونیول تر څو د تل لپاره په افغانانو کې د جهاد روحیه له منځه یوسي او پدې ترتیب افغان نوی نسل د غربي فرهنګ او نظریاتو پر اساس وروزي.

### د افغاني ټولنې د اسلامي هویت اساسي عناصر

د افغاني ټولنې د اسلامي هویت اساسي عناصر ما ته تر ډېره ځایه په لاندې ټکو کې را ښکاري.

د ټینګ ایمان درلودل او د شریعت منل.

غیرت او همت.

عفت او شرف.

جهاد او سرښندنه.

د غرب د لویدلي فرهنګ له تاثیراتو لرې والی.

**اول عنصر ـ ټینګ ایمان**:

افغانان چې له کومې ورځې مسلمانان شوي له هماغې ورځې تر اوسه اسلام د دوئ دین، شریعت یې قانون او اسلامي فرهنګ یې د ژوند بڼه ده. دا رښتیا ده چې په عمومي ډول به په افغانانو کې شرعي علوم په پراخه ډول دومره ډېر نه وي خپاره شوي خو د اسلام په منلو کې په عملي ډول د سیمې تر نورو ولسونو غښتلي دي، او له دین څخه د دفاع په لار کې هم

تر نورو ځو ګامه مخکې دي، او دا هغه حقیقت دی چې د سیمې تاریخ یې تل شاهدي او مثالونه وړاندې کړي دي.

د روسانو او کمونیزم په مقابل کې د جهاد په وخت کې به چې دلته راغلیو عربو مجاهدینو د افغانو د تدین او ښې مسلمانۍ ستاینه کوله نو ما چې لا هغه وخت د عربي نړۍ له اوسني وضعیته د عمر د کشروالي او د معلوماتو د نشتوالي له امله خبر نه درلود هغوئ ته به مې ویل چې زما په تصور کې خو تاسې عرب د ډېر قوي ایمان خاوندان یاست، ځکه چې تاسو د اصحابانو لمسیان یاست، د وحیې پر زمکه هستېږئ، قرآن ستاسی په ژبه نازل شوی او داسی نور، خو هغوئ به راته ویل: (ولكنّنا تلقّينا دروس الإيمان العملية منكم في هذا الزمن)، یعنې دا سمه ده چې موږ د دې امتیازاتو لرونکي یو، خو موږ د ایمان عملي درسونه پدې زمانه کې له تاسو افغانانو حاصل کړل.

همدغه د ایمان د قوت او له اسلام سره د وفادارۍ زور دی چې افغانان یې تل د مادي وسایلو له کموالي او یا نشتوالي سره سره د چنګېزیانو، انګرېزانو، روسانو او امریکایانو په مقابل کې درولي او تل یې یرغلکرو ځواکونو ته ماتې ورکړې ده.

له افغانانو د ایمان د وسلې د اخیستلو په لاره کې هېڅ کفري قوت او ملګرو یې خپلې هڅې ندي سپمولې.

انګریزانو د خپل استعمار په وخت کې ورته خپل کفري کتابونه ژباړلي او راوړي دي، او روسانو او امریکایانو ورته خپل. له ما سره د تورات او انجیل (عهد قدیم او عهد جدید) یوه پښتو نسخه موجوده ده چې د نولسمې میلادي پېړۍ په آخر کې په لندن کې چاپ شوې او بیا دې سیمې ته راوړل شوې ده، او دا په داسې حال کې چې په هغه وخت کې د دې سیمې هېڅ پښتون مسیحیت ته ور مرتد شوی نه وو. انګریزانو په خپل وخت کې افغانستان ته د (قادیانیت) کفري عقیده هم راصادره کړې، یو ځو کورنۍ قادیانیت ته هم ور اووښتې وې چې د مشرانو تر اعدامېدلو

وروسته يې اولادونه پېښور ته وتښتېدل او د انګرېزانو تر تسلط لاندې د پېښور د (اچيني) په کلي کې ميشت شول چې تر نولس سوه نوي يمو کلونو پورې هماغلته پراته ول او په مهاجرو افغانانو کې يې خپل دين ته دعوت هم پيل کړی وو.

روسانو هم لاډېر پخوا له افغانانو څخه دايمان د وسلې د اخيستلو په نيت خپله الحادي کمونستي نظريه افغانستان ته راصادره کړه، او بيا يې د همدغې الحادي نظريې د خپراوي او ټينګښت په خاطر افغانستان اشغال کړ، په سلګونو زره الحادي، مارکسيستي او لينني کتابونه يې د افغانانو ژبو ته وژباړل.

د فرهنګي فعاليت تر څنګ يې د افغانانو د اولادونو دکافر کولو لپاره د (پېش آهنګانو) لړۍ هم شروع کړه، او تر يوسل او شل زره زيات کمکي هلکان او نجونې يې شوروي اتحاد ته ولېږل، او هلته يې په مستقيمه او غير مستقيمه توګه د الحاد افکار د دوئ په ذهنونو کې ورځای کړل، او دلته يې هم په هېواد کې په بېلابېلو نومونو د ځوانانو لپاره فکري او انقلابي سازمانونو جوړ کړل، او هم يې د کمونيزم نظريه او افکار په مستقيمه توګه په افغانی نصاب کې شامل کړل.

کمونست ببرک به په واز کومي هر وخت افغانو ځوانانوته تلقين ورکاوه چې بايد له دوئ څخه (انسان نوين) جوړ شي، بايد د مارکس، انګلز او لينن فلسفه خپله کړی.

خو کله چې کمونيزم په افغانستان او نړۍ کې ماتې وخوړه نو د هغه د فکرې تشې د ډکولو لپاره د نصراني غرب يرغلګر په لاندې دريو جبهو کې رامنخته شول:

**د نصراني غرب درې جبهې**:

۱ - **د سیکولریزم جبهه**:

سیکولریزم په انګریزۍ کې (بې دینې) یا (په نظام او حکومت کې دین ته ځای نه ورکولو) ته وایي. غربي سیکولریزم که څه هم په افغانستان کې لا د امان الله خان له وخته خپلې ریښتې غزولې او د ظاهر شاه او داود خان په وختونو کې ښه ډېره وده کړې وه. په تېره نیمه پېړۍ کې غرب پلوو اشخاصو، احزابو او مؤسساتو هم د سیکولریزم د خپراوي لپاره پراخ کار کړ،او خبره تر دې ځایه‌را ورسېده چې د جهاد په دور کې یې د ځینې غرب پلوو تش په نامه جهادي ګوندونو له کړکۍ یې هم سر راوویست. دغه ګوندونه چې ځان یې (منځ لاري) یعنې نه کمونیستان او نه هم توندلاري مجاهدین بلل د غرب د اهدافو د پلي کولو لپاره د ډېرې کاریګرې وسیلې په حیث ثابت شول. هغوئ چې یو وخت یې د (پیرۍ) (حضرتۍ) او غولوونکي (روحانیت) په نامه افغانان له خالص عملي اسلامه ګرځول دا ځل یې سرونه د امریکا او غرب له ګرېوانه راووتل. سیکولریزم یوازې په غرب پلوو تنظیمونو، احزابو او اشخاصو کې منحصر پاتې نه شو، بلکې هغه اخواني مزاجه پخواني تنظیمونه او د هغو ډېره برخه اتباع یې هم تر خپل تأثیر لاندې راوستل، او په یوه سیکولر دیموکرات حکومت کې یې د غربي یر غلکرو تر سیوري لاندې د نورو سیکولرو احزابو او اشخاصو تر څنګ د غرب په خدمت کې ودرول.

امریکایانو پر افغانستان له خپل پوځي یرغل وروسته دغو غرب پلوو (روحانیونو!!؟) او سیکولر دیموکرات مجاهدینو!!؟ ته د افغانستان د قیادت، اقتصاد، پوځ، عدلي سیستم، اجتماعي خدماتو، تعلیم او فرهنګ چارې وروسپارلې. دغو ډلو ته یې مالي او اطلاعاتي وسایل په لاس ورکړل تر څو د سیکولریزم د خپراوي لپاره په خلاص لاس کار وکولی شي.

د غرب دغو نويو او زړو ملګرو د هر ډول وارداتي افکارو پرمخ د هېواد دورازې ورخلاصې کړې، خو د هغو په مقابل کې چې هر څوک د سوچه اسلامي فکر پالنه او ساتنه کوي د دوئ لخوا د (القاعدې) په نامه وهل، تړل، شړل او وژل کېږي، او کټ مټ د ترکيې د(کماليزم) په څېر خپل سيکولريزم د زور په وسيله او له خپل لوري د وضع شويو قوانينو له لارې پر خلکو عملي کوي.

د اسلامي نړۍ د ټولواسلامي مذاهبو علماء پدې متفق دي چې سيکولريزم ځکه کفر دی چې له الله تعالی څخه د حاکميت او تشريع حق اخلي، خو (سيکولر ديموکرات مجاهدين) او امريکا پلوي (روحانيين) يې ځکه پلی کوي چې په لکونو ډالره مياشتني معاشونه، شکرانې او نور سياسي او مادي امتيازات تر لاسه کوي.

سيکولريزم په يوه ورځ له خلکو څخه ايمان نه اخلي، بلکې په کراره کراره ايماني ارزښتونه د هغوئ له ژوند څخه باسي او د وخت په تېرېدلو يې داسې مرحلې ته رسوي چې دوئ به بيا په خپله اسلامي شريعت نه غواړي، خو سره له دې به بيا هم ځانونه مسلمانان بولي.

غربيانو په افغانستان کې پر سيکولريزم د (مدني ټولنې) (ديموکراسۍ) او د (نوي بهير) نومونه ايښي دي، ځکه چې دا هغه اصطلاحات دي چې عام وګړي يې په اصلي مقصد نه پوهېږي، او په اسانه يې په لومو کې ښکار کېږي.

٢ – **د کليسا جبهه**:

کليسا لا له ډېر پخوا راهيسې د افغانانو د مسيحي کولو پروګرام تر لاس لاندې نيولی وو، پر (اسلامي نړۍ يرغل) نومی کتاب چې د مسيحي مبلغينو د هغو مقالو مجموعه ده چې په فرانسوي مجله د(مسلمانانو نړۍ) کې خپرې شوې او بيا د مصر ستر عالم (الشيخ محب الدين الخطيب) په عربي ژبه چاپ کړی دی، په دې کتاب کې مسيحي مبليغينو د افغانانو په هکله څه د پاسه سل کاله پخوا ليکلي چې (دهندوستان

غربي پولو ته څېرمه پراته پښتنتانه ډېر سخت خلک دي، هغوئ هېڅکله هم مسيحيت نه مني، مونږ بايد هڅه وکړو چې غربي او مسيحي ادبيات د دوئ په سيمه کې خپاره کړو چې لدې لارې به دوئ په تدريجي ډول له غربي کلتور او افکارو سره بلد شي).

د همدې او دېته ورته توصيو له مخې غربي کليسايي مؤسسو د افغانانو د هجرت په ورځو کې دغې سيمې ته مخه وکړه او د مرستو او صحي خدماتو په پلمه يې په لسګونو زره د انجيل نسخې او د مسيحيت کتابونه په پښتو او فارسي ژبې د مهاجرينو په منځ کې وويشل.

ما په خپله ولېدل چې د خيبر درې د سړك پر غاړه په يو مسجد کې د انجيل نوې نسخه د قرآن کريم د نسخو د پاسه ايښودل شوې وه چې ښايي پر دغه لاره تېرېدونکيو د خارجي مؤسساتو صليبيانو به ايښې وه. بل ځل مې د پېښور د مهاجرينو د بورډ په بازار کې د سرک پر غاړه له يوه افغاني کتاب خرڅونکي سره د انجيل نسخه ولېده چې د کتابونو په منځ کې يې د خرڅلاو لپاره ايښې وه.

غربي کليسا ګانو د پاکستان په اسلام آباد کې د پاکستان دمسيحي ټولنې په چوکاټ کې د افغانانو لپاره يوه خاصه مسيحي راډيو جوړه کړه چې له دېرشو کلونو راهيسې په پښتو، فارسي او هزاره ګي ژبو د (صداى زنده ګي)، (صداى اميد) او (مسيحي بچې پروګرام) په نامه په ورځ کې څو څو ساعته پرله پسې خالصې مسيحي خپرونې کوي. او دا په داسې حال دي چې په افغانستان کې په ښکاره ډول نصرانيان نشته.

غربي کليسا ګانو د مهاجرينو په منځ او بيا وروسته په کابل کې افغانان مسيحيت ته وروبلل، او هغوئ ته يې د مسيحيت د ښوونې مرکزونه جوړ کړل.

په افغانستان د امريکايانو له مسلط کېدلو سره سم تقريبا څلور زره غربي مؤسسې افغانستان ته راغلې، چې تقريبا نيمايي يې په کليساګانو

پورې اړه لري او د امریکایي پلوي نظام تر سیوري لاندې اوس په بېلابېلو نومونو په کابل او نورو ولایاتو کې خپل فعالیتونه ترسره کوي.
د افغانستان په تاریخ کې په لومړي ځل په کابل، مزارشریف، قندهار، کندز، خوست، هرات او ځینې نورو ولایاتو کې د امریکایانو د اشغال په وخت کې د هغوئ په اډو او مراکزو کې کلیساګانې جوړې شوې چې اوس خو راغلي یرغلګر ورکې خپل دین پلی کوي، خو د دوئ پلان دا دی چې وروسته به بیا دلته د دوئ د پاتې کېدلو په صورت کې د بیان او عقیدې د ازادۍ د حق پر اساس چې اوسنی اساسي قانون یې هم تأیید کوي د ډیموکراسۍ په سیوري کې مسیحیت ته ور مرتد شوي افغانان هم په ازاده خپل عبادتونه ورکې تر سره کوي چې د زمانی په تېرېدلو او د شرایطو په بدلېدلو به بیا دغه وړوکی مرتد شوی اقلیت د مسیحي غرب تر پالنې او حمایې لاندې سیاست او پارلمان ته هم لاره پید اکوي، او کرار کرار به د قوانینو په رامنځته کولو او تصویب کې د خپل پارلماني حق په استعمال کفر ته په افغانستان کې رسمي او قانوني موجودیت وربښي چې د پنجشېري عبدالرحمن په ښکاره نصراني کېدل او د لاس پوځي نظام د رئیس اشرف غني د نصرانۍ ښځې (رولا) په تاریخ کې د لومړنۍ افغانۍ نصرانۍ په حیث راجستر کېدل د همدې کار یو ډول پیل هم بلل کېدی شي.
د افغانانو ایماني ارزښتونه کله هم له دومره لوی ګواښ سره نه وو مخامخ شوي. امریکایان او غربیان غواړي چې لدې لارې د افغانانو ایمان ولوټي او بیا یې په خپل خدمت کې د مفتو مزدورانو په حیث په کار واچوي چې له یوې خوا به پدې کار محلي مزدوران په لاس ورشي، او له بلې خوا به افغانان د افغانو په لاس کفر ته ور وبولي.

**۳ـ پوځي جبهه**:

کله چې امریکا او غربي هېوادونو ولیدل چې افغانان د رباني او کمونستانو له ایتلاف نه وروسته یو ځل بیا د اسلام تر بیرغ لاندې په

اسلامي شريعت سره را ټول شول نو يې پر افغانستان د خپل پوځي بريد لپاره تياری پيل کړ، د شمال کمونيستي نيشنلستي ټلواله يې تأييد، تقويه او بيا استعمال کړه، او (بوش) د ټول غرب په يوځای کولو او په شرق کې خپلو ملګرو ته د امر په ورکولو خپله نړيواله صليبي جګړه اعلان کړه.
بوش په واز کومي دغه جګړه مقدسه صليبي جګړه و بلله، او په نتيجه کې يې د صليبي لښکرو په زور او د هغوئ تر څنګ د افغاني ملېشه يي ډلو د قومندانانو په استخدام افغانستان اشغال کړ.
بوش پوهېده چې په يوازې سر افغانستان نه تسخيرولی شي او نه يې ساتلی شي، نو ځکه يې د ټولې دنيا کافران په پرله پسې ننواتو له ځان سره ملګري کړل.
امريکا د خپل يرغل په کلونو کې د شمال له ځينې کمونيزم ځپلو سيمو پرته نور د يوه ولايت خلک هم له ځان سره ملګري نه کړای شول،که څه هم چې ډېرې لويې غونډې، لويې جرګې او څو څوځله يې انتخابات په کار واچول خو هېڅ ګټه يې ورته ونه لرله. جهاد نور هم زور واخيست او پر افغانانو د امريکا د جنګي ټکنالوژۍ د غرور جادو هم بې تاثيره شوه، خلک پوه شول چې امريکايان هم وژل کېدای شي، او د دوئ له ډېرو پرمختللو وسايلو نه هم ځان په ډېرو ساده طريقو ساتلی شي.
امريکا به ارومرو دغه جګړه بايلي، ځکه چې روسان له افغانستان سره په پوله پراته ول خو بيا يې هم خپله جګړه اکمال نه کړای شوه، نو امريکابه يې له شل زره کيلو متره ليري هېواده څنګه اکمال کړای شي؟ خو امريکايان به کوښښ وکړي چې تر هغو په افغانستان کې خپل نظامي حضور ته دوام ورکړي چې تر څو دلته يو غرب پلوی نسل تربيه کړي او بيا د خپلې ماتې په صورت کې دا هېواد خپلو دغو روزل شويو غلامانو ته د افغانانو په نامه ور وسپاري.
له همدې امله امريکايانو د افغانستان ټول پخواني پوځي تشکيلات لغوه او پخواني افسران يې له کاره ګوښه کړل، او دا ځکه چې هغوئ يو ځل د

خپل ملت او هېود په خلاف د روسانو لپاره د جګړې ترخه تجربه لیدلې وه، او د دې ډېر احتمال وو چې د هغوئ یوه زیاته برخه به بیا دخپل ملت په خلاف د امریکایانو لپاره نه وو جنګېدلي. امریکایانو د هغوئ پر ځای داسې بېسواده، بې فرهنګه، بې احساسه او بې تجربې اوباشان د (ملي اردو) په نامه رامنځته کړل چې یوازې ځو هفتې یې له امریکایانو پوځي روزنه تر لاسه کړې، خو د خپل ملت په خلاف د جګړې له ترخو عواقبو ناخبره دي.

**دویم عنصرـ غیرت او همت**:

امریکایانو او غربیانو ته د خپلو (استشراقي) معلوماتو په په رڼا کې ور معلومه وه چې ډېر افغانان لا تر اوسه د غرب له لوېدلي او بې غیرته فرهنګه ندي اغېزمن شوي او تر اوسه یې په معنوي ژوند او ټولنیزو ارزښتونو کې غیرت لوړ ځای لري، او ترڅو چې دغه شعور ورکې ژوندی وي د غرب په څېر بې حیا او د ښځو او نرو تر منځ مختلط او بې بندو باره ژوند نه مني، نو ځکه خو یې کوښښ وکړ چې د اسلامي غیرت احساس په خلکو کې له منځه یوسي. امریکایانو په افغاني ټولنه کې د دې دیني او معنوي ارزښت د له منځه وړلو لپاره له لاندې یادو شویو تدابیرو کار واخیست:

## د دیني او معنوي ارزښتونو د له منځه وړلو لپاره غربیانو تدابیر

**۱ـد نشراتي وسائلو پراخه خپراوی**:

د دې لپاره چې امریکایان د افغانانو له ذهن څخه د خپل پوځي یرغل تصور وباسي او په تفریحي او ترفیهي مصروفیتونو یې مشغول کړي نو په پراخه پیمانه یې په افغانستان کې نشراتي وسائل خپاره کړل، او د هغو له لارې یې خپل فرهنګ، اجتماعي او اخلاقي ارزښتونه او د غربي ډوله ژوند بڼه افغانانو ته ور تلقین کړه. یرغلګرو د دغو نویو وسائلو له لارې په

ورځ کې په زرګونو ساعته راډیو یې او تلویزوني خپرونې پیل کړې او پراخه انټرنټي او مطبوعاتي تبلیغات یې په کار واچول.
یوازې یوې امریکایې مؤسسې(USAID) تر سلو زیاتې نادولتي محليFM راډیوګانې د افغانستان په ولسوالیوکې فعالی کړې چې هره یوه یې په ورځ کې لږ تر لږه تر لسو ساعتونوپورې د دوئ په ګټه خپرونې کوي. د دې ترڅنګ د امریکا، بي بي سي او ازادۍ راډیوګانو خپلې یونیم او دوه ساعته خپرونې څلېریشت ساعته کړې، او له مرکزي راډیوګانو علاوه په ولایاتو کې په محلي FM سټېشنونو هم خپروي.
ددغو راډیوګانو تر څنګ په ټول افغانستان کې تر اتیاوو زیات تلویزوني او د هغو ترڅنګ په سلکونو کیبلي کانالونه هم د یرغلګرو لپاره خپرونې کوی.
په مطبوعاتي ډګر کې په افغانستان کې تر زرو زیاتې ورځپاڼې، اونیزې، نیم میاشتنۍ او میاشتنۍ خپرونې د سیکولر او په غرب پورې د تړلو جهتونو له لوري د دوی په ګټه خپرونې کوي.
په دغو ټولو خپرونو کې مرکزي ټکی دا دی چې امریکا او غربیان یرغلګر نه دي، هغوئ د افغانانو دنجات لپاره راغلي، او داسې نور.
دغه ټولې خپرونې چې د غرب لخوا تمویلېږي او اداره کېږي کوښښ کوي چې په افغانانو کې پر دین، ناموس او نورو معنوي ارزښتونو د غیرت احساس له منځه یوسي، دښمن ورته د دوست په شکل کې ښکاره کړي، او د غربیانو جنایات افغانانو ته د خدماتو په بڼه کې ور معرفي کړي.
دلته راغلیو یرغلګرو که د افغانانو پر عزت، ناموس او معنوي ارزښتونو هر څومره تېري وکړل د اشغال د وخت نشراتو هغه توجیه کړل، او د هغو په اړه یې د خلکو دکرکې او نفرت د سړولو لپاره د غیرت او حمیت خلاف افکار خلکو ته ور تلقین کړل، تر څو مسلمان افغانان د امریکا په خلاف هم هغسې یوه ملي قیام ته چمتو نشي چې د روسانو او کمونستانو په خلاف د خپل دیني غیرت په نتیجه کې چمتو شوي ول.

۲– **د لیکوالانو او مفکرینو خریداري:**

په هر ملت کې مفکرین، لیکوالان، شاعران او پوهان د هغه ملت د فکري او معنوي ارزښتونو ساتنه، پالنه او له هغو څخه د فاع کوي. او که چېرې دغه ډول خلک د دښمن په صف کې ودرېږي نو په ډېرې اسانۍ ملتونه ذلت او تسلیمېدو ته غاړه ږدي او له جهاد او مبارزې څخه لاس اخلي.

همدغه خلک ول چې د کمونیزم په خلاف د جهاد په وخت کې یې په افغانانو کې دیني غیرت راوپاراوه او هغوئ یې د جهاد ، دفاع، شهادت او مبارزی په مفاهیمو وپوهول، په سنګرونو کې یې کښېنول، او په نتیجه کې ټول ملت دروسانو او کمونستانو په خلاف راپورته شو.

خو دا ځل امریکا او غربیانو کوښښ وکړ چې تر هر څه دمخه دغه ډول خلک یا قتل، تبعید او تجرید کړي، او یا یې هم یوه لویه برخه په خپلو ډالرو خریداري کړي او په خپل صف کې یې ودروي. ځکه خو اوس په سلګونو هغه مفکرین، لیکوالان او شاعران چې یو وخت یې د جهاد ملاتړ کاوه او په خلکو کې یې د دښمن په خلاف د دیني غیرت ولولې پارولې او پاللې دا ځل د څو ډالرو په بدل کې د یرغلګرو ترڅنګ ولاړ دي او مسلمان ملت ته د ډیموکراسۍاو لیبرالیزم کفري نظریات د معاصرو او پرمختللو ارزښتوتو په نامه ور وړاندې کوي، او د جهاد او له وطن څخه د دفاع پرځای ځوانان د تروزرم په خلاف د مبارزې په نامه د مجاهدینو په خلاف جګړې ته هڅوي، او د یر غلګو لخوا په جوړو شویو نظامي تشکیلاتو کې د شمولیت تر عنوان لاندې یې د یرغلګرو په صف کې دروي، او پدې ډول د امریکا په خدمت کې د دیني غیرت د وژونکو په حیث خپله ذلیلانه وظیفه تر سره کوي.

۳– **د لنډغرو او بې غیرته حاکمانو مسلطول:**

امریکا په افغانستان کې په پرله پسې ډول له داسې سیکولرو، پردي پالو او غرب پلوو خلکو حکومتونه جوړ کړل چې یوه برخه یې عملاً امریکایي

او غربي تابعیتونه لري، او یوه برخه نور یې غربیانو ته د ورنږدې کېدلو په مقصد د هر ذلت منلو او د هر جنایت ترسره کولو ته تیار دي.
دغه له امریکایانو او نورو غربیانو سره راغلي افغانان هلته په غرب کې پداسې یوې بې بندوباره او لنډغره ټولنه کې اوسېدلي چې په ټوله معنا له اسلامي او افغاني ارزښتونو څخه پردي شوي دي. دوئ په پخپله او د دوئ ښځې، لوڼې او زامن له لسګونو (ګرل فرینډانو) او (بوای فرینډانو) سره اوسېدلي او د غرب اخلاق او بې معنویته حیواني فرهنګ ورته تمدن ښکاري. دغه خلك په خپلې ټولې توانایی هڅه کوي چې په خپل حاکمیت کې دلته هم هماغه ډول یو اخلاقي او فرهنګي محیط ایجاد کړي.
په حکومت کې د دوئ د دې ځای شریکان بیادلته په افغانستان کې د بې غیرتی، لنډغرتوب، ټوپکسالارۍ او وحشتونو کرغېړنه مشهوره سابقه لري.
نو اوس که د یرغلګرو په حکومت کې د دوئ ورسره راغلي (مستړان) او یا د دوئ د دې ځای ملېشه یي شریکباڼې د افغانانو پر دیني غیرت، معنوي ارزښتونو او ناموس تېری کوي نو د دوئ په نزد څه بده خبره نه ده، بلکې دا د دوئ لپاره یو مطلوب کار دی، ځکه چې دوئ د همدغه ډول یوه وضعیت او ماحول د رامنځته کولو لپاره راغلي او توظیف شوي دي.
د دوئ چې خپلې ښځې په ارګ کې د سلګونو امریکایي (کاوبایانو) لخوا (وساتل) شوې نو د نورو خلکو د ناموس دساتلو به څه پرواوکړي؟ او یا به یې د دیني غیرت او معنوي ارزښتونو د ساتلو څه غم وکوي؟
**دریم عنصر ـ عفت او شرف**:
افغاني ټولنه د مسلمانانو په منځ کې د عفت او شرف بهترین سمبول ګڼل کېده. په هره ټولنه کې چې حیا عفت او شرف وجود ولري په هغه ټولنه کې ځوانان او پیغلې د عزیمت خاوندان وی، او له دین څخه د دفاع او د هېواد د آزادۍ د ساتلو په لاره کې د قربانۍ لپاره همیشنۍ تیاری لري. د دغه ډول ټولنې ځوانان غواړي پلرونه شي، او نجونې یې غواړي میندې شي،

او پدې کار سره د یوې پاکې او سالمې ټولنې د تداوم داسې یوه سلسله تضمینوي چې د تل لپاره د یرغلګرو په مقابل کې د غیرتمنو او عزتمنو ځوانانو او مبارزینو شتون حتمي کوي.
په سپېڅلې او باعفته ټولنه کې ځوانان د کامل انسانیت روزنه تر لاسه کوي او له جنسي حیوانیت او بې لاریتوبه نجات مومي. همدغه وجه ده چې ټول اسماني دینونه په عفت او پاک لمنتوب باندې تأکید کوي، له هر ډول اخلاقي بې لاریتوبه یې د ټولنې د ژغورلو لپاره بېلابېل وقایوي او جزائي قوانین رامنځته کړي دي. نه یوازې اسماني ادیان بلکې ډېر د بشر په لاس جوړ شوي مذاهب لکه (زردشتي) (بودایي) (هندویزم) (سک مذهب) د چین د خلکو د(کنفوشیوس) مذهب او داسې نور هم د خپلو ټولنو له تباهۍ څخه د ژغورلو لپاره جزائي قوانین عملي کوي.
خو د غرب تر ډېره حده ماده پرسته او په الحاد ولاړه ټولنه چې له خپل اصلي (یهودیت) او (نصرانیت) څخه هم تېره شوې ده د نړۍ د خلکو د بې لارې کولو، په هغوئ کې د عزیمت د ختمولو او بیا پرهغوی د غلبې د حاصلولو لپاره یې د (جنس) او (بدلمنتوب) بازارونه په دنیا کې ګرم کړي او خپل ټول نشراتي وسایل یې د اخلاقي فساد د خپرولو په لاره کې په کار اچولي دي چې په دې لړ کې افغانستان هم د دوئ تر مسقیم تأثیر لاندې راغلی دی.
ټول غرب او په سر کې یې امریکا د رو سانو په خلاف د افغانستان د جهاد په کلونو کې ولیدل چې څنګه په لکونو ځوانان پرته له کومې مادي معاوضې د جهاد او قربانۍ ډګر ته راووتل، په لکونو شهیدان شول، د هېواد لویشت لویشت خاوره د هغوی په وینو سره شوه، خو د کمونیزم ټغر یې پدې خاوره کې غوړېدو ته پرې نښود.
همدا ډول په ملیونونو پېغلې د خپل دین او عفت د ساتلو پخاطر د هېواد پرېښودلو او هجرت ته چمتو شوې، خو د الحاد په غېږ کې یې ژوند ونه مانه. هماغه و چې په شلمه میلادي پېړۍ کې نړۍ د جهاد ستره معجزه

ولیدله، او د نړۍ ډېرو ملتونو د دغو باعفته ځوانانو د قربانیو په برکت د ازادۍ ژوند حاصل کړ.
اوس چې امریکا افغانستان اشغال کړی نو امریکایان لدې په وېره کې دي چې ښه ډېر افغان ځوانان به دا ځل د دوئ په خلاف هم د جهاد او قربانۍ ډګر ته راووځي، او د روسانو تجربه به دا ځل پر دوئ تکرار شي، نو ځکه خو یې تر هر څه زیات د ځوانانو په منځ کې د اخلاقي فساد د خپراوي کار په پراخه پیمانه پیل کړ چې په لاندې څو نقطو کې یې ځینې ډولونه او مثالونه یادوو:
**د اخلاقي فساد د خپرولو ډولونه او مثالونه**
۱ – **د مېډیا له لارې د اخلاقي فساد خپرول**:
امریکایانو د خپل اشغال په لومړۍ هفته کې هغه تر هر څه د مخه په کابل کې د (کابل ننداري) په تیاتر کې پداسې حال کې د بې لاړو ښځو یو تیاتر وړاندې کړ چې لا د تیاتر ځمکه له خاورو او ایرو پاکه شوي هم نه وه. دغه تیاتر ته امریکائي پوځیان او افسران په پراخه پیمانه ورغلي وو. دغه ډول د تیاتر افتتاح په هغه خاص وخت کې خپل یو اهم پیغام درلود ، او هغه دا چې امریکا به دلته د خپل استقرار په صورت کې همدغه ډول فرهنګ ته رواج وروکوي.
د غربیانو او د هغوئ ددې ځای د ملګرو دغه ډول خپرونې دومره شرمېدلې او بربنډې دي چې د دوئ د ادارې مزدورو او دین پلورونکو تش په نامه ملایانو او روحانیونو ته هم د منلو وړ نه وې، او په پرله پسې ډول یې د کابل ادارې ته دا توصیې کولې چې بېلارې کوونکي او مبتذل نشریات دې بند کړي چې په خلاف به یې خلك را وپاریږي. خو حکومت کله هم پدې ونه توانېده چې دغه ډول خپرونې بندې کړي، او دا ځکه د دغه خپرونو تر شا پخپله امریکا ولاړه ده او کله به هم د کابل ادارې ته

اجازه ورنه کړي چې د دوئ د پلانونو د عملي کېدلو په لاره کې دې خنډ شي.

**۲– د ښځو د چارو عجيب او غريب وزارت**:

غربيان پدې پوهېږي چې د ښځو فساد دټولې ټولنې فساد او اصلاح يې د ټولې ټولنې اصلاح ده، له همدې امله امريکايانو او نورو غربي اشغالګرو هم هڅه وکړه چې دلته په افغانستان کې هم بايد په پراخه پيمانه او مستقيما د چا له نګرانی پرته امريکايی مشاورين د افغانانو د (ژوندبڼې) او (فکر) د غربي کولو لپاره خلاص لاس او پراخ فرصتونه ولري، نو هماغه وو چې تر اشغال سمدستي وروسته يې د ښځو د چارو د وزارت په نامه د اشغال په حکومت کې يو رسمي ارګان جوړ کړ چې د افغانستان په تاريخ کې کله هم پدې نامه کوم وزارت وجود ندی لرلی.

دغه وزارت په منظم او سيستماتيک ډول ښځې د خپل دين، خپلو شرعي مکلفيتونو او د خپلې ټولنې د عنعناتو او اعتقاداتو په ضد راپاروي. وزارتونه خو په اصل کې د هېوادونو د چارو د چلولو او د ستونزو د حل لپاره منځ ته راځي، خو اوس پوښتنه دا ده چې آيا(ښځه توب) هم کومه داسې چاره او ياکومه ستونزه ده چې د يوه مستقل وزارت ضرورت ايجابوي؟ او که هغه هم د (نارينتوب) په څېر يو فطري امر دی چې د انسانيت په عمومي دائره کې راځي چې بايد ټول وزارتونه او ادارې يې پالنه وکړي؟

که هدف دا وي چې ښځې د هېواد په چارو کې استخدام شي او د دوئ په اند د يوې سيکولر ټولنې د رامنځته کولو لپاره ترې کار واخيستل شي نو دا کار خو دوئ په نورو وزارتونو کې هم کړی دی. او که هدف داوي چې ښځه توب هم يو خاصه چاره ده چې د امريکايی مشاورينو تر نظارت لاندې د وزارت ضرورت لري نو بيا خو ځينې افغانان ملامت ندي چې دغه وزارت ته (وزارت امور زنان) پر ځای (وزارت امور زنا) وايي. ځکه چې همدغه وزارت دی چې په زرګونو غربي مؤسسو ته ځوانې ښځينه

ترجمانانې، سکرترانې او کار کوونکې برابروي. او همدغه وزارت دی چې امریکایي او غربي پوځیانو او چارواکو ته افغاني ترجمانانې او دایساف په دفترونو کې کار کووونکې برابروي چې د نه اوریدلو کیسې یې هره ورځ د کابل دخلکو په منځ کې خپریږي. یو ځل خو لا همدغه وزارت اعلان وکړ چې د (تیاتر) لپاره د نجونو د روزنې ضرورت هم پوره کوي.
حقیقت دا دی چې د ښځو د چارو وزارت هغه د (رنګینو لومو دام) دی چې غربیانو په افغانستان کې د افغانو ښځو د ښکار کولو او په هغوئ کې د غربي ډوله فرهنګ د رائجولو په مقصد جوړ کړی دی، او په هغه کې یې ځو داسې له اسلامي او افغاني فرهنګه پردۍ شوې غرب پلوې ښځې توظیف کړې دي چې د هغوئ په وسیله په افغانستان کې د ښځو د فاسدولو لپاره د غرب پروګرامونه او پلانونه تطبیق کړي. له همدې امله خو دغه وزارت خپل کارونه هم په ښارونو او د غرب د (فکري تأثیر قبلونې) په ساحو کې متمرکز کړي دي او اطرافي سیمو ته یې هیڅ پام ندی کړی، او دا ځکه چې هلته د غرب (فکري تأثیر ګذاري) ډیره ممکنه نده.

۳- **د هیواد په ښارونو کې د شرابخانو او فحشاوو د اډو جوړول**:

په افغانستان کې د امریکایي اشغال له ټینګیدو سره سم یوازې دکابل په ښار کې د (ګیسټ هاوسونو) په نامه او په نورو بیلابیلو نومونو د خارجیانو او داخلیانو تر سر پرستۍ لاندې په لسګونو (بارونه) او د فحشاء مراکز پرانستل شول، او په ازادانه ډول یې کار او فعالیت کاوه. جنسي بي لاریتوب کابل داسې په خپلې غیږ کې اخیستی وو چې که جهاد زور نه وای اخیستی نو نږدې وو چې د اشغال په لومړیو کلونو کې کابل هم د تایلند د (بنکاك) په څیر د جنس د بزنس مرکز وګرځي.
په ۲۰۰۴م کال کې د کرزي د شرمیدلې اداري د عامې روغتیا د وزارت د یوه چارواکی په استناد د ازادۍ راډیو وویل چې یوازې د کابل په ښار کې (۶۰۰۰۰ ) شپیته زره ښځې او ماشومان په بدلمنۍ اخته دي.

په یوه بل انکشاف کې په همدې کال کې په کابل کې د رابعه بلخي د ښځینه روغتون یوې کار کوونکې په ښکاره مېډیا ته وویل چې په دغه روغتون کې د ناواده شویو نجونو د (اسقاط حمل) پېښې سلګونو ته رسیدلې دي. او هغه ناواده شوې نجونې چې ژوندي اطفال زیږوي د هغوئ بچیان د روغتون لخوا هغو خلکو ته ورکول کېږي چې اولادونه نه لري.
که د امریکا په خلاف جهادي مقاومت ډېر ژر په هېواد کې خپور شوی نه وای او حالات هماغسې روان وای نو په افغانستان کې به هم د امریکا په څېر د ښاروالیو لخوا د بې پلاره (حرامیانو) د پاللو کلتور هم دود شوی وای.
دغه ډول پیغلې ټولې هغه نجونې وې چې یا یې په غربې مؤسسو کې کار کاوه، او یا هغه بې بندوباره نجونې وې چې په مکتبونو، پوهنتونونو او دولتې ادارو کې یې له ځوانانو سره جنسي ازادانه اړیکي درلودې، ځکه چې د کورونو د نجونو په هلکه په افغاني ټولنه کې دغه ډول تصور هم نشي کېدای.
غرب او امریکا غواړي د دغه ډول اخلاقي فساد په خپرولو افغاني نجونې او ځوانان د انحلال او فساد خواته ورټېل وهي، تر څو د دوئ په مقابل کې د جهادي مقاومت زور وانخلي. خو د دې فساد په مقابل کې چې د هېواد هغه باضمیره او مسلمانان ځوانان چې د هېواد په پوهنتونونو او تعلیمي ادارو کې د دغه ډول فساد په خلاف خپله کرکه او انزجار ښکاره کوي او غواړي خپله ټولنه د غرب د بېلارې فرهنګ په تېزابو کې له ویلې کېدو وژغوري هغوئ د حکومت لخوا د القاعده، تروریستو او بنسټ پالو په نومونو نومول کېږي، په ډول ډول نورو تورونو تورن کېږي، بندیان کېږي، تهدیدېږي او یا د پوهنتونو پرېښودولو ته اړ ویستل کېږي.

**څلورم عنصر ـ د جهاد او سرښندنې فطري استعداد**:

د افغانی هويت څلورم عنصر په افغانانو کې د جهاد او سرښندنې فطري استعداد او د يرغلګرو په خلاف د افغانستان د جغرافيې طبيعي موقعيت او جوړښت دی.

افغانان په فطری ډول د جهاد لپاره جوړ دي. او دا ځکه چې په جهاد کې دوه عنصره ډېر مهم وي چې يو يې (ټينګه عقيده) او بل يې (پر مشکلاتو صبر او د ستونزو په سره سينه ګالل دي). دغه دواړه عنصرونه د افغانانو د طبيعي ژوند بنسټونه تشکيلوي. د دې دواړو ترڅنګ بل شی دوسلې د استعمال دی چې اتيا فيصده افغان يې ښه په اسانۍ چلولی شي. د روسانو په مقابل کې زمونږ تر پنځو ميليونو زياتو خلکو پرمختللي جنګي تکتيکونه زده کړل، او د چريکي جنګ تر ټولو غوره تجربه يې حاصله کړې ده.

په جهاد او ازدۍ غوښتنه کې زمونږ ملت د استاذۍ هغې لوړې درجې ته رسېدلی چې د نړۍ د هر ځای مستضعفو مسلمانانو له دوئ څخه د زده کړې لپاره ديخوا ته مخه وکړه، لدې ځايه يې روحيه او تجربه واخيسته او بيا يې بېرته په خپلو هېوادونو کې د جهاد سنګرونه تاوده کړل، او له هغو خاورو يې هم د يرغلګرو د شړلو پلانونه طرح او عملی کړل، او پر مسلمانو د ورتپل شويو رژيمونو ستنې يې ور ولړزولې.

دغه ټول هغه عوامل دي چې زمونږ له ولس څخه يې يو مجاهد او باعزيمته ولس جوړ کړی دی.

امريکايان او نور غربيان په افغانانو کې د دغو عواملو د شتون پر اهميت پوهېږي، نو ځکه خو يې د جهاد، مجاهدينو او جهادی فرهنګ په خلاف نه سترې کېدونکي تبليغات پيل کړي دي، او د مظلومو خلکو د آزادۍ سپيڅلې جګړې ته هم ترويزم وايي، او غواړي پدې ډول خلک له جهاده منصرف کړي، او د غلامۍ په ببلابېلو رنګينو ځنځيرونو يې وتړي، ترڅو د تل لپاره د افغانانو د اسلامي هويت دغه عنصر ته هم د پای ټکی

کېږدي. خو د روسانو او د امریکایانو په خلاف د افغانانو جهاد او له دین سره پر قوي تړاو ټینګار دا وښودله چې غربیان به هېڅکله هم پدې کې بریالي نشي چې مسلمان افغانان به له یوې مخې په فکري او فرهنګي لحاظ تسخیر کړي. بلکې دغه پردي فکري او پوځي یرغلونه به د دوئ ذهنونو کې اسلامي مفاهیم نور هم پاخه کړي، او په ژوند کې به د هغو د عملي کولو لپاره د دوئ عزم نور هم ورکلك کړي، او د تل لپاره به د یرغلګرو په مقابل کې خپل مقدس جهاد ته ادامه ورکوي، که څه هم چې ځینې رهبران به یې لکه امیر دوست محمدخان او د ځینې پخوانیو جهادي تنظیمونو اوسني مشران تر بري وروسته دښمن ته ورتسلیم هم شي.

**پنځم عنصرـ د غرب له لوېدلي او مبتذل فرهنګ او تمدن څخه د افغانانو لرې والی:**

غربي هېوادونو په شملې پېړۍ کې د خپل عسکري استعمار په نتیجه کې ډېر اسلامي هېوادونه ایل او بیا سره بیل کړل، او هم یې هغوئ له خپل اصیل اسلامي فرهنګ څخه بې برخې کړل. خو افغانان د الله تعالی په فضل او بیا وروسته په خپلې میړانې او له یرغلګرو سره د جګړو په برکت له دغې وبا تر ډېره حده لیرې پاتې ول، که څه هم چې د شاه امان الله، ظاهرشاه او د داود مفسدو رژیمونو پر افغانانو د غربي فرهنګ د ورتپلو په لاره کې ډېرې هڅې کړې وې.

د غرب له مادي او الحادی تمدن څخه د لیرې والي تر ټولو لویه فایده دا ولیدل شوه چې په ډېره لږه موده کې ټول ملت د روسانو په مقابل کې د جهاد په صف کې ودرید ، او دروسانو مادیاتو ته ورتسلیم نه شو.

امریکا هم له همدغه ډول یوې نتیجې په وېره کې ده، نو ځکه خو غواړي چې د (ډرګ) او (سیکس) د فرهنګ په خپرولو زمونږ ټولنه او ځوانان هم د (بې غیرتۍ) او (ځان بایلودنې) په طاعون اخته کړي، او له همدې امله یې د ملیونونو ډالرو په سرمایه بېلابېلې فکري او فرهنګي پروژې په کار

اچولې دي، او په هغو کې يې ښه ډېر مزودر او وطن پلورونکي افغانان په کار ګومارلي دي چې په افغانانو کې د غرب فکر، فرهنګ او نظريات خپاره کړي. دغه خلك تر پرديو ډېر خطرناک دي ځکه چې دوئ پردي نظريات په ډېر منافقانه ډول په افغاني نومونو او اصطلاحاتو افغانانو ته وروړاندې کوي، او راتلونکي نسلونه مو په غرب پورې تړي. خو دا چې اسلامي معتقدات او اسلامي هويت زموږ په ژوندانه کې تر هر څه زيات حاکميت لري نو هېڅکله به امريکا او نور يرغلګر زموږ ولس له خپل اسلامي افغاني هويت څخه محروم نه کړای شي، البته د دغه هويت په ساتنه او پالنه کې تر بل هر چا د قلم د خاوندانو رول زيات دی چې په تر سره کولو يې بايد خپل ملي او اسلامي مسؤوليت په غاړه واخلي.

## په افغانستان کې یوه بله جګړه هم روانه ده

امریکا په افغانستان کې د خپلې پوځي جګړې تر څنګ یوه بله خطرناکه جګړه هم روانه کړې ده، او هغه د اسلامي فکر او د افغان ولس د ټولنیز جوړښت د له منځه وړلو لپاره فکري جګړه ده.
ریښتنی اسلامي فکر او د افغانانو دین محوره ټولنیز جوړښت په افغانستان کې د امریکا د پلانونو د پلي کېدلو په لاره کې دوه هغه مهم خنډونه دي چې په هېڅ صورت د امریکا لپاره د منلو نه دي.
ریښتني اسلامي فکر ځکه ورته د منلو ندی چې هغه په هېڅ صورت له غرب څخه له راصادرو شوو افکارو او عقایدو سره پیوند نه اخلي. ځکه چې اسلام نه له کمونیزم سره پیوند اخلي، او نه هم د پانګه وال نظام له فکري مبادیو لکه دیموکراسي، سیکولریزم، لیبرالیزم، هیومنزم، ګلوبلایزیشن او مادیت څېلي مسیحیت سره د پخلاینې او Peacefull co existence (سوله ییز ګډ موجویت) روحیه لري. بلکې اسلامي فکر په خپل ټول توان د پردیو را واردو شویو نظریاتو په مقابل کې جنګېږي، او پدې لاره کې ستوماني او غفلت نه مني.
کیدای شي ځیني خلک و وایې چې ځینې اسلامي تنظیمونه، احزاب او حتی دولتونه له غربي نظریاتو سره یوځای ګوزاره کوي او د نړۍ له کفري نظامونو سره متبادل مصالح لري، چې پدې ډول یې هم د جګړې او ټکر مخه نیولې او هم د مادي پرمختګ پر لاره روان شوي دي.
د دې شبهې یواځینی او حقیقي ځواب دا دی چې دغه ډول احزاب، دولتونه او ټولنې هېڅکله هم په ریښتینې او حقیقي معنی اسلامي ندي، بلکې هغوئ یوازی د (اسلامي) کلمه د دې لپاره په ځان پورې لګولې ده چې هم د اسلامي ټولنې له امیتازاتو څخه برخمن پاتې شي او هم د غرب

هغه ارزښتونه خپل کړي چې یوازې د (خوند) او (ګټې) پر بنسټونو ولاړ دي.

دغه ډول احزاب او دولتونه یوازې اسلام ته منسوب دي، خو د اسلام سیاسي نظام، د (ولاء او براء) اسلامي عقیدې او د ژوند په ټولو چارو کې د اسلامي شریعت تطبیق ته التزام او تعهد نه لري. که چېرې دغه احزاب او نظامونه په رښتیا (مسلمان) وي نو باید په هر څه کې (اسلامي عقیده) او (اسلامي شریعت) خپل نصب العین وګرځوي، او د دنیا له کفري دولتونو او نظامونو سره په یو ډول اصولو او قوانینو ونه چلېږي.

او د افغاني ټولنې اسلامي اجتماعي ترکیب ځکه امریکا ته دمنلو ندی چې دلته لاتر اوسه د افغانانو ټولنیز ژوند پر قبیلوي بنسټونو ولاړ دی او کورنۍ د افرادو روابط تنظیموي. دلته لاتر اوسه ټولنه دومره پاشل شوې نه ده چې افراد یې هر هغه څه وکړي چې غواړي یې. د افغانانو پر ټولنه لا تر اوسه دین حکمراني کوي، او عالمان او مشران په ټولنیزو چارو کې د تصمیم او فیصلې مراجع ګڼل کېږي.

په افغاني ټولنه کې لاتر اوسه دومره بې بندوباري نشته چې لویدلې، سپک او د ټولنې له دین او عرفونو وتلي او پردي شوي خلک دې د ټولنې قیادت ته ورسېږي.

غرب غواړي چې د افغانانو دغه ټولنیز جوړښت چې دوئ یې د تل لپاره په نورو ملتونو کې له منحل کېدلو ژغورلي او د هر وخت لپاره یې د یرغلګرو د مقابلې لپاره یو موټی او په سنګر کې ساتلي دي له منځه یوسي، او دلته هم داسې یو وضعیت حاکم کړي چې هېڅوک دې پر بل چا کار نه لری، بلکې پردې دې ږدي چې افراد هر څه کول او هر ډول اوسېدل غواړي هماغسې وکړي.

که چېرې غربیان وکولی چې شي د افغانانو دغه ټولنیز جوړښت مات کړي نو په هغه صورت کې به بیا غرب ته آسانه وي چې زمونږ د ټولنې ټول دیني، اخلاقي او اجتماعي ارزښتونه او جوړښتونه تبدیل کړي، او افراد

یې په خپل ځان پسې د غرب پر لاره روان کړي. په هغه وخت کې به بیا ځوانان د یرغلګرو مقابله نه کوي، بلکې یرغل ته به یې لاره هواروي، او د یرغلګرو په صف کې به درېږي. په هغه وخت کې به بیا دین، جهاد، هجرت، مقاومت، آزادي، خپلواکې او د خپلو تاریخي او ټولنیزو ارزښتونو ساتل او پالل خلکو ته له موډه لویدلې او بې ارزښته خبرې ښکاري، او د بېرته پاتې والي نښې به یې ګڼې، لکه همدا ا وس چې یې ځینې غرب پلوي لیکوالان او سیکولر عناصر خلکو ته ور تلقینوي.
همدې هدف ته د رسېدلو په مقصد امریکا په افغانستان کې د خپلې ښکاره او پوځي جګړې ترڅنګ یو بله پټه او خاموشه جګړه هم روانه کړې ده چې په لاندې ډګرونو کې په شدت سره جریان لري:

## د خاموشې جګړې ډګرونه

**۱ـ د حاکمیت ډګر**:

د حاکمیت ډګر چې د ولسونو په ژوند کې د هغوئ د ټولو چارو د تنظیم لپاره تر ټولو مهم ډګر دی تر هر څه مخکې د یرغلګرو هدف ګرځي.
امریکا هم پر افغانستان تر خپل یرغل سمدستي وروسته د حاکمیت ډګر په ټوله معنی اشغال کړ، او تر اشغال وروسته یې لاندې دوه ډوله خلک پدې ډګر کې پر افغانانو ورمسلط کړل:

**د حاکمیت په ډګر کې د امریکایانو دوه ډوله ملګري**:

**لومړی ډول**:لومړی ډول خلك هغه سیکولر او غرب پلوي عناصر دي چې په تمامه معنی له خپل دین، خپل ملت، خپلو ارزښتونو او خپل افغاني فرهنګ څخه پردي شوي دي، یوازې د ډالرو راټولول او دخوندونو حاصلول یې د ژوند اساسي مقصد دي.
دغه غرب پلوي او سیکولر عناصر په قدرت کې د پاتې کېدلو او د امریکایانو د اشغال د تداوم لپاره د خپل ولس په حق کې د هر ډول جنایت تر سره کولو ته حاضر دي. او له همدې امله خو په افغانستان کې د

امریکایانو د اوږدې مودې لپاره د پاتې کېدلو تړونو نه هم امضاکوي، او د هغه دمشروعیت لپاره وهمي او له ځانه جوړ کړي دلائل هم تراشي.
**دوهم ډول:** دوهم ډول یې هغه جنګي جنایت کاران، غله، لوټماران، د ولسونو جنګوونکې نشنلستان او ملي خائنین دي چې قدرت ته د رسېدلو لپاره د هجرت او جهاد له اهدافو انحراف ته، او هم له روسانو، کمونستانو، اروپایانو او په پای کې له امریکایانو سره ایتلاف ته حاضر شول.
دغه ډله خلک د امریکایې اشغال په چوکاټ کې په قدرت کې د شریک پاتې کېدلو په مقصد د امریکایانو لپاره (ملېشه توب) ته هم تیار شول، او خپل اتباع یې د امریکا په لاس په جوړ شوي پوځ، پولیسو، استخباراتو، ملېشو او اربکیانو کې تنظیم کړل. او هم د اشغالګرو په ګټه د خپل ملت په خلاف جګړې ته تیار شول.
امریکا نه یوازې دغه ډول خلک دحاکمیت په ډګر کې پر افغانستان مسلط کړل، بلکې د حاکمیت نظام او قوانین یې هم داسې جوړ کړل چې یوازې همدغه ډول خلک ورته لاره پیداکړي.
دغه ډول حاکمیت ولس د نظام، او نظام د ولس په خلاف د جګړې په صف کې ودرول. له دغې لوبې د امریکا هدف دا وو چې د نظام چلوونکو ته ووایې چې تاسې هېڅکله زموږ له پوځي موجودیت پرته دلته حکومت نشئ کولی، نو که غواړئ چې په قدرت کې پاتې شئ باید زموږ پوځي موجودیت ته مشروعیت ورکړئ.
د دغه ډول حاکمیت په شتون کې امریکا په سیمه کې افغانستان د خپلو استراتیژیکو اهدافو د تحقق لپاره د خېز د تختې په حیث کارول غواړي، او دا یوازې په هغه صورت کې ممکن دي چې امریکا دلته د یو ریښتني اسلامي حکومت د قائمیدلو مخه ونیسي.
امریکا د افغانستان تر نیولو وروسته پدې هېواد کې د حاکمیت لپاره د (ډیموکراسۍ) تګلاره رواج کړه، او دا هغه تګلاره ده چې انسانان ورکې د

تدين، عقل، صلاحيت او صالحيت پر اساس نه تلل کېږي، بلکې يوازې د حيواناتو په څېر شميرل کېږي، او فيصله ورکې د حق پر معيار نه بلکې د شمېرې د ډېروالي پر اساس کېږي.

د حاکميت په ډګر کې غرب د ديموکراسۍ تګلاره او نصاب د افغانانو لپاره دومره ډېر وستايه او تبليغات يې ورته وکړل لکه همدغه چې يواځينۍ د حاکميت کاميابه تګلاره وي. حقيقت دا دی چې ډيموکراسي يوازې د هغو ولسونو لپاره د حاکميت يوه تګلاره کېدلی شي چې يا خو دين نه لري، او يا هم نه غواړي چې د خپل ژوند چارې د خپل دين مطابق تر سره کړي.

خو مسلمانان چې دين يې ورته د ژوند د ټولو چارو د سمبالولو لپاره نظام، تګلاره او قوانين لري، هېڅکله نه ديموکراسۍ ته ضرورت لري، او نه يې تطبيقولی شي. او که يې خامخا تطبيقول غواړي نو دا بيا يوازې په هغه صورت کې ممکن دي چې – نعوذبالله – دين ورته پرېږدي او ديموکراسي خپله کړي.

اسلام او ديموکراسي دواړه په هېڅ صورت کې نه سره يوځای کېږي، ځکه چې اسلام له مسلمانانو دا غواړي چې ژوند دې هغسې وکړي چې الله جل جلاله يې غواړي. خو ډيموکراسي بيا وايي چې انسانان الهي احکامو او لارښوونو ته ضرورت نه لري، بلکې د خپل ژوند د چارو د تنظيم لپاره په خپله د هر ډول قوانينو د جوړولو حق لری، او هېڅوک يو بل څوک د ژوند په يوې خاصې طريقي او يا يوې خاصې عقيدې ته په التزام نشي مجبورولی. په ډيموکراسۍ کې دا د انسان خپله خوښه ده چې کوم دين مني، او که له سره هېڅ دين او شريعت نه مني.

امريکايان او نور غربيان نن ورځ په افغانستان کې تربل هر څه د ډيموکراسۍ د خپرولو او نافذولو لپاره ډېر کار کوي، او دا ځکه چې ډيموکراسي له دين څخه د مسلمانانو د ويستلو يوه (موډرنه) (نرمه) او

(پرکششه) لاره ده. او يوازې له همدې لارې ممکن دي چې د شريعت د تطبيق او د اسلامي نظام د نافذيدلو مخه دې ونيول شي.

د دې ترڅنګ چې امريکايان د سياست او تقنين په ډګرونو کې د ډيموکراسي شعارونه پورته کوي په عمل کې يې هم د افغانستان اداره داسې مفسدو خائنو، رشوت خورو او بې رحمه خلکو ته ورسپارلې چې په افغانستان کې يې د فساد، اختلاس او رشوت اخيستلو نړيوال ريکارډ جوړ کړ.

د حاکميت په ډګر کې امريکا د دې لپاره دغه ټول جنايات تر سره کړل تر څو افغانان په مستقيمه توګه د خپل سياسي، اجتماعي او اقتصادي ژوند د تنظيم لپاره يوه قوي او پر اسلامي اصولو ولاړه اداره ونه لري. ځکه چې که دلته يوه قوي مستقله او اسلامي اداره منځته راشي، په هغه صورت کې به بيا نه دلته په زرګونو غربي مؤسسې په آزاد ډول کار کولی شي، او نه به هم دلته د امريکا لنډمهاله او اوږدمهاله اجنډاوې عملي کېدلی شي.

**۲ـ د دين او فکر ډګر:**

امريکا پر افغانستان له خپل يرغل وروسته خپله توجه تر هر څه زياته د ديني او فکري ډګرنو تسخيرولو ته واړوله، او پدې کار کې يې داسې تدابير او اقدامات په کار واچول چې په لنډه موده کې يې د عامو افغانانو ديني او فکري ژوند ته تر ډېره حده تغيير ورکړ. پدې اړه يې ځينې تر سره شوي اقدامات يې په لاندې ډول يادولی شو:

### د دين او فکر په ډګر کې د اشغالګرو امريکايانو اقدامات

**۱ – په عملي لحاظ د دولت په عدلي او قضايي ارګانونو کې د شريعت د تطبيق مخنيوی:**

امريکا د افغانستان لپاره داسې يو اساسي قانون جوړ کړ چې د اسلامي شريعت د تطبيق پر مخنيوي تأکيد کوي، او هغه داسې چې اوسنی اساسي

قانون د (ډیموکراسۍ تحقق) او د (بشر د حقوقو ملاتړ) د دولت مکلفیت ګڼي. او دا ښکاره خبره ده چې ډیموکراسي او د بشر د حقوقو اعلامیه دواړه غربي نظریات دي، او اسلامي شریعت ته ورکې هېڅ ځای نشته.

همدارنګه د اوسني اساسي قانون په اومه ماده کې راغلي: **(دولت د ملګرو ملتونو د منشور، د بین الدول معاهدو، د نړیوالو میثاقونو چې افغانستان له هغو سره تړاو لري او د بشري حقوقو د نړیوالې اعلامي رعایت کوي)**. او دا هم ښکاره خبره ده چې یاد شوي تړونونه، معاهدې او میثاقونه ټول د اسلام لیري د غربیانو د سیاسي او اجتماعي مصالحو د تحقق لپاره جوړ شوي دي.

که څه هم چې په اوسنې قانون کې د خلکو د تېرایستلو په مقصد دا لیکل شوي چې د افغانستان دین اسلام دی، او د شریعت په خلاف به قوانین نه جوړېږي، خو دا خبره خپله همدغه قانون په لسګونو ځایه نقض کړې ده، او د اسلام مخالف احکام یې صادر کړي چې ځینې مثالونه یې همدا پورتني یادشوي مثالونه دي.

دا چې اوسنی اساسي قانون اساساً د(ډیموکراسۍ د تحقق) او (د بشر د حقوقو) د تطبیق لپاره جوړ شوی دی، نو ځکه خو د دې قانون له نافذېدلو وروسته په ټول افغانستان کې په هېڅ ځای کې د شریعت یو(حد) هم تطبیق نه شو. نه چېرې قاتل په هغه ډول قصاص شو چې شریعت یې حکم کړی، نه چېرې زاني رجم شو، نه د غله لاس پرې شو، نه شرابي په دورو ووهل شو، نه د فحشاء مخنیوی وشو، او نه هم د ارتداد مخه ونیول شوه. بلکې ددې ټولو د خپرېدو لپاره نوره هم زمینه برابره شوه، او دولت یې ترشا ودرید.

۲ – **د اسلام یو لیبرال او غربي تعبیر رامنځته کول**:

امریکایانو له خپل یرغل وروسته د ټولو هغو علماؤ، دیني مدارسو او تعلیمي نصابونو مخه ونیوله چې اسلام یې د غربي فکر له تاثیراتو لیري او د دې امت د سلفو رحمهم الله تعالی د فهم مطابق تعبیراوه. او د دې

هرڅه پر ځای يې د داسې خلکو او داسې عالم ډوله کرايې اشخاصو رامنځته کېدلو ته زمينه برابره کړه چې په خپلو هڅو او نصابونو يې د (منځلاريتوب) ترعنوان لاندې د اسلام داسې تعبير وړاندې کړ چې د غربي نظرياتو لکه (ډيموکراسۍ)،(ليبراليزم)، ريشنلزم (د وحېې په مقابل کې عقلانيت) او سيکولريزم موافق دی. دغه جهتونه هڅه کوي چې غربي مفاهيم او نظريات خلکوته د اسلام په نامه ور معرفي کړي، او د اسلام حقيقي تعبير او تفسير د (بنسټپالنې) په نامه رد کړي.

**۳ - په ټولنه کې د تزکيې او احسان له منځه وړل،او پرځای يې د (منحرف روحانيت) او (بې لارې پيرانو) لپاره د نفوذ زمينه برابرول:**

تزکيه او احسان د اسلامي روحانيت اصلي نوم، د پيغمبر صلّی الله عليه وسلّم اساسي وظيفه او د مسلمانانو معنوي مکلفيت دی. د تزکيې او احسان لپاره هم اسلام داسې روښانه تګلاره لري لکه څنګه يې چې د عباداتو او معاملاتو لپاره لري. او مقصد يې دا دي چې په ټولنه کې پاکې، عفت، نيک اخلاق، له الله تعالی څخه وېره، له حرامو څخه ځان ساتل او له بې ځايه هوسونو څخه بې رغبتي رامنځته شي.

خو امريکا زموږ په ټولنه کې د دې هر څه دښمنه ده، له همدې امله خو يې د نوي نسل د بې لارې کولو په مقصد په زرګونو وسيلې په کار اچولې دي، او رېښتني مصلحين، علماء، مربيان او مسلمان دعوتګر يې له صحنې وېستلي، او له بېلابېلو بنديزونو سره يې مخ کړي دي.

خو بالمقابل يې بې دينه (سيکولرو پيرانو)، (ډالري حضرتانو)، منحرفو او دجالي روحانيانو، درباري ملايانو،سيکولر ديموکرات مجاهدينو!!؟ او د بې لارې عقايدو دعوتګرانو ته د فعاليت پراخه زمينه برابره کړې ده. همدغه د معنويت درواغجن دعوه داران د جهاد او مجاهدينو په خلاف ولاړ دي، او د دښمن له لوري د حقيقي اسلام په خلاف استعمالېږي. او د همدوئ په وسيله د امريکا اشغال او او د اشغال تر سيوري لاندې د کفارو

لخوا د جوړ شوي نظام وجود ته مشروعیت ورکول کېږي. همدوئ د امریکا د فکري جګړې کرایې (روحاني اربکیان) دي چې له یرغلګرو سره د ملت په فکري تسخیر کې مرسته کوي.

**۴ - ځوانان له اولویاتو څخه په فېشن، لوبو او د پردیو په تقلید مصروفول:**

ځوانان چې د ملتونو رښتیني ځواک او د مستقبل چارواکې دي باید په فکري او فرهنګي لحاظ په اولویاتو او تعمیري نظریاتو مصروف شي. په هغوئ کې باید د قربانۍ، میړانې، له دین، هېواد او ملت څخه د دفاع احساس پیدا کړای شي، او د پردیو په مقابل کې باید په هغوئ کې حساسیت وپالل شي .

خو امریکا په اشغال شوي افغانستان کې د دغه ځواک د له منځه وړلو په مقصد هم بېلابېل تدابیر او اقدامات په کار واچول. او د دې لپاره چې ځوانان په مهمو اسلامي او ملي مسائلو کې مصروف نشي هغوئ یې په (کرکټ) او نورو بېلابېلو لوبو د افراط تر حده مصروف کړل، او د هغوئ د ذهني مصروفولو لپاره یې تلویزوني کانالونه،(ایف ایم راډیوګانې)، هندي، ترکي او امریکایي سریالونه، د ادبیاتو او هنر په نامه د (بې ادبۍ) او(بې هنرۍ) بنډارونه، د پېغلو او ځوانانو ترمنځ د معاشقې او یارانې لارې چارې او نور مصرفیتونه ایجاد کړل. او پدې ډول یې د ښارونو او کلیو ځوانان او پېغلې د جدیت او عمل پر ځای په موډ، فیشن، لوبو او د پردیو په تقلید مصروف کړل.

**۳ـ د ټولنیز ډګر متشنجول:**

امریکایانو په ټولنیز ډګر کې هم خپله فسادي اجنډا په لاندې ډول تطبیق کړه :

۱ –له خپل راتګ سره سم یې په شمال کې ځینې مفسدې او نشنلستې ډلې دیته وهڅولې چې په هغې سیمه کې پر پښتنو قومونو ور وبلوسي، او

همداسې وهم شول. پښتانه قومونه د سیمې پرېښودلو ته اړشول، زمکې یې ونیول شوې، او په عزتونو یې تېري وشول، چې د کرزي د ادارې د حقیقت موندنې د وزیرانو ډلې هم چې د کرزي د سلاکار وزیر (عارف نورزي) په مشرۍ ورلېږل شوې وه دا هرڅه تأییدکړل. دې کار په ټولنه کې حسادتونه راوپارول، او د افغانې ټولنې د قومونو تر منځ د یو والي کوشیرونه یې مات کړل.

۲–امریکایانو ځینې اقلیتونه لکه شیعه ګان او اسماعیلیان تر خپلو وزرو لاندې ونیول او د اکثریت په خلاف یې استعمال کړل. د امریکایانو د دې احسان مننه واک ته رسېدلي اقلیت پدې ډول وکړه چې په قطعي ډول یې نه یخپله د اشغال په خلاف په فرض جهاد کې برخه واخیسته، او نه یې هم نور خلک په خپلو سیمو کې مقاومت ته پرېښودل.

۳– افغاني ټولنه چې یوه (مرکز پاله) او متحده ټولنه وه د امریکایانو په لمسون او شیطانې پالیسیو په یوه وېشلي ټولنه بدله شوه.

۴ –امریکایانو په ټول توان او ډېرو مالي مصاریفو هڅه وکړه چې افغاني دیني ټولنه په ښارونو کې په یوې (لبرالې) او سیکولر (مدني ټولنې) بدله کړي، او پدې ډول مرکزې اداره کمزورې او د غربې مؤسساتو په لاس د جوړې شوې (مدنې ټولنې) تر فشار لاندې وساتي، او هر وخت لدې لارې خپل پروګرامونه ورباندې عملي کړي.

دغه یاد شوي او نور ډېر اقدامات دي چې د امریکا د پوځي جګړې تر څنګ د هغې د فکري جګړي وسائل تشکیلوي، او لدې لارې امریکا غواړي د خپلي پوځي ماتې په صورت کې زموږ ملت د فکري جګړې له لارې مغلوب کړي، چې لدې مغلوبیت څخه راوتل بیا ناممکن کار دی، او دا ځکه چې هغه ولسونه چې غرب په فکري لحاظ مغلوب کړي دي بیا هېڅکله هم دغربیانو له غلامۍ وتلي ندي.

# ديموكراسي څه شی ده؟

**د ډېموکراسۍ د پېژندلو اهمیت**:
د ډیموکراسۍ په اړه د اسلام حکم او موقف واضح کول ځکه ډېر مهم دي چې دې شیطاني پدیدې ټوله دنیا په مخه کړې ده، او هر هغه څوك چې دغه پدیده نه مني او ایمان ورباندې نه لري ټوله دنیا ورپسې راپورته کېږي، او په خلاف یې د فکري او پوځي جګړې هر ډول وسائل او اسباب په کار اچول کېږي.
ډیموکراسي یوازې یوه سیاسي نظریه او د حکومت کولو یو شکل ندی، بلکې هغه هم دین او مذهب دی، او هم اخلاق موډ او فېشن. هم دولت سیاست او فوځ دی، او هم اقتصاد. هم فلسفه ده او هم د ژوند لپاره یوه اجتماعي شیطاني تګلاره.
د ديموکراسۍ په اړه ما په خپل بل کتاب (فکري پوهنه) کې په تفصیل سره په تقریبا ۹۰ صفحو کې بحث کړی، خو د دې لپاره چې دغه شیطاني دین په مختصر ډول یو څه پدې کتاب کې هم معرفي شوی وي په اړه یې لاندې مفاهیم یې له لوستونکو سره شریکووم:
ډیموکراسي کله او په کوم ځاي کې را پیدا شوه؟
د پیداکېدو عوامل او اسباب یې څه وو؟
د اسلام په اړه د ديموکراسۍ موقف څه دی؟
او آیا د اسلامي ډیموکراسۍ په نامه هم څه شته؟ پدې معنی چې آیا ډیموکراسي اسلامي کېدای او اسلام ديموکرات کېدای شي؟
دا هغه څو مشخصې پوښتنې دي چې غواړو پدې بحث کې له عواطفو او احساساتو لیرې د دلائلو په رڼا کې ورباندې څو خبرې وکړو، او دا ځان

ته روښانه کړو چې د مسلمانانو په حیث زمونږ موقف باید ددیموکراسۍ په اړه څه وي؟
مخکې تر دې چې د دیموکراسۍ د معنی او حقیقت په اړه خبره وکړو دا به غوره وي چې د هغې د تاریخي پس منظر او د منځته راتلو د ځای او حالاتو په اړه یو څه وویل شي.
دیموکراسي د اروپایانو او امریکایانو نوی دین دی چې د مسیحیت د انحراف په نتیجه کې رامنځته شوی، او غربیانو د خپل ژوند لپاره د قانون او نظام په حیث منلی دی.
ډیموکراسي یوازې یوه نظریه نه ده، بلکه هغه د معاصر غرب هغه تر ټولو مهم او مقدس مادي او معنوي ارزښت دی چې دوئ یې په نړۍ کې د خپرولو او پر ولسونو د تحمیلولو لپاره خپل ټول وسائل په کار اچوي.
منفعت پرست غربیان د یوې عادي نظریې لپاره دومره قرباني نه ورکوي، او نه دومره دفاع ورڅخه کوي. دا نن چې د دیموکراسۍ د خپراوي په لاره کې په زرګونو میلیارده ډالر مصرفېږي، او په لکونو انسانان یې د دفاع په خاطر قرباني کېږي، او په لکونو انسانان پدې جرم وژل کېږي چې ولې ډیموکراسي نه مني؟ دا هر څه پر دې دلالت کوي چې پدې زمانه کې همدغه د غرب دین دی چې تر نصرانیت او بل هر دین یې غوره ګڼي.
په اوسنیو حاکمو نظامونو کې که مسلمان (مسلماني) پریږدي هېڅوک محاسبه نه ورسره کوي. که نصراني (نصرانیت) پریږدي هم څوك مشکل نه ورسره لري. همدارنګه که یهودي (یهودیت) پریږدي هم په ډېر بد نظر نه ورته کتل کیږي، خو که څوك په دغو نظامونو کې دیموکراسي پریږدي، نو هغه داسې ګڼل کېږي لکه چې انسانیت یې پرې ایښی وي چې د دې نوي دین د حکم مطابق باید یا په زوره دغه دین ورباندې ومنل شي، او یا هم باید محوه شي.
همدارنګه که څوك په غرب کې دیموکراسي نه مني نو په ټول غرب کې یې ځای نشته، له همدې امله خو په غرب کې دیموکراسی نه منل پیغور او یو

ډول کفر ګڼل کېږي. په غرب کې د میسحیت د خپراوي لپاره دومره مصارف نه کېږي لکه څومره چې د دیموکراسۍ د خپراوي لپاره کېږي.
په هند کې هم دهندویزم د خپراوي لپاره دومره مصارف نه کېږي لکه څومره چې د دیموکراسۍ لپاره کېږي. په اسلامي هېوادونو کې د غرب پلوو نظامونو له لوري هم د اسلام د خپراوي لپاره دومره مصارف نه کېږي لکه څومره چې د دیموکراسۍ د خپراوي او پر ملتونو او دولتونو د هغې د ورتپلو او تحمیلولو لپاره کېږي. نن په نړۍ کې ولسونه د دې لپاره وژل کېږي او په سلګونو او زرګونو انسانان په دې خاطر له خاورو سره خاوري کېږي چې هغوئ دیموکراسي نه مني.

**د دېموکراسۍ تعریف**:

په لغوي لحاظ دیموکراسي یوه یوناني کلمه ده چې له دوو کلمو څخه چې یوه یې ډیموس (Demos) چې د (ولس) په معنی او بله یې کراتوس (cratos) چې د (واك او حکم) په معنی ده ترکیب شوې ده، چې وروسته بیا د زمانې په تېریدو لدې دوو کلمو څخه دیموکراسي جوړه شوې ده چې معنی یې (ولسواکي) یا (د ولس حاکمیت) دی، پدې معنی چې د حاکمیت حق به د خلکو وي، نه د الله تعالی، او قانون به خلك ځانته پخپله جوړوي، نه دا چې د الله تعالی له لوري رالېږلی شوی دین به پر خلکو حاکم وي.
تر دې ځایه خو د دیموکراسۍ لغوي معنی شوه. غربیانو د ډیموکراسۍ لپاره اصطلاحي تعریف هم په لاندې ډول غوره کړی دی:

"Government of the people, by the people, for the people"

(دخلکو حکومت، دخلکو لخوا، دخلکو لپاره).

د دیموکراسۍ اصطلاحي تعریف هم د لغوي تعریف په څېر په خلکو ور څرخي چې نه ورکې د الله ﷻ ذکر شته، نه ورکې د دین ذکرشته، او نه هم ورکې د حق ذکر شته.

دا چې د دیموکراسۍ دغه نوی دین څنګه رامنځته شو؟ او هغه ته اروپايانو او بيا وروسته ټولو غربيانو څنګه دومره اهميت ورکړ چې تر دينونو يې هم پورته وګڼله؟ دا يوه ډېره ترخه کيسه لري چې په لاندې کرښو کې يې په لنډو ټکو کې يادوو:
په اروپا کې له نن څخه تقريبا درې سوه کاله مخکې اروپايانو يو طبقاتي ژوند درلود چې هغوئ ټول ورکې په لاندې درې طبقو ويشل شوي ول:
اوله طبقه د دوئ حاکمان، بادشاهان، رئيسان او په بادشاه پورې تړلي خلك ول.
دويمه طبقه يې ديني اشخاص ول چې ځانونه يې د کليسا له لارې د الله تعالی ممثلين بلل.
او دريمه طبقه يې عام خلك وو چې د مخکنيو دوو طبقو په خدمت کې به ول.
بادشاه خپل حاکميت پر خلکو يو الهی حاکميت ګاڼه، بادشاهانو سره دا تصور وو چې په موږ کې چې د بادشاهۍ يا حاکميت کوم صلاحيت پروت دی دا موږ خپله ګټلی ندی، بلکې دا د الله تعالی له لوري موږ ته راکړل شوی دی. نو پر همدې بنا هر هغه څوك چې د دې اسماني فيصلې مخالفت کوي نو بايد هغه ته سزا ورکړل شي. او د دې لپاره چې د دي اسماني ورکړل شوي صلاحيت تأييد او توثيق دکليسا لخوا هم وشي نو بادشاهان دېته اړ ول چې دکليسا د مشرانو تأييد حاصل او خپل قانونيت او مشروعيت د هغوئ له لوري هم تثبيت کړي.
کليسا په هغه وخت کی د خپل تحرف شوی مسيحيت ممثله، معلمه او نماينده وه. د مسيحيت دين لا هماغه وخت دومره تحريف شوی وو چې هر پاپ به ځان په مستقل ډول د الله ﷻ نماينده ګاڼه، او خلکو ته به يې ويل چې که څوك الله تعالی ته توبه باسي، او يا د خپلې ګناه مغفرت غواړي، نو د توبې يواځنۍ لار يې دا ده چې کليسا ته ورشي، او د ټکس په بدل کې د کليسا له پادري يا کشيش څخه د خپلې ګناه د ښنل کېدو (چك) تر لاسه

کړي، ځکه چې په مسیحیت کې ځوك مستقیما له الله تعالیﷻ څخه بخښنه نشي غوښتلی.
کلیسا د خپل دیني استبداد په زور د انسان او الله تعالی ﷻ تر منځ د روحانیت او معنویت رابطه پرې کړې وه، او خلك مکلف وو چې یوازې باید د پادري له لارې له الله تعالی سره رابطه وکړي، او دا نو بیا د کلیسا خوښه وه چې چاته یې بخښنه کوله او چا ته یې نه کوله، او پر چا یې په دنیا کې د انکویزیشن (محاکمې) او د تعذیب حکم صادراوه.
مذهبي استبداد دې مرحلې ته رسېدلی وو چې یوځل په روم کی د روم مذهبي مشر د هغه وخت د فرانسې له بادشاه څخه خفه شوی او هغه ته په غوسه شوی وو او هغه یې له خپل رحمت څخه محروم اعلان کړی وو چې په نتیجه کې یې په هغه وخت کې خلك د فرانسې د بادشاه په خلاف را پورته شوي وو او ورته یې ویلي وو چې ته نور تر هغه یو قانوني مشر نه یې چې تر څو (پاپ) درته بخښنه کړې نه وي. د فرانسي بادشاه مجبور شو او د روم مذهبي مشر ته ولاړ او هلته یې څلور ورځې د کلیسا د دیوال سیوري ته په یخنۍ او واورو کې د پاپ دربار ته عذرونه او زارۍ کولې، خو هغه بخښنه نه ورته کوله. څلور ورځې د ذلت په حالت کې هلته ولاړ وو او توبه یې نه ترې قبلېدله چې بالآخره یې په ډېرې خوارۍ هغه راضي کړ او د خپلې بادشاهۍ مشروعیت یې ورڅخه تر لاسه کړ.
همدارنګه کلیسا پر خلکو مالي حاکمیت هم مسلط کړی وو، او له خلکو به یې د هغوئ د زمکو حاصلات او نور مالونه په بېلابېلو مذهبي ټکسونو او مالیاتو د شاهي پولیسو په زور راټولول. دا چې دوئ د پادشاه د پولیسو په زور له خلکو د هغوئ مالونه اخیستل، نو ځکه خو یې له بادشاهانو سره یو تړون او تعهد درلود ، او هغه پدې ډول وو چې پاپانو به بادشاهانو ته ویل چه مونږ به پر خلکو ستاسې حاکمیت ته مشروعیت ورکوو، او تاسې به موږ ته له خلکو څخه د خپلو پولیسو په زور دکلیسا مال او متاع راټولوئ.

اروپایانو په هغه وخت کی صنعتي ژوند نه درلود ، هلته صنعت او تجارت وروسته رامنځته شو، په هغه وخت د اروپایانو ژوند پر کرنه او مالدارۍ ولاړ وو چې اکثره حاصل به یې ورڅخه بادشاه او کلیسا په زوره اخیسته، او یوازې یوه لږه برخه به یې چې پاتې کېده چې هغه به یې یو څه تخم ته ساته او په نور به یې په ډېرې سختۍ خپل ژوند تېراوه، چې نه به ورباندې مړه کېدل، او نه به یې د عزت ژوند ورباندې تېرولی شو.

عام خلك به د حاکمو دواړو طبقو تر منځ لکه د ژرندې د دوه تیږو تر منځ اوړه کېدل. په هغه وخت کې چې خلك څومره له بادشاهانو تنګ وو په همدومره اندازه له خپل (دین) او د دین له (متولیانو) هم بېزاره ول.

هماغه وو چې د دغه وضعیت په نتیجه کې اروپایان د خپلو بادشاهانو او بادشاهي نظامونو او هم د خپلو مذهبي مشرانو په خلاف راپورته شول او انقلاب یې اعلان کړ. انقلابیانو داسې شعار اوچت کړ چې: (وروستی بادشاه د وروستي مذهبي مشر په کولمو غرغره کړئ). یعنې پادري مړ کړئ، کولمې یې را اوباسئ، او په هغو بادشاه غرغره کړئ، چې په یوه وخت کې به له دواړو ظالمو طبقو خلاص شئ.

په هغه وخت کې خلك د مسیحیت او حکومت په خلاف چې دواړه یو د بل ملاتړي وو را و پارېدل، او د دین او بادشاهانو په خلاف پدې جګړې کې په زرګونو انسانان ووژل شول، او حاکمان، بادشاهان او مذهبي مشران هم له منځه لاړل. کلیساګانو ته اور وراچول شو، او تر هغه وخته دغه آتشفشان په آرام نشو چې ترڅو کلیسا او شاهانه حاکمېتونه دواړه له منځه نه وو تللي.

د کلیسا او شاهانه حکومتونو تر له منځه تللو وروسته له خلکو سره دا پوښتنې پیدا شوې چې اوس به ژوند په کومه طریقه تېروي؟ حق او ناحق به له کومه ځایه معلوموي؟ د حق او د باطل د معلومولو لپاره به معیار څه شی ټاکي؟ او (دین) ته به په ژوند کې څومره ځای ورکوي؟

د کليسا استبداد او د ديني کشيشانو تنګ نظرۍ خلك پر (دين) باندې دومره بدګومانه کړې وو چې نور يې نه غوښتل (دين) دې پر دوئ حاکميت ولري. له همدې امله خو يې له ديني مشرانوڅان خلاص کړی وو. هماغه وو چې اروپايانو تصميم ونيوه چې نور به (دين) د دوئ د ژوند په چارو کې هېڅ دخل او غرض نه لري، او دوئ چې هر څه کوي څوك به د (دين) له ادرسه دا نه ورته وايي چې دا کار روا دی، او هغه ناروا.

هغوئ خپلو مذهبي مشرانوته وويل چې (دين) به په (کليسا) کې بند وي، که زمونږ ورته اړتيا پيدا شوه نو پخپله به ورځو، او که موږ کليسا ته نه ورتلو، نو (دين) به په موږ پسې ټولنې او نظام ته نه راووځي، او زموږ د ژوند په چارو کې به هېڅ مداخله نه کوي.

هماغه وو چې دين د غربيانو د سياسي، اقتصادي، اجتماعي، عسکري او اخلاقي ژوند له ساحې ووت، او خپل ځای يې پر دين نه ولاړ نظام (سيکولريزم) ته پرېښود.

په ژوند کې د کليسا نقش ته د پای د ټکي تر ورکولو وروسته اروپايانو د خپل ځان لپاره يو داسې نوی دين جوړ کړ چې په هغه کې د دوئ اخلاقي، سياسي، اجتماعي، اقتصادي، عسکري او نورې ټولې چارې پر داسې اصولو او په داسې نظام کې تنظيم شوې چې پر دين نه وو ولاړ.

که اروپايانو په هغه وخت کې اسلام منلی وای نو مشکلات به يې حل وو، ځکه چې اسلام د تحريف شوي مسيحيت په څېر نه وو چې خلك له علم او پرمختګ څخه منع کړي، او يا پر خلکو داسې استبداد مسلط کړي چې خلك له ژونده زړه بدي کړي. بلکه اسلام به دوئ هم علم او پرمختګ ته تشويق کړي وو، او هم به يې د دوئ ژوند ور منظم کړی وو.خو دا چې دوئ د مسيحيت د جبر او طغيان په نتيجه کې له دين څخه دومره بېزاره شوي وو چې نور يې له هر دين سره دښمني پيل کړې وه، او هر هغه څه به چې په معنوياتو او روحانيت پورې اړه درلوده هغه ته به يې د شك او نفرت په

سترګه کتل. هماغه وو چې اروپايانو د دين ځای په (سيکولريزم) ډك کړ، او د شاهي نظام تشه يې په (ډيموکراسۍ) ډکه کړه.
د ديموکراسۍ تعريف له درې عناصرو جوړ دی:
١- د خلکو حکومت.
٢- د خلکو لخوا.
٣- د خلکو لپاره.
د ډيموکراسۍ په تعريف کې د الله ﷻ ، دين او پيغمبر ذکر نشته. او دا ځکه چې د مسيحي دين رهبرانو چې خلکو ته کوم رب معرفي کړی وو دوئ نور له هغه بېزاره شوي وو. اروپايانو نور د دين حکومت نه غوښت، بلکه د خلکو حکومت يې غوښت. د الله د دين له لوري يې د حکومت مشروعيت ته ضرورت نه درلود، ځکه چې حکومت بايد د خلکو له خوا وي، او د الله تعالى د دين د حاکمولولپاره يې نه غوښت، بلکه د خلکو لپاره يې غوښت. او د ژوند د تېرولو لپاره يې د پيغمبر لارښوونو ته ضرورت نه احساساوه، ځکه چې د قانون او تشريع مصدر يې خپلې خوښې، خپل عقلونه او هوسونه وو. څه يې چې خوښ وو هغو ته يې حلال ويل، او څه يې چې نه خوښېدل هغه يې حرام ګڼل. پدې ډول غربيانو د حاکم ټاکل، د نظام د کيفيت تعيينول او د قوانينو جوړول خپل حق وګڼل، او پدې ټولو کې يې د (دين) مداخله ممنوع کړه، او دې ټولې منظومې ته يې د ديموکراسۍ نوم ورکړ.

**د ډیموکراسۍ دوه مهم بنسټونه**:

**اول بنسټ ـ دولس حاکمیت**:

پدې معنى چې د (سيادت) يا د ( اعلى حاکميت) حق د ولس دی، ولس چې څوك د ځان لپاره د حاکم په حيث ټاکي هماغه به حاکم وي، پرته لدې چې دېته دې وکتل شي چې په هغه کې د حاکميت لپاره صالحيت او صلاحيت شته او که نه.

همدارنګه به ولس د ځان لپاره د حاکمیت نوعیت ټاکي، او دېته به نه کتل کېږي چې د نظام دغه نوعیت د الله تعالی په دین کې روا دی او که ناروا.

ولس به د خپلو هر ډول معاملاتو او قضایاوو لپاره تشریع او قانون پخپله جوړوي، او په دغه قانون جوړوونه کې به دېته نه کتل کېږي چې دغه قانون د الله تعالیﷻ، او د پیغمبر ﷺ د لارښوونو مطابق دی او که مخالف.

د قانون جوړونې لپاره به د اکثریت رأیه معیار ګڼل کېږي. اکثریت چې څه غواړي هغه به (حق)وي، او اکثریت چې د څه مخالف وي هغه به ناحق او باطل وي.

په خلاصه ډول د دیموکراسۍ د اول بنسټ معنی اکثریت ته د (الوهیت) حیثیت او مرتبه ورکول دي. اکثریت په دیموکراسۍ کې د (حاکمیت) او (تشریع) له حیثیته د (اِله) ځای لري. که اکثریت وغواړي چې نارینه دې له بل نارینه سره نکاح وکړي، نو په ډیموکراسۍ کې دا یو روا کار دی، چې په اوسني عصر کې د غرب په ډېرو هېوادونو کې دا کار همدا اوس وجود لري، او په ځینې هیوادونو لکه برتانیا کې د دې کار د جواز لپاره قوانین هم تصویب شوي او عمل ورباندې کېږي. هلته یو نارینه له بل نارینه سره او یا یوه ښځه له بلې ښځې سره پدې کار توافق کوي او په محکمه کې د قاضي په مخکې رسما د هغوئ تر منځ نکاح تړل کېږي، او دا ځکه چې د هغوی اکثریت دغه کار تأیید کړی دی. همدارنګه که د دیموکراسۍ په نظام کې اکثریت وغواړي چې سود او یا قمار دې جایزوي نو هم جایز ګڼل کېږي.

په ډیموکراسۍ کې خلك د عقل، دیانتدارۍ ،علم او تجربې په لحاظ نه تلل کېږي، بلکه هلته یوازې سرونه شمېرل کېږي او دېته هېڅ اعتبار نه ورکول کېږي چې په مغزو کې یې څه شته او که نه؟ په ډیموکراسۍ کې که د کوم قانون او یا کومې نظریې د رد او یا تأیید لپاره یوې خواته ۵۰

پوهان، متخصصین او د تجربې خاوندان وي، خو بلې خواته ۵۱ ناپوهه او بې تجربې خلك وي نو بیا به هم پدې خاطر د همدغو ناپوهو خلکو رأیې ته ترجیح ورکول کېږي او یوازې لدې امله به مدار د اعتبار ګڼل کېږي چې شمېر یې تر هغو پوهو خلکو زیات دي.

**دویم بنسټ ــ حقوق او ازادۍ:**

د ډیموکراسۍ دوهم بنسټ د حقوقو او آزادیو بنسټ دې. دغه حقوق او آزادۍ په حقیقت کې د ډیموکراسۍ د نظریې او فلسفې حاصل او ثمره ده. په هر نظام کې چې دغه حقوق او آزدۍ خلکو ته حاصلې نه وي هغه نظام ډیموکراتیک نه ګڼل کېږي.

**۱ــ د دین او عقیدې ازادي:**

د آزادیو او حقوقو په لړ کې اول د دین د انتخاب او د عقیدې آزادي ده. په ډیموکراسۍ کې هر انسان ته دا حق ورکول کېږي چې هر وخت وغواړي د ځان لپاره په خپله خوښه نوی دین انتخاب کړي نو انتخابولی یې شي. د مثال په ډول: یو انسان حق لري چې نن دې یهودی وي، سبا ته نصراني شي، بله ورځ دې هندو شي، بله ورځ دې مسلمان شي، بل وخت دې بیا بېرته اسلام پرېږدي او بودائي دې شي، او یا دې هم له ټولو ادیانو انکار وکړي او ملحد یا کمونست دې شي. پدې ټولو حالاتو کې هغه نه محاسبه کېدلای شي، او نه ورڅخه څوک د عقیدې د آزادۍ حق سلبولی شي.

په ډیموکراسۍ کې دین او عقیده یو شخصي امر دی چې د دولت او نظام ورسره هېڅ کار نشته. دین په ډیموکراسۍ کې د جامو او فیشن حیثیت لري چې د هر چا خوښه ده چې کوم رنګ او کوم ډول جامې اغوندي او څنګه فیشن غوره کوی. خو په اسلام کې دین او عقیده یو شخصي امر نه، بلکې یو مکلفیت دی. او همدغه تدین د انسانانو او پیریانو د خلقت

هدف ښوولی شوی دی، لکه چې الله تعالیﷻ فرمايي:﴿ وَمَا خَلَقْتُ ٱلْجِنَّ وَٱلْإِنسَ إِلَّا لِيَعْبُدُونِ ﴿٥٦﴾ ﴾ الذاريات: ٥٦

**ترجمه:** (او ما نه دي پيداکړي پېريان او انسانان مګر د دي لپاره چې زما عبادت وکړي).

الله تعالیﷻ پېريان او انسانان د عبادت لپاره پيدا کړي دي، او تر پيدا کولو وروسته يې بيا د عبادت دکيفيت د تعيين او د طريقې د ورښودلو لپاره ورته دين نازل کړی او انبياء عليهم السلام يې را لېږلي چې تر ټولو وروستی دين (اسلام) او تر ټولو وروستی پيغمبر (محمد) ﷺدی. او د همده په مبارک راتګ پخواني ټول اديان منسوخ شوي دي. د الله ﷻ په نزد يواځينی مقبول دين (اسلام) دی. نو هر څوک چې د الله ﷻ د عبادت لپاره له اسلامه پرته بل دين انتخاب کړي هېڅکله به يې الله تعالیﷻ ورڅخه قبلول نه کړي، الله ﷻ فرمايي:﴿ وَمَن يَبْتَغِ غَيْرَ ٱلْإِسْلَٰمِ دِينًا فَلَن يُقْبَلَ مِنْهُ وَهُوَ فِى ٱلْءَاخِرَةِ مِنَ ٱلْخَٰسِرِينَ ﴾ آل عمران: ٨٥

**ترجمه** : (او هر څوک چې له اسلامه پرته بل دين ولټوي هېڅکله به ترې ونه منل شي، او هغه به په آخرت کې له تاوانيانو څخه وي).

په اسلام کې له اسلام څخه وتل (ارتداد) دی چې که مرتد توبه ونه باسي، او بېرته په اخلاص اسلام ته راونه ګرځي نو سزا يې وژل دي. ځکه چې له يوه دين څخه وتل او بل دين ته داخلېدل د پخواني دين د باطل ګڼلو په معنی دي. يعنې هرڅوک چې له اسلام څخه پرته کوم بل دين ته ورځي هغه په خپل دغه عمل په اسلام باندې د بطلان حکم کوي. او د نوي دين د حقانيت اعتراف کوي. خو په ډيموکراسۍ کې د دين بدلول هېڅ سزا نه لري. ځکه چې هغه يوشخصي امر دی.

په افغانستان کې چې امريکايانو د خپل اشغال په وخت کې کوم ډيموکراتيک نظام جوړ کړی دی همدغه د (ارتداد) حق يې هم د اساسي قانون له لارې د هر فرد لپاره خوندي کړی دی. ځکه چې د اساسي قانون په شپږمه ماده کې په صراحت سره د (ډيموکراسۍ تحقق) او د (بشري حقوقو ملاتړ) د دولت مکلفيت ښودل شوی دی. او د بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميې په اته لسمه ماده کې په صراحت سره داسې ليکل شوي دي: **(هر انسان د فکر د آزدۍ او د دين د انتخاب له حق څخه برخمن دی. او همدا حق د دين او د عقيدی تبليغ، د ډله ييزو ښوونو او رسنيو له لارې د نظر اظهار او همدارنګه د شعائرو سرّي او علني ترسره کولو او له هغو څخه حفاظت ته هم شامل دی).** (اتلسمه ماده).

د همدغې اعلاميې په نولسمه ماده کې د (ارتداد) حق په نور صراحت سره پدې ډول بيان شوی دی:

(**هر انسان د نظر او خپل ليد لوري د آزادۍ له حق څخه برخمن دی. دغه حق دېته هم شامل دی چې څوک دې د بل چا افکار او نظريات د بل چا له مداخلې پرته ومني. او هم کولای شي خپل افکار او نظريات په هرې ممکنې وسيلې له هر جغرافيوي قيد او بند څخه پرته تر لاسه او نشر کړي**). (نولسمه ماده).

دا چې د افغانستان اوسنی اساسي قانون چې د (**ډيموکراسۍ تحقق**) او د (**بشر د حقوقو ملاتړ**) د دولت مکلفيت ګڼي، او پدې دواړو کې د دين او عقيدې انتخاب د هر چا شخصي حق دی، او د بل چا دخالت ورکښې ناروا کار ګڼي، نو ځکه خو اساسي قانون هم تر پردې لاندې په ضمني ډول هر چا ته د مرتدکېدلو حق ورکوي. اوس نو په خلکو، وضعيت او حالاتو پورې اړه لري چې څوک د مرتد عبدالرحمن پنجشيري په څېر د ډيموکراسۍ له دغه حق څخه داستفادې علني جرأت کوي؟

ځينو تش په نامه اسلامي حکومتونو خو په خپلو اساسي قوانينو کې دا هم ليکلي چې د اسلام په خلاف به قوانين نه جوړېږي، خو له بل لوري يې دا هم په صراحت سره ليکلي چې هېوادونه يې د ملګرو ملتونو، نړيوالو تړونونو د بشر د حقوقو د اعلاميې د رعايت کولو تعهد هم لري. لکه د افغانستان په اوسني اساسي قانون کې چې په اوومه ماده کې داسې ليکل شوي دي:

اوومه ماده:((**دولت د ملګرو ملتونو د منشور، د بين الدول معاهدو، د نړيوالو ميثاقونو چې افغانستان له هغو سره تړاو ولري او د بشري حقوقو د نړيوالې اعلاميې رعايت کوي**)).

د بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميې چې د افغانستان اساسي قانون يې رعايت کوي په ۲۹ مه ماده کې د بشري حقوقو د اعلاميې له حقوقو سره د تعامل په اړه داسې راغلي دي:

۲۹ مه ماده: د ج جزء: ((**په هېڅ ډول شرايطو کې روا نه ده چې د بشر له حقوقو سره دې په داسې ډول چلند وشي چې د ملګرو ملتو له اصولو او اهدافو سره تضاد ولري**)).

يعنې د بشرې حقوقو د تعبير او تفسير صلاحيت يوازې دملګرو ملتونو له سازمان سره دی، او هر دولت يې چې رعايت کوينو بايد د ملګرو ملتو له اصولو او اهدافو سره سم يې دې وکړی، نه دا چې د خپل دين او مذهب مطابق يې تعبير کړي. نو له همدې امله دا خبره يوازې يو منافقت دی چې په يوه اسلامي هېواد کې دې هم اسلام تطبيق شي او هم دې د ملل متحد او د بشر د حقوقو اعلاميه تطبيق شي. بلکې له دواړو څخه به يوازې يو تطبيقېږي اوبس.

په اسلام کې هم د عقيدې او دين د آزدۍ حق شته دی، خو هغه په دې معنې دی چې د نورو اديانو منونکي به په زور نشي مسلمانولی، بلکې يوازې دعوت او په ښه طريقه به مناقشه او مناظره ورسره کولی شي. لکه

چې الله تعالی فرمايي: ﴿ ٱدۡعُ إِلَىٰ سَبِيلِ رَبِّكَ بِٱلۡحِكۡمَةِ وَٱلۡمَوۡعِظَةِ ٱلۡحَسَنَةِۖ وَجَٰدِلۡهُم بِٱلَّتِي هِيَ أَحۡسَنُۚ ﴾ النحل: ١٢٥

**ترجمه:** (ای پيغمبره د خپل رب د لارې په لور په حکمت او نيک اسلوب بلنه وکړه، او مباحثه کوه له هغوئ سره په هغه طريقه چې هغه ډېره ښه وي).

او د زور د نه استعمال په هکله الله تعالی ﷻ فرمايي: ﴿ لَآ إِكۡرَاهَ فِي ٱلدِّينِۖ قَد تَّبَيَّنَ ٱلرُّشۡدُ مِنَ ٱلۡغَيِّۚ ﴾ البقرة: ٢٥٦

**ترجمه:** (نشته زور د دين په منلو کې، په تحقيق سره ښکاره شو هدايت له بې لارۍ څخه).

اسلام نامسلمانو خلکو ته د اسلام حقانيت او فضيلت بيانوي، او د منلو توصيه يې ورته کوي، خو په زور يې هېڅکله هم منلو ته نه اړباسي. او که څوک اسلام نه مني هغوئ پر خپل دين او طريقه پدې شرط پرېږدي چې مسلمانان به کفر ته نه دعوت کوي، او د اسلامي نظام له انتظامي اصولو او لوائحو به سرغړونه نه کوي.

د اصحابو رضي الله عنهم له زمانې راهيسې تر ننه پورې په اسلامي نړۍ کې د مسيحيانو، يهوديانو، هندوانو او نورو طائفو شتون پر دې دلالت کوي چې اسلام هغوئ په مسلمانېدلو نه دي مجبور کړي، بلکې هغوئ ته يې په خپل دين د آزاد پاتې کېدلو حق ورکړی دی.

خو په اسلام کې په هېڅ ډول يوه مسلمان ته دا اجازه نشته چې هغه دې له اسلام څخه مرتد شي. ځکه چې مرتد له اسلام څخه د وتلو په عمل په اسلام باندې د بطلان حکم کوي. که داسې نه وي نو بيا ولې له اسلام څخه خارجېږي؟ دا چې هغه پدې کار سره هغه پر حق دين د بطلان حکم کوي او په اسلامي ټولنه کې اضطراب رامنځته کوي، نو ځکه بايد تر

استتابې(توبه غوښتنې) وروسته که بېرته راونه ګرځېد باید ووژل شي، لکه چې رسول الله ﷺفرمایلي دي: ((**من بدّل دینه فاقتلوه**) بخاري.
**ترجمه:**(چا چې خپل دین بدل کړ و یې وژنئ).
په اسلام کې د عقیدی آزادي د ډیموکراسۍ د عقیدې له آزادۍ سره د رڼا او د تیارې فرق لري. خو هغه ډله غرب پلوي عالم ډوله خلك چې غواړي خلکو ته اسلام او ډیموکراسي یو شی وښئي په منافقانه ډول دغه دواړه آزادۍ یو ډول ښئي، ترڅو خلکو ته د اسلام په قالب کې کفر ښائسته کړي.

**۲ـ د رایې د اظهار د ازادي**:

د ډیموکراسۍ له آزادیو څخه یوه هم د رأیې (نظر) د اظهار آزادي ده. په ډیموکراسۍ کې هرڅوک حق لري چې خپل هر ډول نظر په آزادۍ بیان کړي، که څه هم چې هغه نظر د الهي وحیې او دیني مقدساتو په خلاف هم وي.
د دغه ډول آزادۍ د ترلاسه کولو تصور ځکه په غرب کې راپیداشو چې ټول غرب د فرانسې تر انقلابه دمخه د کلیسا تر مطلقې دیني او فکري واکمنۍ لاندې اوسېده.
دا چې کلیسا د انحراف او فکري استبداد اوج ته رسېدلې وه، او هېچا ته یې په دینیاتو، اخلاقیاتو، اجتماعي اصولو او حتی ساینس کې د رأیې د اظهار حق نه ورکاوه، او که به چا د رأیې د اظهار جرأت وکړ، نو هغه به په ډول ډول سزاګانو محکومېده. نو له همدې امله اروپایانو د کلیسا د استبداد په خلاف آواز پورته کړ، او د تحریف شوي مسیحیت د کلیسا تسلط یې له منځه یووړ، او په هر څه کې یې د نظر د اظهار آزادي تر لاسه کړه.
اروپایانو خو په هغه وخت کې دغه اقدام د یو (باطل او تحریف شوي) دین په خلاف وکړ، خو وروسته یې دغه آزادي د یو (مقدس حق) په حیث د (حق دین) په خلاف هم استعمالول شروع کړل. ان تر دې چې د اسلام مقدسات یې هم د دغې بې بندوباره آزدۍ تر برید لاندې راوستل، او د اسلام د

شریعت، قرآن کریم او پیغمبرﷺ په خلاف یې هم خپل له سپکاوي ډک اظهارات د رأیې او بیان د آزادۍ د حق په نامه یاد کړل، چې پدې لړ کې دغه لاندې اقدامات په نږدې ماضي کې ټولې دنیا ولیدل:

هندوستانی مرتد(سلمان رشدي) چې د برتانیې تابعیت لري د غرب په هڅونه یې د اسلام په خلاف خپل مشهور کتاب (شیطاني آیتونه) ولیکه، او د ټولې دنیا مسلمانانو ته یې سپکاوی وکړ، خو کله چې مسلمانانو له غرب څخه د هغه د محاکمې غوښتنه وکړه، ټول غرب په یوه خوله د هغه له دې اقدام څخه دفاع وکړه، او د هغه دغه کار یې د رأیې او بیان د آزادۍ حق وګاڼه، او هغه ته یې پناه ورکړه، چې لا تر ننه یې په خپل حفاظت کې ساتي.

نه یوازې دا چې غرب (سلمان رشدي) ته پناه ورکړې، بلکې د برتانیې ملکې هغه په لویو شاهانه القابو هم په رسمي ډول ونازاوه، او د مسلمانانو د دین او د احساساتو هیڅ پروا یې ونه لرله.

تر (سلمان رشدي) وروسته بنګله دیشۍ مرتدې لیکوالې (تسلیمې نسرین) هم د رشدي پر پله پل کېښود، او هغې ته هم غرب په خپلې غېږې کې پناه ورکړه، او د هغې اقدام یې د نظر د اظهار په آزادۍ تعبیر کړ.

هالنډي ژونالیست هم د قرآن کریم د سپکاوي فلم جوړ کړ، او کله چې مسلمانانو اجتجاج وکړ، نو د هالنډ صدراعظم د هالنډي ژونالست کار د رأې د بیان آزدي وبلله، او له هغه څخه یې دفاع وکړه.

د قرآن کریم بل سپکاوی هغه ؤ چې غرب د (ربښتیني قرآن) په نامه له الحاد او سپکاوي ډک کتاب چې د قرآن کریم سورتونو ته په ورته شکل لیکل شوی ؤ رامنځته کړ، او په انټرنیټ کې یې خپور کړ. او دا یې هم د رأیې د اظهار حق وګاڼه.

د ډنمارک یوه کاریکاتور جوړوونکي د اسلام پیغمبرﷺ ته منسوب له سپکاوي ډک کارتونونه جوړ او خپاره کړل. کله چې مسلمانانو په ټوله نړۍ کې احتجاج وکړ، او د هغه رسام د محاکمې غوښتنه یې وکړه، نو د

ډنمارک صدراعظم (اندریس فوګ راسموسن) چې ورسته بیا د ناټو د تړون رئیس هم شو له کارتون جوړونکي څخه دولتي دفاع وکړه، او د هغه کار یې د رأیې د بیان د آزادۍ حق وباله.
کله چې مسلمانانو خپل احتجاج ته نور هم زور ورکړ، او له اروپایي مصنوعاتو سره یې د پریکون اعلان وکړ، نو د ناټو د تړون رئیس د ډنمارک موقف د ټولې اروپا د موقف په حیث اعلان کړ، او په دې ډول هغه کارتونونه په مکرر ډول په نورو اروپایي هېوادونوکې هم خپاره شول.
په افغانستان کې چې د امریکا د پوځي شتون تر حمایې لاندې د بلخ په ولایت کې یوه مرتد (پرویز کامبخش) د اسلام خلاف مضامین چاپ او خپاره کړل او د مسلمانانو د شدید فشار په نتیجه کې محکمې هغه په ارتداد محکوم او بندي کړ، نو ټول غرب او غربي مېډیا د هغه ترڅنګ ودریده،او د هغه موقف یې د رأیې د اظهار په آزادۍ تعبیرکړ،او د هغه د خوشې کولو هڅې یې پیل کړې، چې په نتیجه کې یې د اعدام حکم په حبس تبدیل شو، او وروسته بیاد اریکا له لوري د افغانستان لپاره ټاکل شوي رئیس (حامد کرزي) د خپل دوهم ځل انتخابېدلو په درشل کې هغه د یوه فرمان په صادرولو آزاد کړ، او په درناوي د غربي حلقو لخوا له افغانستانه وویستلی شو.
همدا رنګه په فرانسه کې هم د(چارلي هیبدو) طنزي مجلې څو ځله د رسول الله صلی الله علیه وسلّم کارټونونه جوړ او خپاره کړل، خو کله چې په 2015م کال کې دریوو مسلمانوځوانانو د دغې فرانسوي مجلې کارټونستان ووژل، نو ټول غرب د هغو دریوو مسمانو ځوانانو کار د رأیې د اظهار په خلاف عمل وګاڼه، او د هغوئ په لټون پسې یې په یوه ورځ ۸۰۰۰۰ اتیازره پولیس راووېستل، او هغوئ یې شهیدان کړل، خو د خپلو کارټونستانو د کار د تمجید او تأیید په مقصد یې د غربي نړۍ رهبران ور وبلل او داسې یوه مظاهره یې په ټوله فرانسه کې راووېسته چې د دوئ په وینا لس میلیونه خلکو ورکې برخه اخیستې وه. فرانسې پدې هم

اکتفا ونه کړه، بلکه د نومورې مجلې په راتلونکې ګڼه کې يې د درې مليونه نسخو په شمېر د اسلام د ستر پيغمبر صلّى الله وسلّم د سپکاوي په مقصد بيا نور کارټونونه چاپ او خپاره کړل، پداسې حال کې چې نومورې مجله به پخوا په عادي حالاتو کې يوازې شپږ زره نسخې چاپېده.

اسلام د رأيې د اظهار د آزادۍ مخالف نه دی، بلکې د ګمراه کوونکې رأيې د اظهار مخالف دی. هغه رأيه چې د حق د بيان او آزادۍ لپاره وي اسلام نه يوازې د هغې پلوی کوي، بلکې هغه يو عبادت بولي، او اظهار ته يې خلک تشويقوي، که څه هم چې هغه ديو ظالم حاکم په مخکې وي. په هغه حديث شريف کې چې أبوسعيد الخدري ﷺ روايت کړی دی رسول الله ﷺ فرمايلي دي:

(**إن من أعظم الجهاد كلمة عدل عندسلطان جائر**) ([1]).

**ترجمه:** (بې له شکه دا له لوی جهاد څخه ده چې د عدل خبره دې د ظالم پادشاه په مخکې وکړای شي).

او که څوک د حق د وينا له امله ووژل شي، نو هغه په اسلام کې له غوره شهيدانو څخه شمېرل کېږي، لکه چې رسول لله ﷺ فرمايلي دي: (**خير الشهداء حمزة بن عبدالمطلب، و رجل قام إلى رجل فأمره و نهاه في ذات الله فقتله على ذلک**) ([2])

ترجمه: (په شهيدانو کې غوره شهيد حمزه بن عبدالمطلب او هغه سړی دی چې دالله ﷻ لپاره يو بل چاته په نېکۍ امر وکړي او له بدۍ څخه يې منع کړي او هغه يې بيا پدې کار ووژني).

نو معلوه شوه چې په اسلام کې هرڅوک بل چاته د حق وينا او نصيحت کولی شي. او بايد چې ويې کړي، څکه چې (دين نصيحت دی).

---

1الترمذي كتاب الفتن باب أفضل الجهاد.

[2] المستدرکللحاکم.

خو په ډيموکراسۍ کې انسان ته د هرڅه د ويلو او اظهار اجازه شته چې هغه (حق) وي او که (باطل).
د مسلمانانو په هغو هېوادونو کې چې غربي ډيموکراسي ورکښې حاکمه ده په ښکاره ليدلی کېږي چې هلته خلک يوازې د باطل د اظهارولو حق لري او بس. او هر څوک چې د حق رأيه اظهار کړي هغه له وژلو، تړلو، شړلو او ډول ډول تهديدونو سره مخ کېږي.
د کفري نظرياتو د خپرولو لپاره ټول وسائل په کار اچول کېږي، خو د حق د اظهار لپاره هېڅ راډيو، تلويزيون، مجلې اخبار او نشريې ته اجازه نه ورکول کېږي. او که چېرې يو نيم ځای اجازه هم ورکړل شي نو بيا يې هم پاليسي، حدود او موضوعات ورته د دولتي ادارو لخوا ټاکل کېږي چې تر هغو هاخوا يې نشريات جرم ګڼل کېږي.
**۳ـ شخصي ازادي**:
د ډيموکراسۍ تر ټولو مهمه آزادي چې د ډيموکراسۍ زړه بلل کېږي شخصي آزدي ده چې اخلاقی آزادي هم بلل کېږي.
د شخصي آزدۍ معنی دا ده چې انسان د خپل شخص (ذات) په اړه مکمله آزادي لري چې هر څه ورباندې کوي بې له کوم قيد او شرطه يې کولی شي. د ټولنې عرفونه، رسم او رواج، اداب او اخلاقي قوانين بايد له ژوند څخه د خوند د اخستلو په لاره کې مانع ونه ګرځي. او فرد بايد پدې کار کې د هر چا له تسلط او محاسبې څخه آزاد وي.
د دغه ډول آزادۍ مطالبه هم په غرب کې د کليسا د طغيان او د خلکو په اجتماعي او اخلاقي ژوند باندې د شديد مراقبت عکس العمل وو. لکه څنګه چې اروپايانو د دين، عقيدې او عبادت په مجال کې دکليسا تسلط ورختم کړ، همدا ډول يې د کليسااخلاقي څار او رقابت هم له منځه يووړ.
د فرانسې انقلاب (دين) له (دولت) څخه جلا کړ،او د سيکولريزم نظريه يې ايجاد کړه. او تر هغې وروسته يې د (دين) او د (اخلاقو) ترمنځ هم بېلتون راوست. د اخلاقو په ښه والي او بدوالي باندې حکم کول د دين صلاحيت

نه، بلکې د شخصي ذوق او سليقې کار وګڼل شو. پدې معنی چې هر هغه څه چې فرد ته ښه ښکاري هماغه ښه اخلاق دي او څوک بايد پرې د اعتراض حق ونه لري. د همدغې شخصي آزادۍ د فلسفې د منل کېدو له امله په غرب کې زنا، لواطت، سحاق، (ښځينه همجنس بازي) د نارينه له بل نارينه او د ښځې له بلې ښځې سره واده کول د اخلاقو خلاف کارونه نه ګڼل کېږي، او دغربي هېوادونو قوانين ورته اجازه ورکوي. دغه ټول کارونه د ډيموکراسۍ په فرهنګ کې تر هغه پورې جرم نه ګڼل کېږي چې تر څو په اجباري شکل نه وي تر سره شوي. او که په اجباري شکل ترسره شي نو بيا هم لدې امله جرم نه ګڼل کېږي چې دغه کارونه حرام دي، بلکې لدې امله جرم ګڼل کېږي چې په اجباري شکل تر سره شوي دي.

د شخصي آزادۍ غربي معيارونو ته په پام سره په ډيموکراسۍ کې (امر بالمعروف او نهي عن المنکر) هېڅ ځای نه لري. او په همدې بنا چې په هر دولت کې چې ديموکراسي عملي کېږي هلته د (امربالمعروف او نهي عن المنکر) حق په خپله په اتوماتيک شکل له منځه ځي. هلته به يا ډيموکراسي وي، او يا به امربالمعروف وي، دواړه په هېڅ صورت نشي جمع کېدلای. ځکه چې (امربالمعروف او نهي عن المنکر) اکثره په عباداتو او اخلاقياتو پورې اړه لري، او په ډيموکراسۍ کې دغه دواړه شخصی امور دي چې بل څوک ورکښې د مداخلې حق نه لري.

په ديموکراسۍکې د شخصي آزادۍ او اخلاقو فلسفه د انګريز فيلسوف هوبز (۱۵۸۸ – ۱۶۷۹م) پر نظرياتو ولاړه ده چې وايي: د خير معنی شهوت (خوند) دی، او د شر معنی نفرت (کرکه) ده. يعنې په هر هغه څه کې چې شهوت (خوند) موجود وي هغه د خير کار دی. او په هر هغه څه کې چې نفرت (کرکه) موجوده وي هغه د شر کار دی. د خير او د شر د معيارونو تعيين د (دين) کار نه بلکې د شخصي ذوق او غريزې کار دی. دغه ډول شخصي آزادي نه يوازې دا چې په اسلام کې ځای نه لري بلکې له

نورو اديانو اوسليم فطرت سره هم مخالفت لري. نو پر همدې بنا ډيموکراسي د دغه ډول آزدۍ د لرلو له امله هم صريح کفر ګڼل کېږي.

**۴ـ د مسکن د انتخاب ازادي**:

په ډيموکراسۍ کې هر انسان ته حق ورکړ شوي چې په هر ځای کې يې چې زړه وي هلته واوسېږي. پر همدې اساس غربي ډيموکراسي دا نه مني چې کفار دې له (جزيرة العرب) څخه و ويستل شي، او يا دې کفار د حرم په ساحه کې نه پرېښودل کېږي، پداسې حال کې چې د عربو په جزيره کې د کفارو د نه پرېښودلو صريح حکم په حديث شريف کې راغلی دی، رسول الله ﷺ فرمايي:((**أخرجوا المشركين و في رواية: اليهود و النصارى من جزيرة العرب**...)) ([1]).

**ترجمه:**(مشرکان د عربو له جزيرې وباسئ) په بل روايت کې دي:(يهود او نصارى له جزيرة العرب څخه وباسئ).

له همدې امله عمر بن الخطاب رضی الله عنه په خپل خلافت کې ټول يهودان او نصارى له جزيرة العرب څخه و وېستل. خو که په اوسنې وخت کې چې څوک له جزيرة العرب څخه د يهودو، نصاراؤ او يا نورو کفارو د وېستلو غوښتنه کوي، يا يې د وېستلوهڅه کوي هغوئ د ډيموکراسۍ د مخالفت په جرم محکومېږي او د وژلو جواز يې برابرېږي.

**۵ـ د ملکيت حق**:

دا چې غربي ډيموکراسي د کپيټاليزم (پانګه وال اقتصاد) د خوندي ساتلو لپاره رامنځته شوې ده، نو له همدې امله ورکې فرد ته له هرې لارې د مال د ګټلو او په هر څه کې د مصرفولو مطلقه آزادي ورکړل شوې ده.

د مال په ګټلو او مصرفولو کې ډيموکراسي هېڅ ديني او اخلاقي عامل ته د دخالت حق نه ورکوي. همدا دليل دی چې په ډيموکراتيکو هېوادونو کې

---

[1] بخاري.

پانګه وال د سود، احتکار، د مزدورانو د زيبښاک او ان د نورو هېوادونو د نيولو او د هغوئ د طبيعي زيرمو د غلا کولو، لوټولو، د جنګونو د رامنځته کولو او د وسلو د خرڅولو او حربي فابريکو دچلولو له لارې خپله پانګه ډېروي،او بيا يې په عيش او عشرت، قمار، فحشاء او بدخرڅيو کې مصرفوي.
خو په اسلام کې لکه څنګه چې د مال د ګټلو لپاره د روا لارو او وسايلو انتخاب ضروري دی، همدارنګه يې د مصرفولو لپاره هم قيود وضع شوي دي.
اسلام د يوه داسې متوازن اقتصادي نظام لرونکې دی چې نه لکه د پانګه وال نظام سرمايه د څو محدودو خلکو په منځ کې ساتي، او نه لکه کمونيزم دی چې افراد له شخصي ملکيت څخه محروموي. بلکې اسلام فرد ته هم د سرمايې د لرلو حق ورکوي،او هم د بډايو خلکو په سرمايه کې د نېستمنو او غريبو خلکو حق تثبيتوي.

**۶ـ د کار حق:**
په ډيموکراسۍ کې انسان ته د هر ډول کار د کولو او پېشې د اختيارولو مطلق حق حاصل دی. خو په اسلام کې خلك يوازې د حلال او روا کار د کولو حق لري. او که چېرې داسې يو کار اختيار کړي چې له مسلمانۍ سره تضاد ولري لکه شرابخانه خلاصول يا د زنا اډه او داسې نور جوړول نو په هغه صورت کې اسلام خلکو ته د دغه ډول کار اجازه نه ورکوي. خو په ډيموکراسۍ کې خلك دا هر څه کولای شي.
**۷ـ د زده کړې حق:**
په ډيموکراسۍ کې خلکو ته د هر فن او علم د زده کړې مطلق حق حاصل دی. خو په اسلام کې خلکو ته د داسې علومو او فنونو د زده کولو حق نه ورکول کېږي چې هغه له اسلام سره ټکر لري، لکه: د کوډو (جادو، شعبده بازۍ، مداري ګرۍ او داسې نور علمونه. اسلام د جادو زده کړه کفر بولي او مخنيوی يې کوي.

**پارلمان د ډیموکراسۍ ممثله اداره**

پارلمان په ډیموکراسۍ کې د خلکو د منتخبو استازو هغه اداره ده چې د خلکولپاره د قوانینو د جوړولو یا د تشریع (تحلیل تحریم) مطلق حق لري.
د اکسفورډ قاموس د (پارلمنټ)کلمه داسې تشریح کوي:
Parliament: a group of people that makes the lows of a Country.
(پارلمنټ د خلکو هغه ډله ده چې د یوه هېواد لپاره قوانین جوړوي).
مخکې ولیدل شول چې په ډیموکراسۍ کې د خلکو اکثریت د (اله) مرتبه لري، ځکه چې د سیادت (اعلی حاکمیت) حق چې د (امر) او (نهې)، (تحلیل) او (تحریم) مطلق حق دی په اکثریت پورې اړه لري. او لکه څنګه چې په دین کې د الله ﷻ فیصله نشي رد کېدلی همدا ډول په ډیموکراسۍ کې د اکثریت فیصله هم نشي رد کېدلی.
دا چې اکثریت په ډیموکراسۍ کې د (إله) مرتبه لري، نو پارلمان چې د اکثریت استازی دی د پیغمبرۍ (استازیتوب) مرتبه لري. پدې معنی چې استازی به د خپلو موکّلینو د خوښې مطابق قوانین ایجادوي او د هغوئ مصالح به تأمینوی.
ډیموکراسۍ چې اصلاً د سیکولریزم (لادینیت) پر بنسټ ولاړه ده د حکومت او نظام په چارو کې (دین) ته د مداخلې حق نه ورکوي. نو پر همدې اساس ټول هغه قراردادونه او مسودې چې د قانون کېدلو لپاره پارلمان ته د بحث او غور په مقصد وړاندې کېږي بایدپر دیني بنسټونو ولاړې نه وي.
د ډیموکراسۍ له لارې طرحې، نظریات او مسودې تر هغه وخته د تطبیق وړ نه دي چې تر څو یې د پارلمان لخوا د (قانونیت) حیثیت نه وي تر لاسه کړی. ځکه چې په پارلمان کې هغې مصوبې ته (قانون) ویل کېږي چې د پارلمان دواړه جرګې یې تصویب کړي او جمهور رئیس یې توشیح کړي، لکه چې د امریکایی اشغال د وخت د اساسي قانون په څلور نویمه ماده

کې چې داسې تصريح ورباندې شوې ده:((قانون هغه مصوبه ده چې د ملي شورى د دواړو جرگــو لــه خــوا تصــويب او د جمهور رئيس له خوا توشيح شوې وي، مگر دا چې په دې اساسي قانون کې بـل ډ ول څرگنده شوې وي)). ([1]). او ترڅو يې چې دا مراحل نه وي طي کړي تر هغه پورې د تطبيق وړ نه گڼل کېږي.
په ډيموکراسۍ کې د هر فکر او نظر خلک د انتخاباتو له لارې ځان پارلمان ته رسولى شي. کفر الحاد ، يا کوم بل عقيدوي انحراف پارلمان ته د هغوئ د رسيدو مانع نه گرځي. او هر څوک چې پارلمان ته ورسېږي هغوئ هلته د خپلې خوښې او نظريې مطابق قانوني طرحې پارلمان ته وړاندې کوي، او هغوئ بيا د خپلو هر ډول افکارو او نظرياتو د بيان له امله تر عدلي تعقيب لاندې هم نشي راتلاى، که څه هم چې هغه نظريات د دين په خلاف وي چې همدغه صلاحيت د امريکايانو په لاس د جوړ شوي حکومت د ۱۳۸۲هـ کال د اساسي قانون په ۱۰۱ مه ماده کې داسې بيان شوى دى:
((د ملي شورى هيڅ غړى د هغې رأيې يا نظريې له امله چې د وظيفې د اجرا په وخت کې يې څرگندوي تر عدلي تعقيب لاندې نه نيول کېږي)). ([2])
**پارلمان ولې طاغوتي اداره ده؟**
طاغوت په اسلامي شريعت کې هر هغه څه ته ويل کېږي چې پرته له الله ﷻ يې عبادت کېږي.
عبادت يوازې لمانځه، روژې، زکات، حج او دعا ته نه ويل کېږي، بلکې د يو چا د تحليل، تحريم او تشريع منلو ته هم ويل کېږي. پدې معنى چې که يو څوك او يا کوم جهت د يو چا لپاره داسې قانونگذاري وکړي چې حلال ورته پکښې حرام او حرام ورته پکښې حلال کړي او خلك هم د دې فرد يا جهت همدغه قانون يا قوانين ومني نو دا د دې خلکو له لوري د دې فرد او يا د دې جهت عبادت کول

[1] –د ۱۳۸۲ کال د اساسي قانون څلور نوي يمه ماده.
[2] –د ۱۳۸۲ کال د اساسي قانون يوسل او يوومه ماده.

ګڼل کېږي. دليل يې دا لاندې حديث شريف دي چې امام ترمذي، امام بيهقي او نورو محدثينو په خپلو سننو کې له عدي بن حاتم ﷺ څخه روايت کړی دی:

(عن عدی بن حاتم: أنّه سمع النبی ﷺ {يقرأ هذه الآية: (اتَّخَذُوا أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَانَهُمْ أَرْبَاباً مِنْ دُونِ الله وَالْمَسِيحَ ابْنَ مَرْيَمَ وَمَا أُمِرُوا إِلَّا لِيَعْبُدُوا إِلَهاً وَاحِداً لا إِلَهَإِلّا هُوَ سُبْحَانَهُ عَمَّا يُشْرِكُون)[التوبة: ۳۱]، فقلت: إنا لسنا نعبدهم. قال: (أليس يحرمون ما أحل فتحرمونه، ويحلون ما حرم الله فتحلونه؟ فقلت بلى، قال: (فتلک عبادتهم). رواه أحمد والترمذی وحسنه).

عدي بن حاتم د بنوطی د قبيلې د مشهور سخاوتمند حاتم طائې زوی ؤ، هغه مسيحيت منلی ؤ او په شام کې يې له اهل کتابو سره ژوند تېر کړی وو. هغه د خپلې خور په دعوت اسلام ته تشويق شو او پداسې حال کې د رسول الله ﷺ مجلس ته راغی چې د سرو زرو صليب يې په غاړه ؤ. هغه وايي: زه په داسې حال کې د رسول الله ﷺ مجلس ته راغلم چې هغه مبارک د قرآن کريم دا آيت لوست :

﴿ ٱتَّخَذُوٓاْ أَحْبَارَهُمْ وَرُهْبَٰنَهُمْ أَرْبَابًا مِّن دُونِ ٱللَّهِ ﴾ التوبة: ۳۱

**ترجمه:** (يهودو او نصارا ؤ خپل علماء او پيران له الله ﷻ پرته خدايان نيولی ؤ).

عدي ﷺ وايي : ما رسول الله ﷺ ته وويل: موږ خو يې عبادت نه کاوه. رسول الله ﷺ و فرمايل: آيا هغوئ د الله حلال درباندې حراموي نه؟ چې تاسې يې هم ورسره حراموئ، او د الله حرام درته حلالوي نه؟ چې تاسې يې هم ورسره حلالوئ، ماورته وويل: هو ولې نه؟ و يې فرمايل: همدغه کار دهغوئ عبادت کول دي.

دا چې په ډيموکراسۍ کې حلال او حرام د تشريعي قوې (پارلمان) لخوا تعينېږي، او د پارلمان غړوته د قوانينو د وضع کولو مطلق حق ورکړشوی دی، نو په همدې اساس دوئ ته (مشرّعين) هم ويل کېږي. پداسې حال کې

چې د حلال او حرام تعینول یوازې د الله ﷻ خصوصیت دی، او په دغه خصوصیت کې د بل هر چا ورګډول د الله ﷻ د تشریع په خصوصیت کې له هغه سره شرک ګڼل کېږي، الله ﷻ تعالی فرمايي: ﴿ أَمۡ لَهُمۡ شُرَكَٰٓؤُاْ شَرَعُواْ لَهُم مِّنَ ٱلدِّينِ مَا لَمۡ يَأۡذَنۢ بِهِ ٱللَّهُۚ ﴾ الشورى: ٢١

**ترجمه:**(آيا داسې شریکان لري چې هغه دین یې ورته جوړ کړی چې الله ﷻ یې اجازه نه ده کړې؟).

په ډیموکراسۍ کې د (دین) او (اخلاقي امورو) په اړه د حکم وضع کول هم د پارلمان کار دی. د مثال په ډول که په غرب کې د پارلمان اکثریت غړي دا تأیید کړي چې (همجنس بازي) رواه ده، نو بيا هغه یو (روا) او قانوني عمل ګڼل کېږي او د هغه لپاره قوانین جوړېږي او حقوق یې تثبیتېږي. او یا دا چې که زنا د دواړو لوریو په موافقه وشي نو هېڅ جرم نه ګڼل کېږي.

په اسلام کې د (جرم) او د (سزا) تعیین د شریعت کار دی، خو دا په ډیموکراسۍ کې د پارلمان حق دي، نه د شریعت.

په ډیموکراسۍ کې به د اختلاف په صورت کې منازعه د فیصلې لپاره شریعت ته نه بلکې اساسي قانون او نورو هغو وضعي قوانینو ته وروړل کېږي چې د ډیموکراسۍ له اصولو سره سم وضع شوي دي. پداسې حال کې چې په اسلام کې د الله ﷻ له قانون او شریعته پرته بل هر قانون، شریعت او د فیصلې مرجع ته (طاغوت) ويل شوي دي. او مسلمانانو ته امرشوی چې پر هغو کافر شي (ويې نه مني). او همدارنګه د هغو خلکو ایمان د درواغو ایمان بلل شوي چې په خوله وايي مؤمن یم، خو فیصله د الله ﷻ پر قانون نه، بلکې د بل چا پر قانون کوي.

الله ﷻ فرمايي: ﴿أَلَمۡ تَرَ إِلَى ٱلَّذِينَ يَزۡعُمُونَ أَنَّهُمۡ ءَامَنُواْ بِمَآ أُنزِلَ إِلَيۡكَ وَمَآ أُنزِلَ مِن قَبۡلِكَ يُرِيدُونَ أَن يَتَحَاكَمُوٓاْ إِلَى ٱلطَّٰغُوتِ وَقَدۡ أُمِرُوٓاْ أَن

يَكۡفُرُواْ بِهِۦ وَيُرِيدُ ٱلشَّيۡطَٰنُ أَن يُضِلَّهُمۡ ضَلَٰلَۢا بَعِيدٗا ٦٠ وَإِذَا قِيلَ لَهُمۡ تَعَالَوۡاْ إِلَىٰ مَآ أَنزَلَ ٱللَّهُ وَإِلَى ٱلرَّسُولِ رَأَيۡتَ ٱلۡمُنَٰفِقِينَ يَصُدُّونَ عَنكَ صُدُودٗا ٦١﴾ النساء: ٦٠- ٦١

**ترجمه:** (آیا ته نه ګورې (ای محمده) هغه خلک چې ګومان کوي چې پر هغه کتاب يې ايمان راوړی چې نازل شوی دی تاته، او هم پر هغه چې نازل شوی ؤ تر تا د مخه، غواړي د فيصلې لپاره وړاندې شي طاغوت ته، پداسې حال کې چې دوئ ته امر شوی چې پر طاغوت کافر شي. (ويې نه مني) شيطان غواړي هغوئ ډېر زيات ګمراهان کړي. او چې کله هغوئ ته وويل شي د الله ﷻ نازل کړي کلام او رسول ته راشي (د فيصلې لپاره) نو ته وينې چې منافقان له تا څخه مخونه اړوي).

همدارنګه الله د هغو خلکو په هکله چې فيصله د الله ﷻ پر قانون نه کوي داسې فرمايې:

﴿ وَيَقُولُونَ ءَامَنَّا بِٱللَّهِ وَبِٱلرَّسُولِ وَأَطَعۡنَا ثُمَّ يَتَوَلَّىٰ فَرِيقٞ مِّنۡهُم مِّنۢ بَعۡدِ ذَٰلِكَۚ وَمَآ أُوْلَٰٓئِكَ بِٱلۡمُؤۡمِنِينَ ٤٧ وَإِذَا دُعُوٓاْ إِلَى ٱللَّهِ وَرَسُولِهِۦ لِيَحۡكُمَ بَيۡنَهُمۡ إِذَا فَرِيقٞ مِّنۡهُم مُّعۡرِضُونَ ٤٨﴾النور: ٤٧- ٤٨

**ترجمه:** (او منافقان وايي چې مونږ په اللهﷻاو رسول ﷺ ايمان راوړی. او طاعت مو کړی دی. خو بيا ځينې خلک لدې وينا مخ اړوي، دوئ مؤمنان نه دي. او کله چې هغوئ د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ په لور ور وبلل شي چې رسول ﷺ د هغوئ ترمنځ فيصله وکړي، نو ځينی يې نابېره ډډه کوي).

خوکه چېرې د اسلام کوم حکم له ډيموکراسۍ سره مطابق وي، او د دوئ مقاصد ورڅخه په يو ډول ترسره کېږي، نو دوئ بيا هغه د اسلام حکم هم

مني. خو د دې لپاره نه چې هغه د الله ﷻ واجب العمل حکم دی، بلکې د دې لپاره چې هغه د ډيموکراسۍ مطابق دی.
پدې کار کې ډيموکراتان کټ مټ د الله ﷻ د دې وينا مصداق دي چې فرمايي: ﴿ وَإِن يَكُن لَّهُمُ ٱلۡحَقُّ يَأۡتُوٓاْ إِلَيۡهِ مُذۡعِنِينَ ﴿٤٩﴾ ﴾النور: ٤٩
**ترجمه:** (که چېرې حق د هغوئ پر خوا وي نو بيا ښه غاړه ايښودونکي د پيغمبر په لور را روان وي).
د اوسنۍ اسلامي نړۍ په ټولو هغو حکومتونو کې چې ځان ډيموکراټيک بولي فيصلې ورکې د الله د شريعت په خلاف د هغه اساسي قانون مطابق کېږي چې د ډيموکراسۍ له اصولو سره سم جوړ شوی وي.
په دغو حکومتونو کې د (اساسي قانون) حرمت او قداست تر (قرآن کريم) او (احاديثو شريفو) پورته وي. که چېرې د کومې فيصلې په تأييد کې هرڅومره د قرآن کريم، حديث شريف او د شريعت دلايل راوړل شي، خو چې د اساسي قانون مطابق نه وي نو د منلو وړ نه ګڼل کېږي، او د پارلمان وکيلان هم هېڅکله داسې قوانين نشي تصويبولی چې د اساسي قانون د موادو مخالف وي. نو له همدې امله پارلمان يوه (طاغوته) اداره ده.
که په کوم اسلامي هېواد کې چې پر ډيموکراسۍ عمل ورکې کېږي او د پارلمان کوم غړی يا جهت چې د اسلام لپاره کار کول غواړي هم وغواړي چې د شريعت کوم حکم يا احکام د پارلمان له لارې د قانون په حيث عملي کړي نو بايد خپل وړانديز د مسودې په شکل پارلمان ته د بحث او رأيې اخيستنې لپاره وړاندې کړي، چې يا به تأييد ېږي، او يا به رد کېږي. او د رد کېدلو په صورت کې به بيا دغه وړانديز د يوې ټاکلې مودې لپاره دوهم ځل د بحث لپاره هم نه وړاندې کېږي.
په پورتني صورت کې د الله ﷻ حکم بشر ته د (موافقې) يا (نه موافقې) لپاره وړاندې کېږي چې (وړاندې کوونکی) او (ردوونکی) يې دواړه له دين څخه وځي او کافر کېږي. ځکه چې وړاندې کوونکي دلته بل څوک د الله

تعالی پر حکم (حَکَمْ) ګرځوي،او بل چاته دا حق ورکوي چې د الله ﷻ فیصله (رد) او یا (تأیید) کړي، پداسې حال کې چې الله ﷻ فرمايي: د ده فيصله هېڅوک نشي وروسته کولی:﴿ وَٱللَّهُ يَحۡكُمُ لَا مُعَقِّبَ لِحُكۡمِهِۦۚ وَهُوَ سَرِيعُ ٱلۡحِسَابِ ٤١ ﴾الرعد: ٤١

**ترجمه:** (او اللهﷻ فيصله کوي (په هر څه چې اراده وفرمايي) نشته هېڅوک وروسته کوونکی د هغه د فيصلې، او هغه ډېر زر حساب کوونکی دی).

همدارنګه الله ﷻ فرمايي:﴿ وَمَا كَانَ لِمُؤۡمِنٖ وَلَا مُؤۡمِنَةٍ إِذَا قَضَى ٱللَّهُ وَرَسُولُهُۥٓ أَمۡرًا أَن يَكُونَ لَهُمُ ٱلۡخِيَرَةُ مِنۡ أَمۡرِهِمۡۗ وَمَن يَعۡصِ ٱللَّهَ وَرَسُولَهُۥ فَقَدۡ ضَلَّ ضَلَٰلٗا مُّبِينٗا ٣٦ ﴾الأحزاب: ٣٦

**ترجمه**: (او نه ده روا هېڅ مؤمن سړي او مؤمنې ښځې ته چې فيصله وکړي الله ﷻ او رسول ﷺ يې په يو کار کې چې وي دې دوئ ته اختيار په خپل کار کې. او هر څوک چې نافرماني کوي د الله ﷻ او د هغه د رسول ﷺ، په يقين سره هغه ګمراه شو په ګمراهۍ ښکاره).

په دغه ډول پارلماني جريان کې د الله ﷻ د حکم رد کوونکی د (رد) له امله کافر کېږي، او وړاندې کوونکې يې له دې امله له دين څخه ووځي چې بل چا ته د اللهﷻ پر فيصلې د پاسه د بلې فيصلې په حق قائل دي.

په دې هکله همدغه فهم د عمر بن الخطاب رضی الله عنه له هغه عمل څخه هم څرګندېږي چې د يوه منافق چې له يوه يهودي سره يې منازعه وه او رسول الله ﷺ د يهودي په حق کې فيصله وکړه، خو منافق پر هغې فيصلې قناعت ونه کړ،او د رسول الله ﷺ فيصله يې عمر رضی الله عنه ته يووړه. کله چې عمر رضی الله عنه پوه شو چې په دې منازعه کې رسول الله ﷺ يو ځل فيصله کړې ده، او منافق د رسول الله ﷺ پر فيصلې د پاسه د عمر فيصله غواړي، نو ځکه يې

هغه سړی مرتد و باله او سر یې ترې پرې کړ. رسول الله ﷺ نه یوازې دا چې پدې کار عمر ﷺ ملامت نه کړ، بلکې هغه ته یې د (فاروق) لقب هم ورکړ.
په اسلام کې لکه څنګه چې د لمانځه، روژې، زکات او حج حکم د عملي کولو په مقصد د اکثریت د فیصلې لپاره نه وړاندې کېږي او رأساً یې د تطبیق امر شوی، همدا ډول حدود، حجاب، قصاص، له کفارو سره د دوستۍ حراموالی او نور احکام هم د تطبیق لپاره د اکثریت رأیې او فیصلې ته نه وړاندې کېږي. خو په ډیموکراسۍ کې دغه کار د ډیموکراسۍ د اصولو خلاف او د نه منلو دی.
د ډیموکراسۍ په هکله د دغې مقالې په پای کې دې نتیجې ته رسېږو چې ډیموکراسۍ یو غیر اسلامي، کفري شیطاني دین دی چې د انساني ژوند ټولې خواوې یې احتوا کړې دي. ډیموکراسۍ په حقیقت کې له الله ﷻ څخه د بشریت لپاره د هر ډول نظام او قانون د جوړنې د حق سلبول او– نعوذ بالله – د الله تعالی د بې واکه کولو تصور دي.
ډیموکراسي په غرب کې د مسیحیت د انحراف او د الحاد د رامنځته کېدو په نتیجه کې منځته راغلې چې هر څه ورکښې له هر دیني قید او بند څخه آزاد او د انسانانو په خپله خوښه تر سره کېږي.
په ډیموکراسۍ کې د الله ﷻ منل او نه منل دواړه یو ډول ارزښت لري. ځکه چې د منلو په صورت کې یې بیا هم د قانون او شریعت منل د ډیموکراسۍ د اصولو خلاف کار دی.
ددې مقالې په پای کې ډیموکراسي په لنډ ډول په لاندې کرښو کې داسې خلاصه کوو:
ډیموکراسۍ د غرب د ملحدو فیلسوفانو د افکارو او نظریاتو پر بنسټ ولاړه ده، له اسلام سره هېڅ ډول مشابهت او رابطه نه لري. لکه څنګه چې د اسلام د دین کمونست کېدل،مسیحي کېدل، یهودي کېدل او هندو کېدل نا ممکن دي، همداسې د اسلام دیموکرات کېدل هم ناممکن دي.
خو غرب پلوي سیکولر (بی دینه) عناصر او له هغوئ څخه یو څو متأثر

غولېدلي مسلمانان کوښښ کوي چې عامو مسلمانانو ته په درواغو د اسلام او ډيموکراسۍ تر منځ روابط او مشابهتونه وتراشي، ترڅو لدې لارې هغوئ د ډيموکراسۍ د کفري دين په خلاف له مبارزې او جهاد څخه راوګرځوي.

ډيموکراسي په اسلامي نړۍ باندې د غربي استعمار او تسلط د دائمي ساتلو يو خطرناک تضمين دی چې غرب يې د زور، زر، تزوير، زندان او مرګونو په مټ په اسلامي نړۍ کې د خپلو غلامو حکومتونو له لارې خوندي او تلپاتی ساتي، او د هغې د خپرلو او تنفيذ په لاره کې په زرګونو مليارده ډالره، په لکونو پوځيان او پوځي وسايل مصرفوي، او د مخالفت د له منځه وړلو لپاره يې په لکونو مسلمانان په اسلامي هېوادونو کې وژني، او اسلامي حرکتونه او نهضتونه لدې وېرې له منځه وړي چې مظلوم او ځپل شوي مسلمانان د ډيموکراسۍ له کرغېړن حقيقت څخه خبر نه کړي.

اوس چې افغانستان د غرب تر يرغل لاندې راغلی دی، او پدې هېواد کې يې مرګونې جګړه پدې خاطر روانه کړې چې ډيموکراسي ورکښې نافذه کړي، نو په کار ده چې افغان مسلمان ملت د خپل دغه دښمن په فکري، عقائدي او اخلاقي ماهيت پوه شي، او د دښمن هويت ورته له هرې زاويې معلوم شي.

البته ځينې په زړه خيرنو خلکو په ځينې موارو کې د اسلام او ډيموکراسۍ تر منځ يو څه مشابهونه تراشلي، او هم يې په ديموکراتيکو نظامونو کې د کار کولو د جواز لپاره ځينې دلائل ذکر کړي، او يو څه شبهې يې هم را ولاړې کړي دي چې موږ په خپل بل کتاب (فکري پوهنه) کې د شرعي او عقلي دلائلو په رڼا کې په تفصيل سره خبره ورباندې کړې ده. د زيات تفصيل غوښتونکي دې هغه کتاب ته رجوع وکړي.

## د صلیبي جګړو نن او پرون د عواملو او مشابهتونو په رڼا کې

پدې کې هېڅ شك نشته چې د اسلامي نړۍ په هېوادونو کې روانې جګړې صلیبي جګړې دي. په دغو جګړو کې یوې خواته مسلمانان دي چې د خپلې بقا او د اسلامي نظام د حاکمیت لپاره په خپل کور کې په دفاعي جهاد مصروف دي، او بلې خواته غربي صلیبیان او یا د هغوئ شرقي ملګري دي چې د صلیبیانو په ګټه د خپلو ملتونو په خلاف جنګېږي.
دغه صلیبي جګړې کومه اوسنۍ خبره نه ده، بلکې دا د هغو جګړو دوام دی چې څه باندې زر کاله مخکې د غرب د کلیسا مشرانو د اروپا د بادشاهانو په توسط د صلیب تر بیرغ لاندې د اسلام په خلاف پیل کړې وې، او په لکونو صلیبي عسکرو او جنګي بدمعاشانو ورکې برخه اخیستې وه.
دا چې د پرونیو او ننیو صلیبي جګړو تر منځ کوم مشابهتونه او مشترك علتونه او عوامل موجود دي؟ او موږ څنګه د جهاد او مبارزې په مسیر کې د تاریخ له تکرارېدو استفاده وکړو، پدې مضمون کې د پرونیو او ننیو صلیبي جګړو د اسبابو، عواملو او نتائجو د څو مهمو مشابهتونو په هکله د خپل ولس په خدمت کې څو ټکي وړاندې کووم:

**۱ـ د جګړې د اسبابو او عواملو مشابهتونه:**

پرونۍ صلیبي جګړې د اسلام پر ضد پداسې حال کې پیل شوې وې چې اسلامي امت د اسلامي نړۍ په داخل کې له څلورو خطرناکو مشکلاتو سره مخ ؤ. دغو مشکلاتو دښمن ته د دې زمینه برابره کړې وه چې د مسلمانانو پرضد داسې لویه جګړه اعلان کړي چې د اروپا ټول ملتونه ورکې شریك وي.
هغه څلور مشکلات په لاندې ډول وو:

**۱ – د مسلمانانو د يوه دولت او خلافت پر ځای د ډېرو کمزورو دولتونو شتون:**

په شپږمه هجري پېړۍ کې صليبيانو پداسې حال کې د مسلمانانو په خلاف جګړې ته ملا وتړله چې اسلامي خلافت او د مسلمانانو ځواکمن دولت په څو کمزورو دولتونو وېشل شوی ؤ. مسلمانه افريقا او د آسيا ځينې عربي او فارسي سيمې اسماعيلي(عبيدي) او نورو شيعه ګانو لاندې کړې وې، چې له يوې خوا يې د (اهل سنتو) مسلمانانو په اړه د دښمنۍ موقف او روحيه درلوده او له بل لوري يې د کفارو په خلاف پر جهاد باور نه درلود.

جزيرة العرب، عراق، او شام د سلجوقي دولت له زوال وروسته پر بېلابېلو وړو وړو کمزورو امارتونو وېشل شوي وو.

د هند، منځنۍ آسيا او خراسان روابط هم په سياسي او پوځي لحاظ له عربي او نورو اسلامي سيمو سره کمزوري وو.

په دغه ډول حالاتو کې د اروپا (کليسا) هڅه کوله چې د اروپا بېلابېل دولتونه سره يو کړي، او دا کار هغه وخت ممکن ؤ چې کليسا دوئ ټول د يوه بهرني دښمن د مقابلې په صف کې درولي وای. هماغه ؤ چې د کليسا مشرانو اروپايان د اسلامي نړۍ د اشغال، او د اسلام پر ضد د جنګ لپاره وهڅول.

د کليسا له لوري د جنګ لپاره دخلکو د هڅولو حرکت تقريباً نوي کاله وخت واخيست، چې په لومړي ځل د (پاپ دوهم سلفستر) لخوا په ۱۰۰۲ م کال کې پيل شو، او بيا وروسته ( پاپ خوريفوريوس) پوره شل کاله په مسلسل ډول اروپايان ورته په خورا احساساتي ډول وهڅول، تر څو چې په ۱۰۹۷م کال کې اروپا خپله لومړۍ صليبي حمله د مسلمانانو پر ضد پيل کړه، او پدې ډول يې د اروپا مختلف دولتونه د اسلام په مقابل کې د صليب تر بيرغ لاندې سره يو کړل.

اوس پدې زمانه کې هم مسلمانان د یو قوي اسلامي خلافت یا څو محدودو قوي اسلامي دولتونو پر ځای پر اوه پنځوس (**۵۷**) کمزورو دولتونو وېشل شوي دي چې یو بې هم له خپل ځان څخه د غربي دولتونو په مقابل کې پر دفاع قادر نه دی، بلکه ټول یې د عقیدوي، تشریعي، سیاسي او فکري انحرافونو له امله د غربي نړۍ د هېوادونو په غلامۍ کې اخته دي، او د تقریباً یو نیم ملیارد مسلمانانو موقف یې دومره کمزوری کړي چې ټوله اسلامي نړۍ بې د غرب په یوې لویې وېشل شوې مستعمرې بدله کړې ده، او له ټولو یې د کفارو په مقابل کې د دفاع قدرت سلب کړی دی. او د دې کار نتیجه دا راوتلې چې هر مسلمان هېواد په ځانګړي ډول د کوم غربي هېواد تر تأثیر او قوماندې لاندې چلېږي.

**٢- د منحرفو فرقو او نظریاتو موجودیت:**

له هغو اسبابو څخه چې صلیبي اروپا یې د اسلامي نړۍ لاندې کولو ته تشویق کړه یو هم په اسلامي نړۍ کې په فکري او عقیدوي لحاظ د منحرفو او ګمراه فرقو شتون ؤ. دغو ګمراه فرقو که له یوې خوا مسلمانان خپلو بې لارو او باطلو نظریاتو ته وربلل، او له صحیح اسلام څخه بې منحرفول، نو له بلې خوا بې د مسلمانانو پر ضد د صلیبیانو مرسته هم کوله.

د مثال په ډول په مصر او فریقا کې (عبیدي) یا (فاطمي) دولت له یوې خوا خلك د زور او تزویر له لارې د (اسماعیلي تشیع) د باطلې عقیدې منلو ته اړ کړي وو، او له بلې خوا د فاطمي دولت مشر وزیر (شاور) صلیبیانو ته پټ پیغامونه لیږل او هغوئ ته یې ویل چې تاسو له بهر څخه د (صلاح الدین ایوبي) پر لښکر چې له شام څخه د مصر د حفاظت لپاره ورغلی ؤ حمله وکړئ، او مونږ به د مصر له دننه څخه د هغه پر خلاف عسکري اقدام وکړو، او پدې کار سره به اسلامي نړۍ له یو ستر مجاهد (صلاح الدین ایوبي رحمه الله) څخه محرومه کړو.

شيعه عبيديان له دې وېرېدل چې مصر ته د صلاح الدين په ورتګ او هلته په پاتې کېدلو به د اسماعيليه باطل مذهب له منځه ولاړ شي، او خلك به بېرته اصلي اسلام ته وروګرځي، نو ځکه يې صليبيانو ته پر سني مسلمانانو ترجيح ورکوله.

همدا ډول په هغه وخت کې په جزيرة العرب او فارس کې د (حشاشينو) په نامه د اسماعيليه (باطنيه) شيعه ګانو يو بل خطرناك حرکت تسلط پيدا کړی وو. اسماعيليه وو د عباسي سني خلافت پر ضد پراخ فعاليتونه شروع کړي وو، اسلامي شريعت يې لغو اعلان کړی وو، محرمات يې جائز ګڼلي وو، د اسلامي نړۍ حاجيان يې له حج څخه منع کړي وو، (حجر اسود) يې له کعبې څخه غلا کړی او تر شلو کلونو زيات يې له ځانه سره د (احساء) په سيمه کې ساتلی وو.

په هغه وخت کې اسماعيليه وو ته ورته نورې فکري او مذهبي منحرفې ډلې هم رامنځ ته شوې وې چې دښمنانو له دغو باطلو او منحرفو ډلو څخه د مسلمانانو په ځپلو او له منځه وړلو کې استفاده وکړه.

نن هم چې صليبي لښکرو پر افغانستان، عراق،شام، صومال، ايريتيريا ، او نورو هيوادونو خپل تسلط ټينګ کړی يوه زياته برخه اسلام ته منسوبې منحرفې ډلې بې له ځانه سره ملګرې کړې او تر يوه حده يې په سياسي قدرت کې شريکې کړې هم دي.

د دغو اوسنيو ډلو او فرقو پلويان ځينې د غربي (سيکولرو) نظرياتو خاوندان دي چې د اسلام له نظام سره يې سخته دښمني ده، که څه هم چې په خوله ځانونو ته مسلمانان وايي، خو په حقيقت کې غربي، صليبي، او يا لبېرال او ډيموکرات نظريات ورته تر اسلامي نظرياتو، احکامو او ارزښتونو ډير ارزښتمن دي.

او ځينې نور يې بيا د اسلام په نامه له جهاد ، مجاهدينو او د اسلامي نظام د قيام لپاره له کار کولو سره مخالفت کوي. په دغو ډلو کې سنيانو ته منسوبې ډلې هم شته، لکه ځينې تصوف او روحانيت ته په دروغو

منسوبې بدعتې ډلې، او یا ځنې درباري تش په نامه سلفي او د ډیموکراتیك اسلام د پلویانو ډلې چې له جهاد او مجاهدینو څخه کرکه لري، خو له سیکولرو او لادینه احزابو سره د امریکا او نورو صلیبیانو تر حمایې لاندې د ګډو حکومتونو جوړولو ته تیارې دي. خو تر ټولو خطرناك موقف بیا د شیعه ډلو دی چې په ټوله اسلامي نړۍ کې دسني مجاهدینو پر ضد د صلیبیانو علني ملاتړ کوي.

د شیعه جهتونو په سر کې د ایران شیعه حکومت دی چې په عراق کې یې د شیعه ګانو قدرت ته د رسېدلو لپاره د امریکایانو مرسته وکړه، او لا اوس یې هم کوي، او په خپل ټول توان هڅه کوي چې په عراق کې د امریکایانو لخوا د شیعه ګانو او سیکولر عناصرو لپاره جوړ شوی حکومت او په سوریه کې د نُصیري باطني فرقې حکومت د مجاهدینو لخوا ړنګ نشي، او هلته یو قوي واقعي اسلامي حکومت قائم نشي.

په عراق کې د تشیع مذهبي مشر سیستاني د مجاهدینو پر ضد د امریکا تر څنګ ودرید ، او د عراق ټولو شیعه ګانو ته یې د امریکایي ادارې د طاعت توصیه وکړه.

همدا ډول په افغانستان کې ټول شیعه احزاب په یومخیز او مسلسل ډول په هغو حکومتونوکې شامل شول چې امریکایانو د افغانستان لپاره جوړ کړل. کېداې شي ځینې خلك ووایي چې په افغانستان کې سنیان هم د امریکایي ادارې برخه دي، دا خبره صحیح ده چې یوه برخه بې لارې، خرڅ شوي او مرتد عناصر به د هغوئ تر بیرغ لاندې درېدلي وي، خو نور ټول سنیان د امریکا په مخالف صف کې ولاړ دي او د مجاهدینو ملاتړ کوي.

پداسې حال کې چې د صلیبیانو په خلاف په اوسني مقاومت کې نه کوم شیعه تنظیم ولاړ دي، او نه هم په شیعه میشتو سیمو کې د امریکا په ضد کوم جهادي حرکت او یا مخالفت لیدلی کېږي.

په اسلامي نړۍ کې د سنّي مجاهدینو په هکله د ایران او په نړۍ کې د ټولو شیعه ګانو او غربیانو موقف یو ډول دی، او ټول په مشترك ډول په

همغږۍ سره کار کوي چې مجاهدين بايد په هېڅ صورت کې د اسلامي دولت جوړولو ته پرې نښودل شي.

پر افغانستان د صليبيانو په اوسني تسلط کې (اسماعيليه) شيعه ګان هم چې په افغانستان کې د (آغاخانيانو) او (کيانيانو) په نامه پېژندل کېږي ښه په ټينګه د صليبيانو ترڅنګ ودريدل. د (منصور نادري) پيروان د آغاخان د نړيوالې مؤسسې له اقتصادي امکاناتو څخه په استفادی د امريکا او اروپايي دولتونو تر حمايې او سيوري لاندې د افغانستان پر درې مهمو او حياتي برخو لکه مېډيا ، بانکدارۍ، او تعليم مسلط شول، او د (طلوع) او (لمر) د تلويزيونونو په لرلو يې ټول افغانستان مستقيماً د غربي فرهنګ تر تأثير لاندې راووست.

صليبيان فکر کوي چې د دوئ تر وتلو وروسته د افغاني شيعه ګانو ډلې چې اسماعيليه او اماميه شيعه ګان ټول ورکې د خليلي، محقق، محسني، نادري، او نوروشيعه رهبرانو په مشرۍ شاملې دې د صليبيانو ښه خلف ثابتېدلی شي، له همدې امله يې هغوئ ته د هر ډول پرمختګ زمينې او وسائل برابر کړل، او د اشغال په کلونو کې يې د غربي ډيموکراسۍ په قالب کې د حکومت کولو ښه تمرين هم ورکړ.

امريکايانو او د سيمي شيعه جهتونو د يو سنجول شوي پلان له مخې د کابل ښار د افغانستان د شيعه ؤ په تر ټولو لوی مرکز تبديل کړ، او په زرګونو تعليمي، حرفوي، سياسي، فرهنګي، قومي او اقتصادي مراکز او مؤسسات يې ورته د کابل په شيعه ميشتو سيمو کې جوړ کړل.

له بلې خوا د افغاني مرتد شويو مسيحيانو په نشراتو، ويب پاڼو، راډيويې او تلويزوني خپرونو کې هم ليدل کېږي چې ډېره برخه مرتد شوي مسيحيان هم د افغانستان په هزاره توکم پورې اړه لري، که څه هم چې د نورو قومو اړوند خلك هم ورکې ليدل کېږي.

په مجموع کې ويلای شو چې په افغانستان، عراق او سيمه کې د منحرفو فرقو او مذهبي ډلو شتون د صليبيانو د يرغل لپاره يو ښه مشوق، او د

هغوئ د تسلط د قيام لپاره يو قوي تضمين دی. او هر څومره چې دغه منحرفې ډلې په سياسي، اقتصادي، تعليمي، فرهنګي او اجتماعي لحاظ تقويه کېږي، په هماغه اندازه دلته د صليبيانو د پاتې کېدلو چانس نور هم زياتېږي.

د دې لپاره چې د صليبيانو په ګټه د محلي ملګرتيا او تقويې منابع وچ شي، او د سيمې د خلکو له مرستو څخه بې برخې شي، نو د صليبيانو او د هغوئ د ملګرو د قتال تر څنګ د دغو منحرفو فکري فرقو چې که هغه سيکولر احزاب او ټولنې دي، او که مذهبي فرقې دي هم بايد د هراړخيزې فکري، فرهنګي او اجتماعي مقابلې پلان تر کار لاندې ونيول شي.

**۳- په مسلمانو هېوادونو کې د سياسي قيادت د نا اهلۍ ستونزه :**

د پرونيو او نننيو صليبي جګړو تر منځ د مشابهت يو بل ټکی په مسلمانو هېوادونو کې د سياسي قيادت د نا اهليت ستونزه ده. د پخوانيو صليبي جګړو تر پيل کېدو مخکې اسلامي سيمې د داسې خلفاوو، پادشاهانو، وزيرانو او واليانو لخوا اداره کېدې چې د قيادت او ولايت سم اهليت يې نه درلود. د هغوئ ځينې بې په موروثي شکل قدرت ته رسيدلي ول، ځينې بې په فکري او اخلاقي لحاظ منحرف وو، او ځينې نورو ته د امت تر عليا مصالحو خپل شخصي مصالح ډير مهم وو، او د هغو د خوندي ساتلو لپاره د خپلو مسلمانو وروڼو په مقابل کې له صليبيانو سره ايتلاف ته هم تيار وو، او هغه مخلص قائدين او مشران چې د قيادت استعداد يې درلود هغوئ د خپلو حريفانو له طرفه د دښمنانو له مقابلې مشغول کړل شوي وو. د دې وضعيت نتيجه په هغه وخت کې دا راووتله چې دښمن په ډاډه زړه د مسلمانانو پر هېوادونو حملې وکړي، ځکه هغوئ پوهېدل چې اسلامي نړۍ له داسې قيادت څخه بې برخې ده چې مسلمانان د صليبيانو په خلاف د جهاد لپاره تيار کړي، او په خپله دجګړو قيادت وکړي. خو په مقابل کې اروپا خپل تر ټولو پياوړي او د ښه عسکري او قيادي اهليت خاوندان د جګړې د رهبري کولو لپاره راولېږل.

نن هم د سياسي قيادت په ډګر کې اسلامي هېوادونه له همدغه ډول يو مشابه وضعيت سره مخ دي، مسلمانان په سياسي لحاظ د خلافت له اسلامي واحد نظام څخه بې برخې دي، او د اسلامي نړۍ د اکثره هېوادونو قيادت د نااهلو، بې دينو ډارنو او عيش پرستو پادشاهانو او مشرانو په لاس کې دی چې په موروثي ډول د قيادت سلسله په همدوئ کې راروانه ده او د اسلامي هېوادونو سره او سپين ، اقتصادي منابع، نفت او ګاز، لوی صنعتونه او هر څه د همدوئ په انحصار کې دي، او مسلمان ملتونه يې د فقر او لوږې په حالت کې ځانته تابع او محتاج ساتلي دي. دغو پادشاهانو په استبدادي ډول د الله ﷻ د شريعت پر ځای غربي قوانين پر خپلو ملتونو تحميل کړي دي، او د اسلامي قوانينو او شريعت د تنفيذ مخه يې نيولې ده.

د ځينې نورو هېوادونو قيادت بيا د داسې بې دينه او سيکولرو حکامو په لاس کې دی چې غرب د اسلامي نړۍ پر هېوادونو په بېلابېلو طريقو مسلط کړي دي. دغه ډول حکام په حقيقت کې په اسلامی نړۍ کې د غرب د پلانونو تنفيذوونکي دي، او دا کار چې په هر قيمت ورته تماميږي هېڅ پرواه يې نه لري. دوئ د غلاوو، بډو او اختلاس د بېلابېلو جناياتو مرتکبين دي. دغه حکام په ديني لحاظ د شريعت احکامو ته هېڅ ډول پاپندی او التزام نه لري، او تر ټولو سخته دښمني يې له هغه چا سره ده چې د الله ﷻ د شريعت د تطبيق لپاره کار کوي. ځکه چې دوئ پوهېږي چې کله په ريښتني ډول اسلامي شريعت تطبيق شي نو دوئ به بيا حاکمان نه وي، بلکه د ملي خيانتونو او لويو جناياتو د ارتکاب له امله به محاسبه ورسره کېږي. نو دوئ فکر کوي چې په هره وسيله چې وي بايد د اسلام د حکومت د جوړېدو او د خلافت د رامنځته کېدو مخنيوی وکړي،او خپل ټول پوځونه او نور مادي او معنوي وسائل د مجاهدينو پر ضد د جګړې ميدان ته راوباسي.

اسلامي نړۍ نن ورځ د دغه ډول بې دینو، ډارنو، مفسدواو مرتدو حکامو په یرغمل کې ده.
پر افغانستان او عراق د امریکا د حملې پر مهال ولیدل شول چې په ټولو اسلامي هېوادونو کې هېڅ رئیس او بادشاه د امریکا د صلیبي حملې په مقابل کې څه مخالفت ونښود. بلکه ټولو په چوپه خوله د امریکا د ملګرتیا لاره غوره کړه.
که د اسلامي نړۍ یوازې یو څو هېوادونه هم د صالحو او مؤمنو قیادتونو لخوا داره کېدای او په خپل منځ کې یې د اسلام د غوښتنو پر اساس د تعاون یو اتحاد درلودلی نو صلیبي نړۍ به د مسلمانانو پر ضد دغه ډول یو اقدام ته په آسانه زړه نه وای ښه کړی.
۴– **د صلیبیانو اقتصادي مصالح او پراخ غوښتنه**:
د پرونۍ او ننۍ صلیبي جګړې د عواملو ترمنځ یو بل مشابهت د صلیبیانو د دیني هدف ترڅنګ د اقتصادي او د پراخ غوښتنې د اهدافو تحقق دی. پرون چې اروپايي صلیبیانو په کومه زمانه کې د اسلام په خلاف صلیبي جګړې پیل کړې وې هغوئ پخپله هغې زمانې ته د اروپا په تاریخ کې د تیارو زمانه (Dark Ages) وايي، او د تیارو زمانه ځکه ورته وايي چې په هغه وخت کې په اروپا کې د روم امپراتوري له منځه تللې وه، د یونان فلسفه او عقلي علوم هم تر خاورو لاندې شوي ول، او اروپایانو په جهل، غربت، خپل منځي جګړو، مذهبي استبداد او نابرابرې طبقاتي ټولنه کې ژوند کاوو چې د ژوند آسانتیاوې د یو څو محدودو پادشاهانو او د کلیسا د مشرانو په واك کې وې، او نورو خلکو د غلامانو په څېر د خوارۍ ژوند تېراوه. د زراعتي حاصلاتو یوه زیاته برخه به یې ظالمو حکومتونو او د کلیسا مشرانو په ډول ډول ټکسونو کې ورڅخه په زوره اخیسته.
له بل لوري د اروپایانو د نفوسو شمېر په ډېرېدوؤ، او د اروپا وچه یې د ځان لپاره کافي نه ګڼله. په مقابل کې اروپایانو په هغه زمانه کې لیدل چې

اسلامي نړی د هر ډول نعمتونو ځای دی، او اسلامي تمدن خلك له جهل او فکري بېرته پاتېوالي څخه د رڼا او هوسا ژوند په لوري راوېستلي دي، او د مدیترانې د سمندر په شرقي او جنوبي څنډو کې یې په هغو سیمو کې خپل بیرغ پورته کړی چې د اسلام په اولو وختونو کې دنصرانیانو تر تسلط لاندې وې.

د اروپا دغو بدو اقتصادي حالاتو اوروپایي مشران دېته وهڅول چې د اقتصادي مقاصدو او د پراخ غوښتنې په خاطر پر اسلامي نړۍ یرغل وکړي. د کلیسا مشرانو هم دغه یرغل د مذهبي او اقتصادي مصالحو په خاطر تائید کړ او د جګړې میدان ته ورسره راووتل، او پدې ډول د اروپا د سیاسي او دیني مشرانو د اهدافو مشارکت دوئ په خپلو کې سره یو ځای کړل.

نن هم په اسلامي نړۍ کې د نفتو او ګازو دومره لوی، ارزښناك او د اقتصادي اهمیت وړ ذخایر پراته دي چې ټوله دنیا ورته محتاجه ده، او د دنیا د نفتو او ګازو اتیا په سلو کې ضرورت د اسلامي نړۍ له هېوادونو پوره کېږي. که مسلمان هېوادونه یوازې تېل هم د سیاسي او اقتصادي فشار د یوې وسیلې په حیث استعمال کړي نو د ټولې دنیا خلك به یې د خبرې منلو ته تسلیم شي.

د نفتو او ګازو د اهمیت تر څنګ د اسلامي نړۍ د جغرافیوي موقعیت اهمیت پدې کې هم دی چې د ټولې نړۍ اکمالاتي او تجارتې لارې داسلامي نړۍ د هېوادونو له بري، بحري، او هوایي حدودو څخه تېرېږي، او مسلمانان د یو صالح قیادت او قوي حکومت په لرلو سره کولی شي چې د نورې نړۍ پر خلکو خپل تجارتي شرایط ومني. ځکه چې په تجارتي او ترانسپورتي لحاظ د ستر اهمیت لرونکي د نړۍ اوه سمندري معبرونه چې د (جبل الطارق)، د مصر (سویز کانال)، (باب المندب)، د (هرمز) تنګی، د (باسفور) او د (دردنیل) تنګي او د (مالکا) معبرونه دي دا ټول په اسلامي

نړۍ کې موقعیت لري چې له طریقه یې د ټولې نړۍ سمندري تجارت او ترانسپورت تر واك لاندې راوستل کېدی شي.

د پرونیو او ننني صلیبي جګړو د اسبابو او عواملو تر منځ نور هم ډېر لوی او واړه مشابهتونه شته چې دا ټول موږ ته دا را په ګوته کوي چې ترڅو چې مسلمانانو په داخل کې له دې عواملو څخه ځان نه وي خلاص کړی نو تر هغه وخته به د صلیب پیروانو ته اسانه وي چې پر اسلامي نړۍ پرله پسې یرغلونه وکړي، مسلمانان تسخیر کړي، پر خاوره یې خپل تسلط ټینګ کړي، شتمنۍ یې غلا کړي او د اسلام د دین د تحریف پراخې هڅې په کار واچوي.

## غرب د مسلمانانو لپاره څه ډول اسلام غواړي؟

غرب که ل یوې خوا په ټوله نړۍ کې د اسلام او مسلمانانو په خلاف یوه هراړخیزه جګړه پیل کړې ده نو له بلې خوا ښه په شد او مد سره دا دعوه هم کوي چې غرب له اسلام سره دښمني نه لري، بلکې په اسلامي نړۍ کې د حکومتونو مرستې کوي، او غربي هېوادونه او مؤسسې د مسلمانو ولسونو د ژوند د سطحې د لوړولو او هغوئ ته دخدمت کولو لپاره ښه ډېر پلانونه او پروژې لري چې دا هر څه پدې دلالت کوي چې غرب له اسلام او مسلمانانو سره دښمني نه لري.
پورتنۍ دواړه خبرې هره یوه پر خپل ځای سمه ده. او هغه داسې چی غرب په خپل ذهن کې دوه ډوله اسلام لري، یو هغه اسلام دی چې د الله تعالی له لوري پر محمدﷺ نازل شوی، مسلمانانو د تاریخ په اوږدو کې منلی او له هغه یې دفاع کړې ده. او همدغه دین مسلمانان د یو داسې امت په حیث معرفي کوي چې په خپل هر څه کې له نورو خلکو جلا او د خپل ایمان له امله تر نورو ټولو انسانانو غوره دي. دغه اسلام مسلمانانو ته د شریعت د منلو او نورو خلکو ته د هغه د ور رسولو امر کوي، او دعوت د مسلمانانو وظیفه او د دعوت د رسولو په لاره جهاد فریضه بولي.
د دې اسلام شریعت په هر څه کې پوره دی، او له نورو دینونو او نظریاتو سره نه (پیوندکارۍ) مني او نه ورته ضرورت لري. دغه اسلام له خپل ځانه پرته نورو ټولو دینونو او نظریاتو ته (کفر) (جاهلیت) او (فتنه) وایي، او خپلو پیروانو ته امر کوي چې د(کفر) (جاهلیت) او (فتنې) په خلاف شرعي (قتال) او (جهاد) وکړي.

دغه اسلام (حق) یوازې په خپل ځان کې منحصر ګڼي، ځکه چې د ټولو پخوانیو منسوخ شویو اسماني دینونو (حق) او ښېګڼې یې په خپله غېږه کې راټولې کړې دي.
دوهم ډول اسلام هغه دی چې غرب د خپل (استشراقي)،(استعماري) (تنصیري) او د (پراختیا غوښتنې) د فهم، غوښتنو او مصالحو په رڼا کې د مسلمانانو لپاره جوړ کړی، او په اسلامی نړۍ کې یې د خپلو حلیفو نظامونو، مؤسساتو او مفکرینو په توسط پر مسلمانانو ورتپل او مسلطول غواړي.
دغه دوهم ډول اسلام د (الهي وحیې) او (نبوي تعلیماتو) پر بنسټ نه بلکې یو (دیموکرات) او د خلکو په خوښه جوړ شوی اسلام دی چې د قوانینو مصدر ورکې (قرآن او سنت) نه بلکې د (انسانانو عقل) او (د اکثریت غوښتنې) دي.
د غرب دغه اسلام بنیادموته یوازې د انسان په نظر ګوري، ټول انسانان ورکې یو ډول حیثیت، مرتبه او احترام لري، او د تفاضل (یو پر بل د برترۍ) ټول اسباب او عوامل ردوي، د ټولې نړۍ له خلکو سره په یو ډول (مشترکو ارزښتونو) باور لري، او یو ډول بین المللی سیاسي، حقوقی او مدني قوانین مني.
د غرب پدې معرفي شوي اسلام کې د (جهاد)، (ولاء او براء) او پر نورو ادیانو او نظریاتو د (غلبې فکر) ته ځای نشته. دغه اسلام کوم ځانګړی شریعت نه لري، بلکې په هغو (وضعي قوانینو) فیصله کوي چې انسانانو د خپل (عقل) او (ضرورت) پر بنسټ جوړ کړي دي.
پدې اسلام کې د(ښو) او (بدو) اخلاقو، افعالو او عقائدو تعیین د شریعت حق نه بلکې د انسانانو خپل حق دی. هر څه ته چې ښه وایي هغه (ښه) او هر څه ته (بد) وایي هغه (بد) دي. په دې اسلام کې مسلمان کېدل (د اسلام د دین اختیارول) یو مکلفیت نه بلکې یو اختیار دی چې انسان په اسلام کې پاتې کېږي او که کمونیزم، لیبرالیزم، دیموکراسي، هیومنزم، نشنلزم

او یا کومه بله نظریه او دین مني. خو په هر صورت کې به انسان بیا هم مسلمان ګڼل کېدای شي که وغواړي چې (مسلمان) دې وګڼل شي.
د غرب له لوري دغه ډول جوړ شوی اسلام د غرب د (بشري حقوقو د نړیوالې اعلامې) له بې استثناء منلو سره هېڅ ستونزه نه لري. او همدارنګه په ټولو هغو (میثاقونو) او (تړونونو) عمل کول نه یوازې روا بولي بلکې د مسلمانانو مکلفیت یې بولي چې د (ملګرو ملتونو) د ادارې، د (امنیت د شورى)،(ناټو)،(اروپایي اتحادیې) او نورو لویو سازمانو او ادارو له لوري رامنځته شوي دي.
پدې اسلام کې له ولسونو سره د روابطو، جنګ او سولې لپاره معیار (دین) او (عقیده) نه بلکې سیاسي او اقتصادي مصالح دي. همدا رنګه پدې اسلام کې د(جنس) فرق نشته، ښځې او نارینه ټول یو ډول حقوق او وجایب لري او په هر څه کې سره برابر دي.
غرب له هغه اسلام سره چې د الله تعالی ﷻ له طرفه راغلی دښمني لري، خو د دې دوهم ډول اسلام د خپراوي لپاره هم کار کوي او هم یې په اسلامي نړۍ کې له پیروانو څخه هر اړخیز ملاتړ کوي.
د دې لپاره چې دا موضوع مو د دلایلو په رڼا کې روښانه کړې وي په لاندې عنوانو یې ویشو:
**له ریښتیني اسلام سره د غرب دښمني**:
غربیان په مجموعي ډول چې که هغه (یهودان) یا (نصرانیان) دي، او یا هم ملحدان (دین نه منونکي) دي، دا دریواړه طایفې د اسلام له شروع نه تر نن پورې له اسلام سره په جګړه کې دي، چې د رسول الله ﷺ په خلاف د یهودانو توطیې، د اصحابو کرامو په خلاف په شام کې د مسلطو رومیانو لښکرکشۍ، د اسلام په تاریخ کې صلیبي جګړې، د غربي دولتونو له لوري استعمارې جګړې او د جهاد او ریښتني اسلام په خلاف روانه نړیواله جګړه یې ټول تاریخي شواهد دي.

قرآن کريم په ډېرو آيتونو کې اهل کتاب (يهود) او (نصارى) او نور کافران د الله تعالى ﷻ او د مسلمانانو د دښمنانو په حيث معرفي کوي، او مسلمانان ديته هڅوي چې د هغوئ دښمنۍ ته تيار و اوسي، او له هغوئ سره په هېڅ ډول دوستي ونه کړي، ځکه چې هغوئ تر هغه د مسلمانانو له دښمنۍ لاس نه اخلي چې تر څو يې مسلمانان کافر کړي نه وي، لکه چې

الله تعالى ﷻ فرمايي: ﴿وَلَن تَرْضَىٰ عَنكَ ٱلْيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَـٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمْ﴾ البقرة : ١٢٠.

ترجمه: (هېڅکله به يهود او نصارى له تا څخه خوشحاله نشي تر هغه چې د دوئ په ملت پسې روان نه شې).

علماء وايي چې پدې آيت کې د (لن) ټکی دري مفهومه افاده کوي چې (نفي)، (تأکيد) او (تأبيد) دي. يعني په يقيني ډول به دوئ هېڅکله له تاسې څخه تر هغه وخته راضي نشي تر څو مو چې د دوئ لاره نه وي خپله کړې.

الله تعالى په بل آيت کې له مسلمانانو سره د کفارو د تعامل په اړه فرمايي: ﴿وَلَا يَزَالُونَ يُقَـٰتِلُونَكُمْ حَتَّىٰ يَرُدُّوكُمْ عَن دِينِكُمْ إِنِ ٱسْتَطَـٰعُوا۟﴾ البقرة: ٢١٧.

ترجمه: (همېشه به کافران له تاسې سره جګړه کوي تر څو تاسې له خپل دين (اسلام) څخه مرتد کړي که چېرې دوئ پدې کار وتوانېږي).

د عربي ژبې علماء وايي چې د دې آيت د (ولايزالون) په تعبير کې د (استمراري تجدد) مفهوم پروت دی، پدې معنی چې جګړه به مستمره او دايمي وي، خو په شکل او وسائلو کې به يې تبديلي او نوی والی راځي.

قرآن کريم پدې دواړو آيتونو کې د (حتى) ټکی د مسلمانانو په خلاف د کفارو د ناراضۍ او د هغوئ د جګړې د (فاصل حد) په حيث ذکر کړی دی، پدې معنی چې که مسلمانان تر (حتى) پر دمخه حالت ټينګ ولاړ ول،

او د کفارو پيروي يې نه کوله، نو د هغوئ په خلاف به د کفارو ناراضي او جګړه دوام لري، او په بېلابېلو ډولونو به د اسلام او مسلمانانو په خلاف د کفارو ناراضي او جګړه دوام لري. خو که يې د کفارو د ملت پيروي وکړه، او د خپل دين د احکامو له عملي کولو وګرځېدل، نو په هغه وخت کې به بيا د دوئ په خلاف د کفارو جګړې او مخالفت پای مومي.

**د ريښتني اسلام په خلاف دغرب د معاصرو رهبرانو دريځونه**:

د معاصر غرب سياسي پوځي او فکري رهبران هم په همدې ټينګار کوي چې مسلمانان بايد د غرب (نظريات)، (نظامونه) (قوانين)، (فرهنګ) او (ژوند بڼه) ومني، او که يې په رضا نه مني نو بايد په زور او جبر ورباندې ومنل شي.

(رنډکارپوريشن) چې په امريکا کې دامريکا نظام ته له امريکا او امريکايي ارزښتونو څخه د دفاع لپاره د تحقيقاتو، مشورو ورکولو او استراتيژيکو مطالعاتو لوی او مهم مرکز دی د معاصرې امريکا لوی رهبران او مفکرين چې د هغوئ په ډله کې د امريکا پخوانی د دفاع وزيران (هارولډ براون)، (فرانك کارلوچي)،(وليام پيري)، (ډونالډ رامسفيلډ)، د ملي امنيت پخواني لوی مديران او مشاورين (سيکوکرفت)، (کنډوليزا رايس)، (زلمی خليلزاد)، په دوهمه نړيواله جګړه کې د امريکايي پوځ لوی قومندان جنرال (آرنولډ)، د امريکا معاصر فيلسوف او مفکر (فرانسيس فوکوياما) او د امريکا پخوانی مشهور خارجه وزير (هنري کيسنجر) شامل دی د دې مرکز غړي او مشاورين دي. دغه مرکز د امريکا لپاره د اسلامي نړۍ په اړه د پاليسۍ جوړولو ستر تحقياتي مرکز دی.

دغه مرکز په خپله هغه څېړنه کې چې په ۲۰۰۴م کال کې يې د (ډيموکراتيك متمدن اسلام) په نامه خپره کړې دا تشخيصوي چې د مسلمانانو او غرب تر منځ به تر هغه وخته کشمکش روان وي چې تر څو مسلمانانو غربي فرهنګ او ارزښتونه چې دغه مرکز يې (نړيوال فرهنګ او ارزښتونه) بولي نه وي قبول کړي.

څېړنه دغه مفهوم پدې ټکوکې بیانوي:
(له نړیوال فرهنګ څخه د مسلمانانو لیرې والی د هغوئ او د نورو ترمنځ د کړکیچ زمینه برابره کړې ده).
په پورتنې عبارت کې که څه هم چې د مسلمانانو په خلاف د غرب د جنګ عامل چې د مسلمانانو له لوري د غرب د فرهنګ نه منل دي په ادبي الفاظو بیان شوی او په منافقانه ډول د غرب فرهنګ ته ورکې نړیوال فرهنګ ویل شوي، خو د پورتنۍ خبرې ریښتنې معنی او مفهوم دا دی چې د مسلمانانو او غرب ترمنځ به جګړه او کړکېچ تر هغه دوام لري چې تر څو مسلمانانو (خپل فرهنګ) پرې ایښی او د غربیانو په تعبیر (نړیوال فرهنګ) یې خپل کړی نه وي. او هر کله چې د فرهنګونو دغه توپیر له منځه ولاړ شي نو په هغه صورت کې به کړکیچ هم په خپله له منځه ځي. او دا کټ مټ هماغه مفهوم دی چې الله تعالی په قرآن کریم کې په مخکنیو یادو شویو آیتونوکې بیان کړی دی.
د غرب او د اسلام ترمنځ د جګړې په اړه معاصر امریکایې مشهور مفکر او فیلسوف (ساموېل هنټګټن) چې د (تمدنونو د ټکر) په نامه د جنجال پاروونکي مشهور کتاب مؤلف هم دی داسې وایي :
( د اسلامي او غربي تمدن ترمنځ ټکر له ۱۳۰۰کلونو راهیسې راروان دی. او دا ټولې پیړۍ د اسلام او غرب ترمنځ په مسلح کشمکش کې تېرې شوې او هېڅکله هم د دې جګړې اور ندی مړ شوی. د دې تمه نه کېږي چې دغه کشمکش به له منځه ولاړ شي، بلکې نور به هم زور واخلي، ځکه چې اسلام وینې بهوونکی تصور لري).
دغه معاصر فیلسوف چې نظریات یې د امریکا په جنګي او استراتیژیکو پلانونو کې مهم ځای لري په صراحت سره غرب او اسلام یو د بل دښمن معرفي کوي او په ښکاره وایې چې د غرب او د اسلام ترمنځ د جګړې د دریدلو څه امکان نشته، او علت یې هم دا ښیي چې اسلام له غرب سره

جوړه نه مني، او د خپلې بقا لپاره خپلو پيروانو ته د قربانۍ او وينو تويولو تصور ورکوي.

د ريښتني اسلام او غرب ترمنځ د جګړې د حقيقت او دوام په اړه هغه کميسيون هم چې د (ستمبر د يوولسم ) د پېښې په اړه يې تحقيق وکړ دې نتيجې ته رسېدلی چې له اسلام سره سوله نشي کېدای. دغه کميسون په خپل راپور کې ليکلي :

( د امريکا حقيقي دښمن اسلامي راديکال بنسټپال فکر دی، هغه چې د (ابن تيميه) او (سيدقطب) له افکارو يې سرچينه اخيستې ده. او لدې فکر سره په هېڅ ډول د سولې مجال نشته).

امريکايي محقيقينو ته دا ښه ورمعلومه ده چې اسلام د (ابن تيميه) او (سيدقطب) د افکارو زېږنده نه دی، بلکې هغه د الله تعالی دين دی چې (ابن تيميه) او (سيدقطب) يې منونکي او پيروان دي، خو دوئ دا دواړه ځکه مشخص کړي دي چې دې دواړو هر يوه په خپل وخت کې د اسلامي فکر د (خالصيت) لپاره ژور کار کړی، او له اسلام څخه يې په خپل وخت کې (جاهلي تصورات) په خورا زوړرتيا او معقوليت سره څنډلي دي، او مسلمانان يې د (معاصرو جاهليتونو) په خلاف مبارزې ته هڅولي، او هغوئ ته يې د جاهليت په خلاف د مقاومت داسې يو روڼ تصور ورکړی دی چې له جاهليت سره ورکې د جوړ جاړي لپاره هېڅ ځای نشته.

امام (ابن تيميه) په خپل وخت کې ټول هغه (جاهلي تصورات) له اسلامي فکر څخه ليرې کړل چې جنګيزيانو د خپل مقدس قانون (يا سق) په بڼه کې د اسلامي او غير اسلامي احکامو او تصوارتو په سره يو ځای کولو رامنځته کړي وو او له هغو څخه يې په اسلامي نړۍ کې د خپلو رعاياوو لپاره د ژوند تېرولو لائحه او قانول جوړ کړی وو.

او (سيدقطب) په شلمه ميلادي پيړۍ کې د غرب ټول هغه تاثيرات له اسلامي فکر څخه وغورځول چې غرب د (کمونيزم)، (ليبراليزم)،

(نشنلیزم)، (دیموکراسۍ) او نورو نظریاتوپه بڼه په اسلامي فکر کې ور داخل کړي ول.
که د اسلام او مسلمانانو په اړه د معاصر غرب د رهبرانو دریځونو او ویناوو ته پام وکړو نو وبه وینو چې هغوئ په ښکاره د اسلام په خلاف خپله جګړه اعلانوي، او غربیان د مسلمانانو په خلاف جګړې او د هغوئ د هېوادونو نیولو ته هڅوي.
د امریکا پخواني جمهور رئیس (ریچارډ نکسون) په خپلو یادښتونو کې د مسلمانانو په اړه وایي :
(( د مسلمانانو په اړه مونږ د حل یوازې دوه لارې لرو:
اوله دا چې له یوې مخې یې له منځه یوسو.
دوهم دا چې په مدني او سیکولرو ټولنو کې یې ویلي کړو)).
دا چې لومړی کار غربیانو ته ناممکن او مسلمانانو ته مقاومت پاروونکی دی نو ځکه خو غربیانو د مسلمانانو د تسخیرولو لپاره په پراخه پیمانه له دوهمې حل لارې څخه کار اخلي.
همدارنګه د امریکا په خارجه وزارت کې د پلان جوړونې د څانګې پخوانی رئیس او د منځني ختیځ لپاره د امریکا د یوه پخواني جمهور رئیس (جونسن) مشاور (ایوګین روستو) وایي :
((مونږ باید پدې پوه شو چې زمونږ او عربو ترمنځ اختلافات د دوو دولتونو او یا دوو ولسونو ترمنځ اختلافات ندي، بلکې دا د اسلامي نړۍ او مسیحي تمدن تر منځ اختلافات دي، او د تاریخ حالات د دې ګواهي ورکوي چې امریکا د غربی نړۍ یو تکمیلوونکی جز دی چې د غرب د فلسفې، عقیدې او نظام د تکمیل لپاره کار کوي، او دغه وظیفه امریکا په شرق کې د اسلامي نړۍ، اسلامي فلسفې او اسلامي عقیدې او دین په خلاف د جګړې په صف کې دروي. امریکا لدې پرته بله لاره نه لري چې په شرق کې د اسلام په خلاف د یهوانو تر څنګ ونه دریږي، ځکه چې که

امریکا لدې پرته بله لاره غوره کړي نو بیا به یې خپلې ژبې، خپل فرهنګ، خپلې فلسفې او خپلو ټولو بنسټونو ته شاه کړې وي)).
(ایوګین روستو) په پورتني عبارت کې د دې نظریې اظهار کوي چې په اسلامي نړۍ کې د غربي اشغالګرو او یرغلګرو هدف د اسلام او اسلامي تمدن له منځه وړل دي، او د دې کار لپاره په شرق کې د یهودي دولت ټینګول او له هغه څخه ملاتړ د غرب یو استراتیژیك ضرورت دی.
کله چې په تېره پېړۍ کې په مراکش کې د فرانسې جګړه اوږده شوه نو د فرانسې د پارلمان ځینې غړي د فرانسې خارجه وزیر (مسیو بیدو) ته ورغلل تر څو له هغه وغواړې چې دې جګړې ته نور د پای ټکی معلوم کړي، هغه ورته په ځواب کې وویل :
(( دا د هلال او صلیب ترمنځ جګړه ده )).
پدې معنی چې تر څو د مسلمانانو د مسجدونو پر منارو ( هلال ) پورته وي، او د غرب پر کلیساګانو (صلیب) ولاړ وي نو دا جګړه به روانه وي.
د مسلمانانو په خلاف د جګړې او پر اسلامي نړۍ د تسلط په اړه د برتانیې پخوانی صدراعظم (ګلاډستون) وایي :
(( تر څو چې قرآن د مسلمانانو په لاسونو کې وي نه به اروپا هېڅکله اسلامي نړۍ تر خپل تسلط لاندې راوستلی شي، او نه به په خپله په امن کې وي )).
د پورتني خبرې مطلب دا دی چې اروپا خو په هر صورت پر اسلامي نړۍ د تسلط هڅې جاري ساتي، خو د دې تسلط په مخکې خنډ د مسلمانانو په ژوند د قرآني تعلیماتو شتون او عملي کېدل دي، او تر څو چې مسلمانان د ژوند په چارو کې د قرآن له تعلیماتو لیري نه کړای شي نو تر هغه به غرب خپل هدف ته ونه رسېږي.
غرب او په سر کې یې امریکا غواړي چې په هر قیمت چې وي باید د نړۍ خلك د غرب سیاسي، فکري، اخلاقي او اقتصادي ارزښتونه او د هغه

برلاسی ومني. او که يې څوك په خپله خوښه نه مني نو بايد په زور ورباندې ومنل شي.

د (جنګ او سولی لپاره په يو ويشتمه پېړۍ کې د پنتاګون نقشه)
(The Pentagon's new map: war and peace in the twenty first century)
نومي د کتاب ليکوال او د امريکا د دفاعي چارو کارپوه (Thomas P.M. Barnett) په خپل کتاب کې ليکي :

(( د امريکا اوسنی نقش يوازې د ډيموکراسۍ او د بشر د حقوقو نشرول ندي، بلکې تر دې مهم د(پانګه وال نړيوالتوب) عملي کول دي چې بايد د نړۍ په بېلابېلو برخو کې يې عملي کړي، که څه هم چې په عملي کولو کې به يې د زور استعمال او د وسلې کارولو ته ضرورت پېښ شي)).

پر اسلامي نړۍ د امريکايي تسلط او دلته د امريکايي ارزښتونو د حاکمولو په اړه د امريکا د ملي امنيت پخوانۍ مشاوره او د (بوش) د وخت د امريکا خارجه وزيره (کنډوليزا رايس) هم وايي چې:

(( مونږ بايد په منځني ختيځ کې د کرکې او وژنې د افکارو (جهادي افکارو) په خلاف د جګړې له ټولو هغو لارو چارو کار واخلو چې د کمونيزم په خلاف مو د سړې جګړې په وخت کې ترې کار واخيست، او پدې فکري جګړه کې زمونږ اساسي هدف امريکايي ارزښتونو لکه آزادۍ، ډيموکراسۍ او آزاد بازار ته رواج ورکول دي).

د غرب په معاصرو فلسفي مفاهيمو کې (آزادي) د چا له تسلط څخه خلاصون ته نه ويل کېږي، بلکې د غربيانو په نزد آزادي (لبېراليزم) له (دين) او (اخلاقي قيدوبند) څخه آزاد اوسېدلو ته ويل کېږي. او ډيموکراسي بياد غرب سياسي او اجتماعي نظام دی، او آزاد بازار يې پر کمزورو هېوادونو د اقتصادي برلاسۍ وسيله ده. نو د (کنډوليزارايس) د خبرو ساده مفهوم دا دی چې:

مونږ بايد اسلامي هېوادونه له دين او ديني اخلاقي ارزښتونو آزاد کړو، شريعت او د اسلام ټولنيز نظام له منځه يوسو، او د مسلمانانو پر اقتصاد اواقتصادي منابعو د آزاد بازار له لارې خپټه واچوو، او د دې کار لپاره بايد هر اړخيزه فکري جګړه وکړو.

تر دې ځايه خو له ريښتنې اسلام سره د غرب د دښمنۍ په اړه قرآني دلائل او د غرب د رهبرانو، فيلسوفانو او مفکرينو دريځونه او ويناوې شوې چې د غرب او د اسلام ترمنځ د جګړې پر حتميت ټينګار کوي، خو غرب د (ريښتني اسلام) په خلاف د جګړې تر څنګ په اسلامي نړۍ کې د يو بل اسلام د رائجولو لپاره هم هر اړخيز کار کوي چې پدې اړه به په لاندې کرښو کې د غرب د رهبرانو د ويناوو او دريځونو يادونه وکړو:

**هغه اسلام چې غرب يې د مسلمانانو لپاره غواړي**:

هغه اسلام چې غرب يې د اسلامي نړۍ او مسلمانانو لپاره غواړي د امريکا د استراتيژيکو څېړنو تر ټولو ستر مرکز (رنډکارپورېشن) يې پدې ډول تعريفوي :

(( امريکا، نوې صنعتی نړۍ او په مجموع کې نړيواله ټولنه يو داسې اسلام غواړي چې د نورې نړۍ له نظامونو سره پر يوه لار روان شي، ډيموکراتيك او مترقي اسلام وي، او پر نړيوالو قوانينو، احکامو او اخلاقو وچلېږي)).

په پورتني ياد شوي تعريف کې لاندې نقطې مشخصې شوې دي :

١ – اسلام بايد د امريکا او بين المللی ټولنې په خوښه وي.

٢ – اسلام بايد يو بېل تشخص او ځانګړی نظام او شريعت ونه لري، بلکې د نورې نړۍ له نظامونو سره دې يو ډول وي.

٣ – اسلام بايد ډيموکراتيك وي، يعنې قوانين او احکام دې يې دخلکو لخوا د اکثريت د تأييد په شکل کې رامنځته شوي وي، نه دا چې د (وحيې) او (سنت) پر بنسټ دې ولاړ وي.

۴ – اسلام دې باید خپل زوړ شکل پرې ایښی وي، او ( نوی مترقي) شکل دې یې غوره کړی وي.
۵ – اسلام باید په خپلو احکامو او اخلاقي فلسفه کې پر نړیوالواحکامو او اخلاقو وچلېږي.
همدارنګه د هغه اسلام په اړه چې غرب یې د مسلمانانو لپاره غواړي د پینتاګان په یوه راپور کې چې (عقلونه، زړونه او ډالر) په نامه لیکل شوی وو او په ۲۰۰۶م کال د U.S newse امریکایې مجلې خپور کړ د امریکا د دفاع وزارت داسې لیکلي دي :
( دامریکا د ملي امنیت مصالح یوازې په هغه څه پورې اړوند نه دي چې په اسلامي نړۍ کې پېښېږي، بلکې په خپله د اسلام په دین پورې اړه لري، او د دې معنی دا ده چې تر دې وروسته به زمونږ هڅې خپله د اسلام دین ته د جګړې د یوه ډګر په حیث متوجه وي، او دا توجه به پدې مقصد وې چې اسلام به پر نویو بنسټونو درولی کېږي، پدې معنی چې اسلام باید په غربي معیارونو برابر شي، او پر هغو افکارو ترکیز وکړي چې د اسلام او غرب ترمنځ مشترك دي، اسلام باید داسې پیغام ولري چې د (جهاد او قتال)، (ولاء او براء) افکار او نظریات او د اسرائیلو په خلاف دکرکې او نفرت روحیه ورکې نه وي )).
د اسلام د بدلولو په اړه د رنډکارپوریشن د اداري مجلس مشر او د امریکا پخوانی د دفاع متعصب وزیر (ډونالډ رامسفیلډ) هم داسې وایي :
(( مونږ غواړو چې د منځني ختیځ د هېوادونو اسلام باید داسې شي لکه د شرقي اروپا دخلکو اسلام )).
له شرقي اروپا څخه د (ډونالډرامسفیلډ) مقصد (بوسنیا)، (البانیا)، (کوسووا) او (مقدونیا) دي، هلته چې مسلمانانو ته یې یوازې د اسلام نوم ورپاتې دی، خو نور ژوند یې په مکمل ډول اروپایې او (سیکولر) یا (الحادي) شکل غوره کړی دی.

همدارنګه د غرب یوه بله مشهوره څېره او په نړۍ کې د جهادي فعالیتونو د څارنې د ادارې (Jihad watch) مشر (روبرټ سپنسر) د اسلام د بدلولو په اړه وایي:

(نوی اسلام باید پدې معنی وي چې نور دې د قرآن ټکي په ټکي منل پرېښودل شي).

یعنې هغه خلك چې د اسلام د نوي تعبیر لپاره کار کوي هغوئ باید داسې یو اسلام ایجاد کړي چې خلك ورکې د ټول قرآن په منلو مکلف نه وي.

معاصر امریکایې مفکر او فیلسوف (فرانسیس فوکویاما) او (د تاریخ پای) د کتاب لیکوال هم وایي چې :

(( زه نور څخه داسې سبب نه وینم چې خلك دې اسلام ته له یوه نوي شکل ورکولو څخه منع کړي )).

دا یوازې د امریکا رهبران او مفکرین ندي چې د اسلام بدلول غواړي، بلکې د اروپا مشهور شخصیت د فرانسې پخوانی خارجه وزیر او بیا صداعظم (نیکولای سرکوزي) هم وایي :

((هغه اسلام چې فرانسه یې غواړي هغه فرانسوي اسلام دی، نه په فرانسه کې اسلام )).

یو بل فرانسوی مفکر (جیل کپیل) چې په ۲۰۰۴ م کال کې یې ( د اسلام په زړه کې د جګړې فتنه) په نامه کتاب ولیکه، هغه هم په خپل کتاب کې د نوي غربي ډوله اسلام او په هغه کې د یو نوي نسل د روزلو په هکله په خپل کتاب کې لیکلي :

(( په اسلامي نړۍ کې یوه اسلامي فتنه (بنسټپالنه) پیدا شوې ده، دغې (فتنې) اروپا ته هم سرایت کړی دی، او لدې فتنې څخه د خلاصون یواځینۍ لار دا ده چې د مسلمانانو یو نوی نسل دې د غربي ډوله فرهنګ په غېږه کې و روزل شي.))

د امریکا مشهور یهودی مفکر (توماس فریدمان) غرب ته توصیه کوي او د اسلام د تبدیلولو په هکله داسې ورته وایې :

(( که غرب غواړي چې له اسلام سره د لښکرو په جګړه کې ښکیل نشي نو د اسلام په خلاف دې په اسلام کې دننه د افکارو جګړه پیل کړي)).

**بې شریعته اسلام**:

د برتانیې پخواني خارجه وزیر په ۵ / ۱۰ / ۲۰۰۵ م تایخ د Heritage) (Foundation داستراتیژیکو څېړنو مرکز ته د تروریزم (جهاد) په هکله یوه وینا وکړه، هغه په خپله وینا کې وویل :

(( په حقیقت کې دا افکار او نظریه ده چې تروریستان یې په خوځښت راوستلي دي. هغه آزادي غوښتونکي حرکتونه چې له دویمې نړیوالې جګړې وروسته په اسلامي نړۍ کې رامنځته شول او د استقلال، مساوات، دوینا د آزادۍ او دیته ورته شعارونه یې درلودل هغه تر ډېره حده د زغملو او ملنو وړ وو، او له ډېرو سره یې جوړه هم وشوه. خو هغه چې په هېڅ صورت ورسره مذاکرات نشي کېدای او د منل کېدو ندي هغه دا دي چې :

اسلامي خلافت دې بېرته اعاده شي.

په اسلامي هېوادونو کې دې شریعت تطبیق شي.

په اسلامي هېوادونو کې د د نارینه وو او ښځو ترمنځ د مساوات نشتوالی ومنل شي.

او په اسلامي نړۍ کې دې د نظر د اظهارولو آزادي سلب شي.

ځکه چې دا هر څه زمونږ د تمدن بنسټونه دي، او د دې اصولو پر سر په هېڅ صورت له چا سره جوړ جاړی نشو کولای )).

د فرانسې اوسنی جمهور رئیس (فرانسوا هولاند) هم په کلکه ددې مخالف دی چې د نړۍ په کوم ځای کې دې شریعت تطبیق شي.

هغه د (مالي) په هېواد کې د (انصارالدین) د مجاهدینو د تنظیم په خلاف چې په هغه هېواد کې د شریعت د تطبیق لپاره راپورته شوي وو د فرانسې د یرغل په ورځ وویل:

( نړیواله ټولنه په هېڅ صورت او په هېڅ ځای کې د شریعت تطبیق نشي زغملی، او دا هغه موضوع ده چې په قطعي ډول نه وربانديې له چا سره د خبرې امکان شته، او نه له چا سره وربانديې جوړ جاړی کېدی شي.

**فکري جګړه او د اسلامي مفاهیمو تحریف**:

د غرب سیاسي او فکري رهبرانو دا خبره درك کړې ده چې تر څو مسلمانان پر خپلې اسلامي عقیدې او خپلو اصلي اسلامي مفاهیمو ټینګ ولاړ وي نو تر هغه پورې به د یوه قوي او غالب امت په حیث په نړۍ کې خپل وجود ساتي. او دا ځکه چې د مسلمانانو د قوت اصلي سرچینه د دوئ په عقیده او فکر کې ده. له همدې امله د غرب سیاسي، فکري او نظامي رهبران هڅه کوي تر څو د مسلمانانو نوی نسل د اسلام پر عقیدې او مفاهیمو بې باوره کړي، او په سیستماتیك ډول یې په ذهنونو او زړونو کې غربي مفاهیم ورځای کړي، تر څو د وخت په تېرېدلو پخپله له اسلامه فاصله ونیسي، او د غرب لاره د ځان لپاره د خیر او سعادت لار او غربي معیارونه د ځان لپاره د کمال او پرمختګ معیارونه وګڼي.

امریکایي صهیونست مفکر ( توماس فریدمان) پدې هکله وایي: ( که غرب غواړي چې له اسلام سره د لښکرو په جګړه کې ښکیل نشي نو د اسلام په خلاف دې په اسلام کې دننه د افکارو جګړې ته ور داخل شي). ( اسرائیلی ورځپاڼه یدعوت احرونوت ۲۰۰۳ / ۸ / ۲۰۰۳م ).

یو بل امریکایی پوځي او سیاسي مفکر د نږدې ختیځ لپاره د واشنګټن د استراتیژیکو څېړنو پخوانی مدیر او د (تروریزم په خلاف فکري جګړه) د کتاب لیکوال (رابرټ سوتلوف ) په خپل کتاب کې امریکاته توصیه کوي او ورته وایي:(امریکا باید په منځني ختیځ او اسلامی نړۍ کې د ځوانانو د عقلونو په راخپلولو او هغوئ ته د امریکا په اړه د یو ښه تصور په ورکولو ترکیز وکړي، او دې هدف ته د رسېدلو لپاره باید له ناپوځي وسائلو لکه مطبوعاتو، راډیوګانو، تلویزونونو، موسیقۍ، تعلیمي مؤسسو، لوبو او امریکا ته د ځوانانو له راغوښتلو څخه کار واخلي، او

هڅه دې وکړي چې د اسلامي نړۍ د ځوانانو له زړونو او ذهنونو جهادي روحیه وباسي ).
همدارنګه د برتانیې پخوانی صداعظم (توني بلیر) هم پدې نظر دی چې باید د مسلمانانو په خلاف دې فکري جګړه وشي، هغه وایي : ( که غواړې چې جګړه د دښمن خاورې ته نقل شي ، نو اول دهغوئ (مسمانانو) افکارو او دعوت ته ماتې ورکړئ).
دامریکا پخوانی د دفاع د وزیر مرستیال (وولف ویتز) هم د بوش د جګړې له اعلان څخه وروسته وویل : ( زمونږ جګړه د فکرونو او عقلونو جګړه ده او ددې لپاره چې تروریزم ( جهاد ) ته ماتې ورکړو نو باید په فکري جګړه کې کامیاب شو).
د(وولف ویتز) دغه وینا د (بوش) پر هغې وینا تاکید وه چې د سپتمبر د یوولسمې د پېښې له پېښیدو یې وروسته وکړه او ویې ویل : ( موږ په بېلابېلو پوځي ، اقتصادي، سیاسي او فکري ډګرونو کې په جګړه مصروف یو).
دبوش د ادارې د دفاع وزیر او پر افغانستان دامریکایې یرغل سمبالوونکی (ډونالډ رامسفیلډ) هم په ۳۰۰۳ م کال کې په خپله یوه وینا کې وویل : ( مونږ به فکري جګړه هم کوو لکه څنګه چې پوځي جګړه کوو، او موږ پدې ټینګ ایمان لرو چې زموږ افکار او نظریات بې مثاله دي).
نوموړي زیاته کړه :( زموږ د فکري جګړې هدف د خلکو فکرونه بدلول دي، او پدې لاره کې زموږ کامیابي حتمي ده. موږ باید یوازې پر پوځي جګړې اکتفاء ونه کړو).
د مسلمانانو په خلاف پر فکري جګړې د امریکایانو او برتانویانو تر څنګ د ایټالیې مشران هم ټینګار کوی، پدې اړه د ایټالیې پخوانی صدراعظم (برلس کوني) وایي:(معاصر غربي تمدن تر اسلامي تمدنه ډېر غوره او ډېراوچت دی، او لکه څنګه چې زموږ تمدن (کمونیزم) ته ماتې ورکړه، همدارنګه به اسلامي تمدن ته هم ماتې ورکړي).

د افغانستان په خلاف د بوش د صليبي جګړې تر اعلانولو وروسته په اروپا کې د ناټو د پوځي تړون عمومي مشر امريکايي جنرال (کلارك) د مسلمانانو په خلاف د فکري جګړې هدف ښه په رسا ټکو کې بيان کړ، او په ډاګه يې کړه چې د دې جګړې هدف د سپتمبر د پيښې انتقام اخيستل ندي، بلکې په خپله د اسلام تحريف او د امريکا په خوښه اسلام ته د يو نوي شکل ورکول دي، هغه وايي:
(که څوك پدې باور وي چې موږ به له خپلو کورنو د دې لپاره راوتلي يو چې د سپتمبر د يوولسمې د پيښې انتقام واخلو نو هغوئ دې خپل دغه غلط تصور سم کړي، ځکه چې قضيه داسې نده. هغه اساسي قضيه چې موږ د هغې د حل لپاره راوتلي يو هغه په خپله (اسلام) او د هغه تفسير او تعبير دی. موږ د دې لپاره راوتلي يو چې دا خبره په يومخيز ډول فيصله کړو چې آيا رښتيا هم اسلام د سولې دين دی لکه څنګه چې خلك ګومان کوي!؟ او که هغه يو داسې دين دی چې خپل پيروان د جهاد په شکل کې تاو تريخوالي ته تشويقوي. وګورئ ! دا يوه ډېره مهمه قضيه ده چې تر يو مليارد ډېر مسلمانان پدې نړۍ کې اوسېږي او دوئ ټول له خپل دين څخه الهام اخلی. دغه مسلمانان کولی شي چې نړۍ د امن ځای وګرځوي، او هم دا کولی شي چې د نړۍ امن او استقرار لړازندکړي. نو ځکه موږ دا نه غواړو چې اسلام دې خپله ازادي ولري، او مسلمانان دې د دې صلاحيت ولري چې کوم شی (اسلام) دی؟ او کوم شی (اسلام) نه دی؟ نور به موږ د دې فيصله کوو چې کوم شي ته دې اسلام وويل شی).
د جنرال (کلارك) پورتنۍ څرګندونې د ده شخصي نظر ندي، بلکې هغه د اسلام په خلاف د ناټو د هېوادونو او حکومتونو د تفکر حقيقت دي چې د يوه پوځي جنرال په ژبه څرګند ېږي.
غرب غواړي اسلام د (وحيې) او (سنت) له چوکاټه وباسي او د بشري عقل او غوښتنو پر بنسټ يې ودروي.

غرب هم پخپله او هم په اسلامي نړۍ کې د خپلو (سیکولرو) او (ډیموکراټو) ملګرو په توسط هڅه کوي چې د اسلام (قداست) او د هغه د( نه بدلېدلو) اصل له منځه یوسي، او د نورو بشري فلسفو او نظریاتو په څېر داسې یو شی ورڅخه جوړ کړي چې هر څوك یې په هغه ډول تعبیر او تفسیر کړي چې زړه یې غواړي، او هېڅوك باید دا حق ونه لري چې د بل چا تعبیر او تفسیر ته غلط ووایې.

غرب په عملي ډول په اسلامي نړۍ کې پراخې هڅې پیل کړي چې د دغه ډول (پیوندي اسلام) په رامنځته کولو کې چې د (روا) او (ناروا) او د(ښه) او (بد) فیصله ورکې د غربې نړۍ په واك کې وي، او په اسلامي نړۍ کې د داسې یو نسل روزنه او پالنه وکړي چې تش په نامه مسلمان وي، خو نور د ژوند په ټولو سیاسي، اجتماعي، اقتصادي، فکري، فرهنګي او نورو ډګرونو کې د غرب پر لاره روان وي. دغه نسل به داسې خلك وي چې نه به په عملي ډول اسلام مني، او نه به ورڅخه په صراحت سره خپل (ارتداد) ښکاره کوي، د اسلام هر څه ته به د شك په نظر ګوري، خو د غرب په نظریاتو او قوانینو به یې اطمینان حاصلېږي، او هماغه به ورته د پرمختګ لاره ښکاري.

**د اسلام د تحریفولو او د هغه په خلاف د فکري جګړې لپاره د غرب وسائل** :

غرب او په سر کې یې امریکا د اسلام د تحریف او د هغه په خلاف د فکرې جګړې لپاره بېلابېل وسائل کاروي چې ځینې مهم یې په لاندې ډول دي:

١ – میډیا او مطبوعات

٢ – تعلیم او تربیه

٣ – مالي او پوځي مرستې

۴ – قوانین او سیاسې فشارونه

۵-منځلاري او منځلاریتوب

**۱ـ میډیا او مطبوعات:**

د اسلام د تحریف او د مسلمانانو د بې لارې کولو لپاره د غرب په لاس کې میډیا او مطبوعات تر ټولو خطرناکه وسیله ده، ځکه چې غرب کولی شي د دې وسیلې له لارې د مسلمانانو هر فرد ته پداسې شکل خپل پیغام ور ورسوي چې مسلمان به ورباندې پوه هم نشي چې د بل چا پیغام اخلي او د هغه مطابق خپل ژوند عیاروي.

د دې لپاره چې غرب خپله فکري جګړه په مؤثر او پراخ ډول د مسلمانو ولسونو په خلاف پرمخ بوځي هڅه کوي د خپل قوي اقتصاد په مټ په اسلامي هېوادونو کې په لسګونو زره د میډیا کارکوونکي، ژورنالستان، لیکوالان، ادیبان، مؤلفین، مفکرین، د پوهنتونو استادان، ایمان خرڅوونکي ملایان او پیران، ممثلین او سینماګران، د کتابونو ناشران او نور هغه عناصر په ډالرو خریداري کړي چې په ډېرې سپین سترګۍ او مکر د دښمن پیغام په آسانه خپل ولس ته رسولی شي.

کله چې امریکا پر افغانستان او عراق تېری وکړ همدغه چاره یې ترسره کړه، او د خپلو ډالرو په زور یې په زرګونو د قلم، فکر او وینا خاوندان د مجاهدینو په خلاف د خپلو یرغلګرو قواوو ترڅنګ ودرول.

کله چې امریکا افغانستان اشغال کړ نو د (سپینې ماڼۍ) د ارتباطاتو مدیر (ټاکر اسکیو) د جګړې د فکري اړخ د پرمخ بیولو او د اسلام د مفاهیمو د تحریف لپاره یو مفصل پلان جوړ کړ او د (بوش) ادارې ته یې وړاندې کړ.

(ټاکر اسکیو) د خپل پلان لنډیز سپینې ماڼۍ ته پدې الفاظو کې وړاندې کړی وو: (موږ پیسې لرو، تجربه لرو، افکار او نظریات هم لرو، ځکه خو د امریکا په مقابل کې هڅوك د فکري جګړې په ډګر کې نشي دریدلی).

د (ټاکر اسکیو) د پلان د عملي کولو لپاره امریکا په افغانستان او سیمه کې د فکري بدلون لپاره پراخ پلان تطبیق کړ، او هغه پدې ډول چې د عربي نړۍ لپاره یې د (امریکا غږ د راډیو تلویزون) تر څنګ د (الحرّة)

تلویزون، د (سوا) او (العراق الحُرّ) راډیوګانې جوړې کړې. او د افغانستان او پښتنو لپاره یې هم د (امریکا غږ) تر څنګ د (آشنا تلویزون) د(آزادۍ)، (ډیوه) او (مشال) راډیوګانې هم جوړې کړې.
د یادو شویو لویو او قوي راډیوګانو تر څنګ د امریکا د نړیوالې پراختیاد مؤسسې(USAID) لخوا په افغانستان او سیمه کې ۱۷۰ د (F.M) راډیوګانې هم جوړې شوي. د همدغو راډیوګانو د چلولو لپاره امریکا په زرګونو (لوستي) او یا (نیم لوستي) ځوانان استخدام کړل، او هم یې دغو راډیوګانو ته له ډېرو پخوانیو (کمونستانو)، له غربه له راغلیو (سیکولرانو) او منحرفو (جهادیانو)، (ډیموکراټو اخوانیانو) او د (ماډرن اسلام) له منونکو (فرهنګیانو) څخه (کارپوهان)، (مبصرین) او (فیلسوفان) هم جوړ کړل، چې دغو ټولو بیاحالات د دښمن په ګټه تشریح کړل او د هغه جنایات یې توجیه کړل.
امریکا دغه خلك ښه استعمال کړل، او د دوئ په ژبه یې خلکو ته د هغه اسلام ډنډوره وغږوله چې غرب یې د مسلمانانو لپاره غواړي، او همدغه تجربه یې د اسلامي نړۍ په ټولو هېوادونو کې عملي کړه چې خطرناك او تباه کوونکي نتائج یې ولرل.
خو کله چې تر ځوارلس کلنې ناکامې جګړې وروسته امریکایان په دې پوه شول چې په افغانستان کې نور د دوئ پلانونه نه کامیابېږي او ډالر یې هسې بېځایه مصرفېږي نو د جنګي لګښتونو د کمولو تر څنګ یې پر هغو رسنیو او نشراتي مؤسساتو هم خپل لګښتونه ودرول او یا یې کم کړل چې د پوځي اشغال په وخت کې یې د (آزادو رسنیو) په نامه را منځته کړې وې. په دې هکله په 2015/08/24 تاریخ دافغانستان مشهورې انټرنټي وېبپاڼې(نن ټکی آسیا) په دې عنوان چې (**د امریکا په مرستو ولاړې رسنۍ له ګواښ سره مخ دي**) **د** واشنګټن پوسټ د ورځپاڼې د یوه ځانګړي راپور لنډیز خپور کړ چې ورکې راغلي وو:

(( واشنګټن پوسټ ورځپاڼې په يوه مفصل راپور کې له افغانستانه د امريکايي ځواکونو له وتلو سره د هغو رسنيو برخليك څېړلی چې د امريکا په مالي ملاتړ رامنځ ته شوې دي. د ورځپاڼې په باور دغه امريکايي رسنۍ د امريکايانو له وتلو سره له حياتي ګواښ سره مخ دي. ورځپاڼه وايي، دغه رسنۍ په يوه «دښمن چاپېريال» کې اوسېږي.

راپور په کابل کې د «نی» خبري ادارې له انګړ څخه پيلېږي. خبريال د «نی» ادارې هغه امنيتي تدابير بيانوي، چې دغې ادارې له هغې وروسته ونيول، چې د طالبانو له خوا په دې تورنه شوه چې د »امريکايانو د فرهنګي يرغل مرکز» دی. د نی ادارې مالي لګښت امريکايان ورکوي. کله چې طالبانو پر نی ادارې تور پورې کړ چې ګواکې د امريکايانو کلتوري ګټې پالي، دغې ادارې خپلو کارکوونکو ته ځو ورځې رخصت ورکړ. د ادارې مشر داسې انګېرله چې د طالبانو له خوا به د بريد هدف وګرځي. د نی اداره چې پخوا د دارالامان پر عمومي سړك کې وه، له ګواښ وروسته يې ځای هم بدل کړ.

واشنګټن پوسټ ليکي: د طالبانو حکومت له ړنګېدو وروسته امريکايانو ۷، ۱۱۰ ميليونه ډالر ولګول، چې په افغانستان کې »ازادې رسنۍ» رامپياوړې کړي. ورځپاڼه وايي: «د طالبانو د حکومت له نسکورېدو سره په دغه جګړه ځپلي هېواد کې 'ازادو رسنيو' په ډېرې چټکۍ سره وده وکړه .«خو ورځپاڼه دا هم وايي، چې د دغو «ازادو» رسنيو بوديجه او تخنيکي سلاکاران د امريکايانو له خوا ګومارل کېدل. د ورځپاڼې په باور پر افغانستان د امريکا د يرغل له مهمو اهدافو څخه د بيان ازادي وه.

واشنګټن پوسټ په افغانستان کې د امريکا په مالي مرستو ولاړې رسنۍ «خپلواکې» بولي. ورځپاڼه وايي، د طالبانو د حکومت پر مهال خپلواکې رسنۍ فعاله نه وې.

واشنګټن پوسټ وړاندې ليکي: «د امريکا په مالي مرسته د سروې له مخې، نن د سلو شاوخوا ټلويزيونونه او د ۲۵۰ شاوخوا راډيوګانې فعاله

دي. له ۲۰۰ زیاتې ورځپاڼې او مجله خپرېږي». د ورځپاڼې په خبره په افغانستان کې دمګړۍ ۳۴ خبري اژانسونه او ۱۷ د ژورنالیستانو د روزنې مرکزونه کار کوي. یو له دغو مرکزونو څخه هم نی دی. د واشنګټن پوسټ له نظره، نی د «ازادو رسنیو» د پیاوړتیا لپاره هڅې کوي او خپله بودیجه د امریکا د پراختیایي ادارې له خوا ترلاسه کوي.
د راپور لیکوال له نظره اوس دغه رسنۍ، چې خپلواکې ګڼل کېږي، له دې جدي پوښتنې سره مخ دي چې د امریکایانو له وتلو وروسته، چې تمه ده د ۲۰۱۶ تر پایه به ټول امریکایي ځواکونه له افغانستانه وځي، د دغو رسنیو برخلیك څه کېږي. دغه «خپلواکې» رسنۍ خپلې بودیجې له امریکانو ترلاسه کوي، اوس چې امریکایان وځي، دوی د بودیجې له نشت سره مخ کېږي.
ورځپاڼه د یوه ژورنالیست له خولې لیکي، چې دغه رسنۍ به یا له منځه ځي او یا به محلي ځواکونو او یا هم طالبانو ته تبلیغاتي وسیلې ګرځي. د ورځپاڼې په باور، طلوع چې ویل کېږي ډېر کتونکي لري، امریکایانو په لومړي ځل د ۲،۸ میلیونه ډالرو په لګښت پیل کړه. دغه ټلویزیون د حامد کرزي د حکومت پر مهال، کله چې افغان حکومت له امریکایانو سره د امنیتي تړون لاسلیك رد کړ، د افغان حکومت پر ضد پراخه تبلیغات پیل کړل.
ورځپاڼه د پژواك خبري اژانس په اړه لیکي، چې له امریکایانو څخه خپله بودیجه ترلاسه کوي: «امریکایانو ۲،۵ میلیونه ډالرو ولګول چې د پژواك خبري اژانس پیل کړي. دغه اژانس ۱۲۰ کارمندان لري». د ورځپاڼې په باور، پژواك هم په افغانستان کې مخکښ «خپلواك» اژانس دی، چې اوس هم هره میاشت د امریکا د حکومت له خوا ۱۰،۰۰۰ ډالر ترلاسه کوي.
د ورځپاڼې په خبره، پژواك اژانس اوس کولای شي چې تر یوه بریده خپل لګښت پیدا کړي. د دې ادارې مشر، دانش کړوخېل واشنګټن پوسټ ته ویلي چې سږ کال هڅه کوي پر ځان بسیا شي.

د «سلام وطندار» راډيو مسوول، نجيب الله اميري هم د بوديجې د کمښت له امله خپله اندېښنه څرګندوي، د امريکا ګڼې پروژې سږ کال او يا هم د ۲۰۱۶ تر لومړيو پای ته رسېږي. ډېری راډيوګانې وار له مخه خپل کارمندان له لاسه ورکړي. اميري وايي: «زموږ له اتيا سلنه زياتې راډيوګانې په ښه مالي وضعيت کې نه دي.»

په دې اړه په کابل کې د امريکايانو له لوري د «افغانستان د ازادو رسنيو د څار» د ادارې يا «نی» اجرايي رييس عبدالمجيب خلوتګر هم په 2015/09/04 تايخ رسنينو ته وويل چې:« بهرنيان بايد پر هغو ژمنو ودرېږي چې د لندن په ناسته کې يې د افغانستان له رسنيو سره کړې وې.

د «نی» مشروويل: «لکه څنګه چې 'نړيوالې ټولنې' په هېواد کې د رسنيو په رامنځ ته کولو کې مهم رول درلود، اوس بايد د 'رسنيز کړکېچ' مخنيوی هم وکړي.«

خلوتګر وايي، په تېره يوه نيمه لسيزه کې په افغانستان کې رسنيو بې سارې وده تجربه کړه، مګر اوس له مالي او اقتصادي ستونزو سره لاس او ګرېوان شوي دي. دی زياتوي، ۷۵ غږېزو، انځوريزو او ليکنيزو رسنيو د اقتصادي ستونزو له امله يا خپرونې ودرولي دي او يا هم ورسره مخ دي.

د «نی» اداره هم چې د بهرنيانو له مرستو خپل لګښتونه پوره کوي وايي، د بهرنيو ځواکونو وتل بايد د افغانستان په اړه د «نړيوالې ټولنې» د نه پاملرنې په معنا نه وي».

**۲ـ تعليم او تربيه** :

د تعليم عمليه او تعليمي نصاب د نسلونو د جوړولو قالب دی، او قالب چې هر شکل ولري په هغه کې اچول شوی شی به هم په هماغه شکل راوځي. دا نامعقوله ده چې قالب دې مستطيل شکل ولري، خو څوك دې له هغه څخه د دايروي شي د جوړېدلو تمه وکړي. که تعليمي نظام او نصاب د غرب په خوښه جوړ شوی وي نو په طبيعي ډول به د هغه نصاب

لوستونکي د غرب پر لاره ځي. او که نصاب د اسلام مطابق جوړ شوی وي، نو لوستونکي به يې هم د اسلام پر لاره ځي.

کله چې په ۱۸۸۲م کې مصر د انګریزانو په لاس سقوط وکړ، نو د انګلستان د هغه وخت حکومت د مصر له انګریز حاکم (لارډ کرومر) څخه وغوښتل چې په مصر کې د انګریزي تسلط د ټينګولو لپاره يې چې هر څه ته ضرورت وي د برتانيې له مرکزي حکومت څخه دې يې وغواړي.

خو د دې پر ځای چې (لارډ کرومر) د برتانيې له حکومت څخه پوځي وسائل او پوځونه وغواړي هغه ورڅخه د(تعليم ماهرين) وغوښتل. د برتانيې حکومت د (لارډ کرومر) د غوښتنې په ځواب کې هغه ته (ډوګلاس ډنلوپ) چې د لاهوت (مسيحي دينياتو) دشاهي د فاکولتې فارغ التحصيل مسيحي عالم وو ورولېږه.

(ډوګلاس ډنلوپ) د مصر لپاره داسې يو د تعليم نظام او نصاب جوړ کړ چې هم يې د (الأزهر) د تعليمي او معنوي تأثير مخه ورباندې ونيوله، او هم يې د وخت په تېرېدلو په مصر کې د داسې يو نسل روزنه او پالنه وکړه چې د مصر راتلونکی يې له اسلامه بيګانه او د انګریز په رنګ کې رنګ کړ. او کله چې د مصر تعليمي نصاب سيکولر (بې دينه) شو نو په هغه پسې تقريباً د ټولې عربۍ نړۍ تعليمي نصابونه (سيکولر) شول، او حکومتونه يې هم د غرب پر لاره روان شول چې تر ننه لا هم روان دي.

د دې لپاره چې غرب د ټولې اسلامي نړۍ د هېوادونو په تعليمي نصابونو کې د اسلام تاثير له منځه وړی وي، او يا يې لږ ترلږه کم کړی وي نو د ملګرو ملتو نړيواله مؤسسه يې وکاروله، او په ۱۹۷۷م کال کې د يونسکو ( دملګرو ملتو د تعليم او فرهنګ د څانګې) په چوکاټ کې يې يوه تعليمي اداره جوړه کړه چې نوم يې (اسلام او غرب) وو. د دې ادارې مشري په ملګرو ملتو کې د برتانيې پخواني سفير(لارډ کارادون) کوله. دې ادارې ۳۵ غړي لرل چې ۱۰ يې د اسلامي ممالکو د (سيکولرو)

حکومتونو استازي ول او پاتې **۲۵** یې د اسرائیلو او غربي هېوادونو غړي ول.

د (اسلام او غرب) دغې ادارې پدې موضوع کار کاوه چې څنګه په تعلیمي نصابونو کې د ادیانو ترمنځ په مشترکو نقطو ترکیز وکړي، او په نصابونو کې د داسې مضامینو او مفاهیمو مخنیوی وکړي چې (دین) ورکې د (سلوك) لپاره معیار تاکل کېږي.

دې ادارې د ټولو اسلامي هېوادونو نصابونه پداسې ډول جوړ کړل چې د اسلام تاثیر ورڅخه له منځه یوسي او یا یې تر ممکنه حده کم کړي. او د اسلام په عوض ورکې نور نظریات لکه (قومیت) (وطنیت)،(ژبپالنه) او داسې نور په تعلیمي نصابونو کې د ملي ایډیالوژیو په حیث ورشامل کړي.

د دې ادارې د فعالیتونو یو مثال په مصر کې دا وو چې د نصاب تر تبدیلۍ دمخه د مصر د نصاب د تاریخ په مضمون کې د (فرعوني تاریخ) برخه یوازې **۷۵** صفحې وه، خو تر تبدیلۍ وروسته **۳۱۷** صفحوته پورته شوه.

او همدارنګه تر تبدیلۍ دمخه په نصاب کې د اسلامي تاریخ برخه **۲۰۷** صفحې وه ، خو تر تبدیلۍ وروسته دغه برخه **۳۵** صفحو ته راکښته شوه.

همدغه فارموله تقریباً په ټولو اسلامي هېوادنو کې تطبیق شوه، ځکه چې د نه تطبیقولو په صورت کې هېوادونه د(یونیسکو) له سازمان څخه وېستل کېدل، او شهادتنامو یې په غربي نړۍ کې خپل (قبولیت) له لاسه ورکاوه.

پورتنیو حقیقتونو ته په پام سره ویلی شو چې رسمي تعلیمي نظام په اسلامي نړۍ کې د غرب تر ټولو خطرناکه وسیله ده.او تر څو چې دغه وسیله د غرب په خوښه چلېږي نتائج به یې هم هغه ډول راوځي چې غرب یې غواړي.

په اسلامي نړۍ کې د غرب لپاره د غربي ډوله تعليمي نصاب او نظام د افاديت په اړه د امريکا يو مهم پاليسي جوړوونکی شخصيت دواشنګټن د نړدې ختيځ لپاره دستراتيژيکو مطالعاتو دانسټيټيوټ پخواني مدير (رابرټ سوتلوف) چې د امريکا حکومت ته د اسلامي هېوادونو په اړه پاليسۍ جوړوي او د امريکا د نويو محافظه کارانو (مسيحی افراطيانو) له ډلې څخه دی په اسلامي نړۍ کې د تعليم په اړه وايي :

په عربي او اسلامي نړۍ کې امريکايي تعليمي اداري يوازې د لوړې سويې تعليمي ادرې ندي، بلکې هغه د عربي او اسلامي ټولنو د امريکايي کولو لپاره د امريکا د استراتيژيکې جګړې سرّي (پټ) لښکر دی).

د (رابرټ سوتلوف) دغه امريکايي پټ لښکر رښتيا هم ټوله اسلامي نړۍ له جګړې پرته د امريکا لپاره فتح کړه، ځکه چې دغه تعليمي نظام د مسلمانانو له نويو نسلونو څخه حقيقي اسلام پټ کړ، او د هغه پر ځای يې داسې يو څه د اسلام په نامه ورته معرفي کړل چې هغه يا اصلاً اسلام ندی، او يا يو تحريف شوی، مسخ شوی او د غرب په خوښه برابر شوی اسلام دی.

غرب د مسلمانانو د تعليمي نصابونو په بدلولو کې د روسانو په څېر له بيړې کار نه اخلي، بلکې د هغه انګريزي متل مطابق چې وايې : (کار په کراره کوه خو پداسې شکل چې تاثير يې يقيني وي) په کراره او تدريج سره د مسلمانانو د تعليم او تربيې نصابونه بدلوي.

غربي استعمارګرو هېوادونو د (يونسيکو) او نورو مؤسساتو په توسط د اسلامي هېوادونو په نصابونو او تعليمي نظام کې ځو اساسي تغيرونه راوستل چې ځينې يې په لاندې ډول دي:

١ – په مسلمانو هېوادونو کې د غربي ژبو او ادبياتو خپرول او بيا همدغه ژبې د تعليم او سياست ژبې ګرځول. غرب لدې لارې خپل ټول سياسي، اجتماعي، اخلاقي او فلسفيانه مفاهيم او نظريات د مسلمانانو د نوي

نسل مخې ته کېښودل، او نوی نسل يې ورباندی له اسلام، اسلامي تاريخ، اسلامي تمدن او اسلامي ټولنيزو ارزښتونو مصروف کړ، چې په نتيجه کي غربي فرهنګ او معلومات ورته اصل وګرځېدل، او اسلامي معلومات ورته داسې يو څه وګرځېدل چې د دوئ په اند په عملي ژوند او پرمختګ پوري اړه نه لري.

۲ - په نصابونو کې د ديني او اسلامي ټولنيزو مضامينو اندازه لږ کړای شوه، او د هغو پر ځای رسم، هنر، غربي ډوله مدني او اجتماعي زده کړو او د غرب تاريخ او پرمختګونو ته ځای ورکړ شو.

۳ – د ژبې او ادبياتو کتابونه يې له ديني موادو او مفاهيمو خالي کړل، او ديني مفاهيم يې په بې کيفيته، بې روحه او بې واقعيته شکل يوازې د (دينياتو) په کتابونو کې محدود کړل.

۴ – له نصابونو څخه داسلام فتوحات، پر نړۍ د اسلامي تمدن احسانونه او د اسلام د مشاهيرو په هکله معلومات ليرې شول، او پر ځای يې د اروپا او امريکا تاريخ، د غرب لشکر کشۍ، د غرب مشاهير، فيلسوفان، شاعران، مخترعين ، سياسي مشران او پوځي افسران د مسلمانانو نويو نسلونو ته د (ماډل) په حيث معرفي شول.

د غرب دې ټولو تعليمي هڅو اسلام په يوه نيمګړي، تحريف شوي او بېرته پاتې شکل نوي نسل ته تقديم کړ، چې نتيجه يې له اسلام سره د نوي نسل په (بې رغبتۍ) کې راووتله. او دا طبيعي خبره ده چې که يو څوك د يو څه په اړه بې رغبته وي نو ولې به له هغه څخه د دفاع په لار کې قربانۍ ته حاضرېږي؟

امريکا د افغانستان له اشغالولو وروسته همدغه ټولې کړنې په افغانستان کې هم ترسره کړې، خو د ډېر تأسف ځای دا دې چې امريکا او غرب خپل تعليمي او فکري جنايات دلته د هغو خلکو په توسط تر سره کړل چې يو وخت يې ځانونه مجاهدين، اخوانيان، اسلامي فرهنګيان او د (نړيوال اسلامي حرکت!!!؟) منسوبين ګڼل، خو نن د همدغو جنايت کارو نومونه د

مؤلفینو، مشاورینو او د تعلیمي نصاب د پروژې د مشرانو په حیث د هغو کتابونو پر پشتیو لیکل شوي چې د (نبراسکا) د امریکایي پوهنتون تر څارنې لاندې جوړ شوي، د (USAID) لخوا یې بودیجه برابره شوي، او د (آیساف) له لوري چاپ شوي، او د تعلیم او تربیې په اختیار کې ورکړل شوي دي.

دغه خلك بنایی د خلکو په سترګو کې خاورې واچوي او و وایي چې یو عصري متوازن او له اسلام سره برابر نصاب یې جوړ کړی دی، خو دوئ په حقیقت کې هغه نصاب جوړ کړی چې د صلیبي جګړې اعلانوونکي (جورج بوش) هغه خپل ملت ته په افغانستان کې د خپلې یوې بریا په حیث اعلان کړ او ویې ویل:

"And before the end of the year, we'll have sent almost 10 million of them [that is, new textbooks] to the children of Afghanistan. These textbooks will teach tolerance and respect for human dignity ***instead of indoctrinating students with fanaticism and bigotry***."

– George W. Bush, "Weekly Radio Address," March 16, 2002

(دکال تر ختمېدلو مخکې به موږ د افغانستان ماشومانو ته تقریباً لس ملیونه درسي کتابونه ورلېږلي وي. دغه کتابونه به هغوئ ته (د نورو په مقابل کې) زغم او د توندلاریتوب او تعصب پر ځای د انساني کرامت احترام ورزده کوي).

دا خو لا د هغه نصاب اړه خبره وه چې امریکا په اول ځل د (کرزي) حکومت ته تیار کړی وو او ډېرې تبدیلۍ یې لا ورکې نه وې راوستلې. تر هغه وروسته افغاني نصاب دوه ځله بیا د امریکایي مشاورینو تر څارنې لاندې د اسلامي او جهادي مفاهیمو له مفرداتو او تاثیراتو څخه محروم شو، او پر ځای یې د غربي فرهنګ تاثیرات او مفاهیم ورکې ځای پر ځای شول.

۳-**قوانين او سياسي فشارونه** :

د ريښتني اسلام په خلاف د غرب د فکرې جګړې له وسائلو څخه بله مهمه وسيله د اسلام ضد قوانين دي چې د اساسي، مدني، جزايي او نورو قوانينو په شکل کې د مستبدو او (سيکولرو) حکومتونو له لوري پر مسلمانانو د زور، زندان او تزوير په وسيله عملي کېږي.

په اوسني وخت کې تقريباً د ټولو اسلامي ممالکو اساسي، مدني، عدلي او قضايي قوانين د غرب د مشاورينو او متخصصينو له لوري داسې جوړ شوي چې بايد د اسلامي شريعت تطبيق ته ورکې هېڅ ځای نه وي. او که چېري کوم حکم او يا کومه ماده يې تصادفاً له شريعت سره موافقت هم ولري، نو هغه هم بايد په بېلابېلو بهانو غير فعاله شي.

د اسلامي نړۍ د ټولو حکومتونو په قوانينو کې د غرب له لوري د(بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميې) منل ضروري ګڼل شوي دي. نه يوازې دا چې د دې کفري اعلاميي منل ورکې ضروري ګڼل شوي، بلکې د هغې د تفسير او تعبير حق هم ورڅخه د دې لپاره اخيستل شوي چې هسې نه چې دغه هېوادونه د بشر د حقوقو اعلاميه او د ملګرو ملتو نړيوال ميثاق او يا د هغو ځينې مادې د اسلام مطابق تفسير او تعبير کړي. همدغه حکم د بشري حقوقو د نړيوالې اعلاميې په **۲۹** مه ماده کې داسې ذکر شوي دی :

(( په هېڅ ډول شرائطو کې روا نه ده چې د بشر له حقوقو سره دې پداسې ډول چلند وشي چې د ملل متحد له اصولو او اهدافو سره تضاد ولري )).

غربي هېوادونو او امريکا د اسلامي نړۍ له حکومتونو سره د تعامل داسې معيارونه ټاکلي او حکومتونه يې د هغو په رعايتولو ملکف کړي چې د دغو هېوادونو ټول سياسي، اقتصادي، تعليمي ، فرهنګي او پوځې قوانين بايد د غرب له خوښې سره سم وي، او که چېري دغه قوانين هغه ډول نه وي چې غرب يې غواړي نو بيا له ډول ډول سياسي، اقتصاد، تعليمي فرهنګي او پوځي بنديزونو او سزاګانو سره مخ کېږي.

یوه بله خطرناکه حربه چې امریکا یې په اسلامي هېوادونو کې د خپلو فشارونو په سلسله کې کاروي هغه د (مذهبي آزادۍ) په نوم کفري ډلو او ادیانو ته د قانوني فعالیت د زمینې تضمینول دي.

امریکا د دیني پلورالیزم (دیني تعدد ګرایۍ) د اصل په تحمیلولو د اسلامي نړۍ پر حکومتونو فشارونه راوړي ترڅو د هېوادونو دروازې د هر ډول کفري دعوت پر مخ خلاصې پرېږدي، او له حقیقي اسلامه پرته د بل هېڅا پر دعوت او فعالیت دې بندیز نه وي.

امریکا او نورو غربي هېوادونو پدې ډول په اسلامي هېوادونو کې په قانوني ډول د (تنصیر) لپاره لاره برابره کړې ده، او دا کار د امریکا د خارجه پالیسۍ په اولویاتو کې ځای لري.

د (دیني ازادۍ) په نامه د امریکا د خارجه چارود وزارت له لوري ۷ نمبر راپور په ۸ / ۱۱ / ۲۰۰۵ تاریخ د څېړنې لپاره دامریکا کانګرس ته وړاندې شو، او په هغه کې په ډېرو عربي او اسلامي هېوادونو کې د (دیني آزادۍ) له نشتوالي شکایت شوي وو، د دې راپور اساسې ټکي په لاندې ډول ول :

۱ – د امریکا متحده ایالات نور د (دیني آزادۍ) قضیه د دولتونو له داخلي چارو څخه نه ګڼي، بلکې هغې ته نور د نړیوالو چارو په سترګه ګوري). یعني دا چې به نور په اسلامي نړۍ کې داسې عملي کېږي لکه نور بین المللي قوانین چې عملي کېږي.

۲ – د امریکا متحده ایالات به نور د ( دیني آزادۍ) قضیې ته یوازې د یوې نظریې په نظر نه ګوري او د هغې د عملي کولو لپاره په سپارښتنو اکتفا نه کوي، بلکې د هغې د رعایتولو لپاره به نورو دولتونو ته اوامر صادروي، او پدې لاره کې به د مشوقاتو له ورکولو او د فشارونو له واردولو څخه کار اخلي.

۳ – له (دينې آزادۍ) څخه مقصد په مطلق ډول د خلکو آزاد پرېښودل دي، ترڅو هر څوک چې په اسلامي نړۍ کې بل هر دين اختيارول غواړي اختيار يې کړای شي.
د همدغو يادو شويو قوانينو او فشارونو له امله په افغانستان کې د امريکا له لوري جوړې شوې ادراې هېڅکه ونه کولی شول چې له اسلام څخه (مرتد) شويو خلکو ته سزا ورکړي، او يا په افغانستان کې د (نصرانيت)، ( بهائيت) او نور باطلو نظرياتو د خپرېدو مخنيوی وکړي.
ځکه چې د افغانستان اوسنی اساسي قانون د بشر د حقوقو نړيواله اعلاميه رعايتوي، او د همدې اساسي قانون په اوومه ماده کې داسې راغلي:(دولت د ملګرو ملتونو د منشور، د بين الدول معاهدو، د نړيوالو ميثاقونو چې افغانستان له هغو سره تړاو لري او د بشري حقوقو د نړيوالې اعلاميې رعايت کوي).
او د بشري حقوقو د نړيوالې اعلاميې په اته لسمه ماده کې په صراحت سره هر چاته په خپله خوښه د( دين د انتخاب) په هکله داسې راغلي دي:((هر انسان د فکر د آزادۍ او د دين د انتخاب له حق څخه برخمن دی، او همدا حق د دين او د عقيدې تبليغ ، د ډله ييزو ښوونو او رسنيو له لارې د نظر اظهار او همدا ډول د شعائرو سرّي او علني تر سره کولو او له هغو څخه حفاظت ته هم شامل دی)).
همدارنګه همدغه د (ارتداد حق) د بشر د حقوقو د نړيوالې اعلاميي په نولسمه ماده کې هم په صراحت سره داسې ذکر شويدي :((هر انسان د نظر او خپل ليدلوري د آزادۍ له حق څخه برخمن دی. دغه حق ديته هم شامل دي چې څوک دې د بل چا افکار او نظريات د بل چا له مداخلې پرته ومني. او هم کولی شي خپل افکار او نظريات په هرې ممکنې وسيلې له هر جغرافيوي قيد او بند پرته تر لاسه او نشر کړي )).
پورتنيو حقايقو ته په پام سره ويلي شو چې په اسلامي هېوادونو کې د غربي ډوله قوانينو عملي کېدل د اسلام په خلاف د فکري او قضايي

جګړې او د هغه د تحریف تر ټولو خطرناکه وسله ده. او همدغې وسیلې اسلام دخلکو له عملي ژوند څخه لیرې کړی او خلکو ته یې داسې ورمعرفي کړی چې اسلام یوازې یو څه تصورات، عبادتونه او دعاګانې دي او بس، چې نه نظام لري، نه قوانین لري او نه هم د بشریت د چارو د سمبالولو وړتیا لري. او که یو څه قواعد او ضوابط ورکې شته هم نو هغه د ډېرې پخوا زمانې لپاره وو چې اوس د تطبیق وړتیا نه لري.
خو که مسلمانان راپورته کېږي او په عملي ډول دا ثابتوي چې شریعت اوس هم د بشریت د چارو د سمبالولو او هم د تطبیقېدلو وړتیا لري، نو غرب او امریکا یې بیا څواب د زور په استعمال، د بمونو په اورولو، په زندانونوکې د مسلمانو مبارزینو د ورغورځولو او د مسلمانانو د هېوادونو په اشغالولو ورکوي.
بله تر ټولو خطرناکه وسیله چې غرب یې د اسلام د تحریفولو او له غربي ارزښتونو سره د همرنګه کولو لپاره په ټوله نړۍ او په خاص ډول په اسلامي نړۍ کې په کار اچوي هغه د منځلاري اسلام په نامه د یوه نوي دین رامنځته کول دي. دا چې دغه دسیسه ډېره لویه او تأثیرات یې پر معاصرې اسلامي نړۍ ډېر پراخ دي نو مناسبه مو وګڼله چې د دې فتنې په اړه په یو څه زیات تفصیل سره تر را روان ځانګړي عنوان لاندې له لوستونکو سره خبره شریکه کړم.

## د غرب له نظره منځلاری اسلام څه شی او منځلاري مسلمانان څوک دي؟

د اسلام په خلا ف د غرب په اوسنۍ رواني پوځي او عقیدوي جګړې کې د غـرب او د هغـه د ملګـرو فکـري مراکـز او تبليغـاتي او نشـراتي وسـائل د (معتـدل اسـلام)، (معتدلو مسـلمانانو) (بنسـټ پـالي اسـلام) او (بنسـټپالو مسلمانانو) اصطلاحات ډېر ډېر کاروي چې د دغې ډېرې کـارونې لـه امله يـې دغـو اصطلاحاتو د اسـلامي نـړۍ د ځينـي سياسـي او فکـري کړيـو پـه (فکري ادبياتو) کې هم ځای مونـدلی دی، او د غـرب لـه لـوري هڅـه کېـږي چې دغـې نـوې ايجـاد شـوې اصـطلاح (معتـدل اسـلام) تـه د مسـلمانانو پـه ټولنه کې د يوه دين او يوه حقيقت بڼه ورکـړي، او د مسـلمانانو نـوی نسـل او راتلـونکي نسـلونه يـې د يـوې (عقيـدې) پـه حيـث ومنـي، او د هغـې پـر بنسـټ د (حقيقـي اسـلام) او ( ريښـتينيو اسـلامي ارزښـتونو) پـه اړه موقـف ونيسي، او بيا د همدغه نوي جوړ شوي ديـن (معتـدل اسـلام) پـر اسـاس پـه مسلمانو هېوادونو کې حکومتونه، نظامونه، قوانين، د روا او ناروا او ښـه او بد معيارونه او له نړيوالو سره د روابطو کيفيت وټاکي، او هـم د همدغـه نوي دين (معتدل اسلام) په حدودو کې د مسلمانانو ژوند تنظيم کړي.

دا چې د دغـه نـوي ديـن (معتـدل اسـلام) حقيقـت څـه شـی دی؟ د چا لخـوا رامنځتـه کېـږي، ارزښـتونه او معيـارونـه يـې څـوك ورتـه ټـاکي، لـه حقيقـي اسلام سره يې تعامل څه دی؟ کومو اهدافو او مقاصـدو تـه د رسـېدو لپـاره رامنځتـه کېـږي؟ د رامنځتـه کېـدلو لپـاره يـې لـه کومـو ډلـو، جهتونـو، اشخاصو، فکري مکاتبو، څېړنيزو مراکزو او مادي او معنوي وسـائلو کـار اخيستل کېږي؟ او هم دا چې څنګه د دغه ډول يـوه ( نـوي ديـن) د رامنځتـه کولو لپاره د نړۍ په ډېرو هېواد ونو کې پـه يـوه وخـت هـم مهالـه فعاليتونـه روان دي؟ او په افغانستان کې د دغـه ( نوي دين) د رامنځته کولو لپـاره لـه

چا څخه په څه ډول کار اخیستل کېږي؟ او څوك ورکې په ارادي او غیر ارادي ډول استعمالیږی؟ او دغو هڅو دامریکا له لوري د افغانستان داشغال په وخت څومره زور اخیستی؟ او پایلې به یې په افغانستان کې د (اسلام) او (افغان ولس) په راتلونکي څه وي؟ او بالآخره د دغې واردې شوې منفي پدیدې د رامنځته کېدلو مخنیوی به څوك او څنګه کوي؟ دا ټولې هغه پوښتنې دي چې پدې لیکنه کې به یې تر یوه حده د ځوابولو هڅه وکړو.

**منځلارى اسلام او تاريخ:**

د اسلام پېژندنې ټول علماء او مؤرخین چې که هغوئ مسلمانان دي او که نامسلمان مستشرقین (ختیځ پوهان) دي ټول سره پدې اتفاق لري چې اسلام همدا یوازې یو اسلام دی. تر اوسه په تاریخ کې په هېڅ ځای کې چا د (معتدل اسلام) او (بنسټ پالي اسلام) نوم ندی کارولی. په تاریخي لحاظ د(معتدل اسلام) نوم هېڅ سابقه نه لري. البته د اسلام د (فقهي او اجتهادي فهم) له مخې د اسلامي فقهي مذاهبو په نامه نورې تسمیې شته لکه حنفي، شافعي، حنبلي، مالکي، ظاهري او نور مذاهب لکه د امام سفیان ثوري، امام اوزاعي او نورو امامانو مذهبونه چې اوس یې پیروان نشته خو یو وخت یې خپل امامان او پیروان درلودل.

اسلام ته د منسوبو ځینې نورو طائفو او مذاهبو نومونه هم د اسلام په تاریخ کې یاد شوي چې د اسلام له حقیقي فهم څخه د انحراف له امله منحرفې، مبتدعې، خرافاتي او یا د ګمراه طائفو په نامه یادیږي لکه خوارج، روافض، قدریه، مرجئه، معتزله او نور چې د اسلامي تاریخ په بېلابېلو وختونو کې راپیدا شوي، تر یوه وخته یې دوام کړی، او بیا ورسته یا له منځه تللې او یا یې بڼه بدله کړې او له نورو سره یوځای شوې دي، خو د (معتدل اسلام) په نامه (فکر) او (مذهب) د اسلام په سیاسي او فقهي تاریخ کې سابقه نه لري، او د فرقو او مذاهبو په کتابونو کې یې په هېڅ ځای څرك نه ترسترګو کیږي.

**منځلاري اسلام يو امريکايي ايجاد دی:**

غرب د تل لپاره د شرق په خلاف او بيا په خاص ډول د اسلام په خلاف په جګړه کې پاتې شوی، او د توسعه غوښتنې د روحيې په لرلو سره يې د شرق په خلاف لښکرې راوېستلې دي چې د مقدوني سکندر لښکرکشۍ، د مديترانې په شرقي او جنوبي ساحلونو کې د آسياسي او افريقايي سيمو د نيولو لپاره د روميانو لښکرکشۍ، صليبي جګړې، استعماري جګړې او د اسلامي نړۍ په خلاف روانې اوسنۍ جګړې يې بېلابېل مثالونه دي.

د تاريخ په اوږدو کې د اسلام په خلاف جګړې د جنګېزيانو، هسپانويانو، فرانسويانو، هالنډيانو، پرتګاليانو، انګريزانو، ايټاليايانو او روسانو له لوري په لاره اچول شوي دي. په دغو ټولو جګړو کې مسلمانان تل د عقيدې لپاره جنګېدلي دي، او دښمن هم د دوئ قوت د دوئ له عقيدې ګڼلی دی.

کله چې د شلمې ميلادي پېړۍ په اولاتلو کې د انګريزانو د امپراتورۍ زوال پيل شو او تر دويمې نړيوالې جګړې وروسته يې خپل د استعمار خلافت او د غربي نړۍ قيادت امريکا ته ور پرېښود نو امريکا داسې لارې چارې ولټولې چې د هغو په وسيله پر ټولې نړۍ لاس بري شي، هېڅوک يې مخې ته ونه درېدلی شي، او د نړۍ سياسي، اقتصادي، فکري او ټولنيز وضعيت دې په هغه ډول عيار شي چې امريکا يې غواړي.

دې لوی نړيوال هدف ته د رسېدلو لپاره امريکايانو نه يوازې دا چې په پوځي او اقتصادي لحاظ ځان پياوړی کړ بلکه د (فکر) او (ستراتيژۍ جوړولو) په ډګرونو کې يې هم د Think Tanks په نامه د تفکير، تحليل، پلان جوړونې او په نړۍ کې د ولسونو او نظامونو پر وضعيتونو او احوالو د ځان خبرولو په مقصد د ستراتېژيکو مطالعاتو قوي مراکز رامنځته کړل، دغو مراکزو امريکا ته د ژوند په بېلابېلو اړخونو کې څېړنې وکړې او د

تطبيق وړ پلانونه يې ورته جوړ کړل، او د امريکا لپاره يې په نړۍ کې ډېر هغه کارونه اسانه کړل چې پخوا به انګريزانو په ډېرې سختۍ ترسره کول.
د هغو لويو کارونو په سلسله کې چې امريکا د تفکير د دغو مراکزو Think Tanks د څېړنو او مسلسل کار په نتيجه کې ترسره کړل يو يې هم د شوروي اتحاد ماتول او د نړۍ يوقطبه کول وو. د شوروي اتحاد ترماتېدلو وروسته امريکا لومړی د نوي نړيوال نظام new world order او بيا وروسته د نړيوالتوب globalization د نظريې د عملي کولو تر عنوان لاندې د نړۍ د لاندې کولو هڅې پيل کړې.
دا چې د اسلامي نړۍ ډېر هېوادونه لا له وړاندې امريکا تر خپل تأثير لاندې راوستلي وو او په دغو هېوادونو کې يې غرب پلوي او يا مستبد رژيمونه پر مسلمانانو مسلط کړي وو، نو د شوروي د ماتېدلو او د افغانانو د جهاد د افاديت په ظاهرېدلو په مسلمانو هېوادونو کې هم د غرب له سياسي، فکري، پوځي او اقتصادي تسلط څخه د ځان آزادولو روحيه راپورته شوه، او په مسلمانو ټولنو کې د غرب د هڅو او استعماري سياستونو په خلاف سياسي او ديني شعور څپاندشو، او مسلمانانو بېرته خپلو اصولو او خپل دين ته رجوع پيل کړه. او لکه څنګه يې چې د شوروي (کمونيزم) ته د کفر او الحاد په نظر کتل همداسې يې د غرب (ليبراليزم)، (ديموکراسۍ) او لدې دواړو څخه په مسلمانو هېوادونو کې را زېږېدلی (سيکولريزم) هم (کفر) وباله، او له هغه څخه يې د نجات موندلو په هدف فعاليت ته مخه کړه، چې دغې فعاليت ته امريکا د (بنسټ پالنې) نوم ورکړ.
د شوروي اتحاد او د کمونيزم تر له منځه تللو وروسته امريکا وليدل چې (چين) له امريکا سره د دښمنۍ روحيه نه لري، بلکه د سياسي، فرهنګي او اقتصادي مشترکاتو له امله د وخت په تېرېدلو نور هم ورسره نږدې کېږي.

اروپا لاله پخوا له امریکا سره د (ناټو) په تړون کې شامله او په هر څه کې د هغې پر لاره روانه ده.
هند هم د لوی نفوس په لرلو په شرق کې د امریکا د ملګرتیا لاره نیولې او په آسیا کې یې د تر ټولو لویې دیموکراسۍ په حیث تبارز کړی او له امریکا سره د دښمنۍ او مخالفت لپاره څه نه لري.
د نړۍ نور واړوه واړه تمدونونه او دینونه هم له امریکا سره فکري او سیاسي پیوندونه لري.
امریکا ولیدل چې یوازې اسلام دی چې نه د امریکا تسلط مني، نه یې دیموکراسي او لبیرال تمدن مني، نه یې د کپټالیزم اقتصادي نظام مني، او نه یې پر خپله خاوره پوځي شتون، لښکرې او د هغې ملګري نظامونه مني. نو هماغه وو چې (اسلام) ورته د یوازیني ریښتني دښمن په حیث ښکاره شو او د هغه په خلاف یې یوه هراړخیزه جګړه پیل کړه. او د دې لپاره چې په اسلامي نړۍ کې یې د اسلام په خلاف جګړه د یوې برخې مسلمانانو په لاس روانه کړې وي نو ریښتینی اسلام یې د بنسټپال اسلام ( Radical Islam ) په نامه یاد کړ، او د خپلو سیکولرو پلویانو لپاره یې یو بل اسلام چې تعریف او تفصیلات به په راتلونکو کرښو کې ذکر شي د (Moderate Islam) معتدل اسلام په نامه رامنځته کړ، او د اسلام په خلاف یې خپله جګړه تر دې شعار لاندې په لاره واچوله چې. Islam is the problem and the moderate Islam is the solution) ( پخپله اسلام ستونزه ده، او معتدل اسلام د دې ستونزې حل) .

**د امریکا او غرب فکري مراکز او د منځلاري اسلام د تولید پروسه**:

په غرب او بیا په خاص ډول په امریکا کې (فکري مؤسسې) یا (فکري مراکز) چې غربیان یې Think tanks بولي د یولوی د یولوی او مؤثر قوت د منابعو په حیث پیژندل کیږي، او دا ځکه چې همدغه (فکري مراکز) په غربي هېوادونو کې د پوځي او دفاعي قوت، اقتصاد، صنعت، تجارت،

خارجي روابطو او دپلوماسۍ او د هیوادونو او ولسونو د تقویه کولو او کمزوري کولو د چارو لپاره مهم او د تطبیق وړ پلانونه جوړوي، څېړنې ترسره کوي، او د حکومتونو او لویو کمپنیو لارښوونه کوي.

د فکري مؤسساتو Think tanksهمدې موثریت ته په پام سره یوازې د امریکا لپاره ۴۵۰۰ لویې او وړې فکري مؤسسې کار کوي چې ۲۰۰۰ یې د امریکا په داخل او ۲۵۰۰ یې له امریکا د باندې په نورو هېوادونو کې په څېړنو بوختې دي، او په خپل فعالیت په امریکا کې پالیسې جوړوونکو، سیاسي او نشراتي ادارو ته د نړۍ په مهمو مسائلو او موضوعاتو کې دقیقې څېړنې وړاندې کوي، او هغه لارې چارې ورښیي چې د نړۍ له قضایاوو سره مناسب تعامل پرې خپل کړي. [1]

دغه فکري مراکز په اروپا او امریکا کې د مسلمانانو او اسلامي نړۍ د دیني، فکري، سیاسي، پوځي، اقتصادی او اجتماعي وضعیتونو په اړه هم پراخې او ژورې څېړنې کوي . غرب د دې څېړنو او سروې ګانو له لارې ځانته د مسلمانانو او اسلامي هېوادونو ترمنځ فکري، مذهبي او سیاسي اختلافات معلوموي، مسلمانان په دقیق ډول (صف بندي) کوي، او بیا د دغې دقیقې صف بندۍ په رڼا کې د هغوئ له منځه خپل ځان ته دوستان او دښمنان تشخیصوي، او له دوستانو سره د دوستۍ او له دښمنانو سره د دښمنۍ لپاره تګلارې او د تطبیق وړ استراتېژۍ ورته وضع کوي، او د خپلو حکومتونو او کمپنیو په اختیار کې یې ورکوي.

د اسلامي نړۍ په اړه د غرب فکري مراکز (Think tanks) په مجموع کې پر دوه ډلو تقسیمېږي چې یوه ډله یې پداسې استراتېژیو او تکنیکونو کار کوي چې څنګه مسلمانانو ته له غرب سره پیوند ورکړي، او څنګه یې د معتدلو مسلمانانو په نامه له غرب سره همکارۍ ته ور وبولي. دغه ډله مراکز د غرب او مسلمانانو ترمنځ د ډیالوګ ( خبرو اترو) کنفرانسونه،

---

[1]- طروحة راند

سمینارونه، اداري او ښوونیز ورکشاپونه جوړوي، او د دې لپاره زمینه سازي کوي چې څنګه د دوئ په اصطلاح (منځلاري اسلامي حرکتونه) او (احزاب) د مسلمانو هېوادونو په حکومتونو کې پدې شرط ورشریك کړي چې د دې شراکت په بدل کې به د(حقیقي اسلام) ثوابت تحریفوي او تأویلوي، د جهاد په خلاف به منفي دریغ نیسي، او په خپلو هېوادونو کې به د دیموکراسۍ په نظام کې کار کوي، او د شریعت له نافذولو به تېرېږي، چې دغه ډول اسلامي تنظیمونه او احزاب هغه دي چې د (منځلارو اسلامي تنظیمونو) په نامه په مصر، تونس، ترکیه، پاکستان، افغانستان او ځینې نورو هېوادونو کې له غرب پلوو حکوتونو سره یو ځای کار کوي. د دغه ډول فعالیت ترشا دکارنیګي مرکز (Carnegie center) د (سابان مرکز) او د بروکینګز انسټیټیوټ (Brookings institute) او دوئ ته ورته نور فکري مراکز ولاړ دي.

او دویمه ډله مراکز بیا پر دې کار کوي چې څنګه دړمسلمانانو د مادي او معنوي قوت سرچینې ور وچې کړي، مسلمانان د آزادۍ او استقلالیت له احساسه او د مقاومت له توانایۍ بې برخې کړي، او د مسلمانانو راتلونکي نسلونه پر هغه لاره روان کړي چې غرب او د هغه په رأس کې امریکایې غواړي. د دغه ډول فکري مراکزو په رأس کې د هېرټېج فاونډیشن (The Heritage Foundation) رانډ کارپوریشن (RAND Corporation) او نور مراکز ولاړ دي.

په لاندې لست کې د امریکا او برتانیې د څو مشهورو فکري مراکزو نومونه لیکو چې د هغه له منځه به د (رنډکارپوریشن) په اړه تفصیلي معلومات ولیکو، ځکه چې دې فکري مرکز د(معتدل اسلام) د رامنځته کولو لپاره په ۲۱۷ صفحو کې یوه تفصیلي څېړنه د Building Moderate Muslim networks (دمعتدلو مسلمانانو د نړیوالو شبکو جوړول) په نامه خپره کړې ده، او په هغې څېړنه کې یې غرب او په خاص

ډول امریکا ته په نړۍ کې د (معتدل اسلام) د خپرولو لارې چارې وړښوودلې دي.

**مشهور امریکایي فکري مراکز:**

- American Iranian Council
- Atlantic Council of the United States
- Brookings Institution
- Carnegie Endowment for International Peace
- Center for Advanced Defense Studies
- Center for Global Development
- Center for Strategic and International Studies
- Council on Foreign Relations
- International Center for Research on Women
- The Nixon Center
- New America Foundation
- RAND Corporation
- Resources for the Future
- Urban Institute
- Project for the New American Century
- The Claremont Institute
- American Enterprise Institute
- Heritage Foundation
- American Enterprise Institute
- Center for Security Policy
- Claremont Institute
- Committee on the Present Danger
- Foreign Policy Research Institute
- Heritage Foundation
- Hoover Institution
- Hudson Institute

- **Manhattan Institute**
- **Middle East Forum**
- **National Center for Policy Analysis**
- **Project for the New American Century**
- **Center for American Progress**
- **Center for Defense Information**
- **Center for Economic and Policy Research**
- **Center for Progressive Reform**
- **The Century Foundation**
- **Economic Policy Institute**
- **Institute for Policy Studies**
- **Progressive Policy Institute**
- **Roosevelt Institution**
- **Cato Institute**
- **Foundation for Rational Economics and Education**
- **Progress and Freedom Foundation**
- **Reason Foundation**

## مشهور برتانوي فکري مراکز:

- Adam Smith Institute
- Africa Research Institute
- British Future
- Centre for the Analysis of Social Exclusion
- 
- The Centre for Cross Border Studies
- Centre for Defence and International Security Studies
- Centre for Policy Studies
- Centre for Strategic Research and Analysis (CESRAN)
- City Mayors Foundation
- Commonwealth Policy Studies Unit

- Cordoba Foundation
- European Council on Foreign Relations
- Foreign Policy Centre
- Institute for Jewish Policy Research
- Institute for Strategic Dialogue
-
- International Institute for Strategic Studies
- Overseas Development Institute
- Oxford Research Group
- RAND Europe (an independent division of the RAND Corporation)
- Resolution Foundation
- Royal Air Force Centre for Air Power Studies
- Royal Institute of Public Administration (defunct)
- Royal United Services Institute for Defence and Security Studies
-
- The Intergenerational Foundation

د یادولو ده چې دا یوازې امریکا او برتانیا ندي چې دغه ډول فکري او د استراتېژیکو څېړنو مراکز لري، بلکې ټول اروپايي هېوادونه، استرالیا او روسیه هم همدغه ډول لوی او قوي مراکز لري.

**رانډکارپورېشن څه ډول مرکز دی، او تر اوسه يې د اسلامي نړۍ او مسلمانانو په خلاف څه کړي دي؟**

د رانډ کارپوریشن RAND Corporation تحقیقاتي مرکز د اسلامی نړۍ، اسلام او مسلمانانو په خلاف تر ټولو خطرناکې څېړنې ترسره کړې دي. د دې مرکز د تحقیقاتو په نتیجه د اسلامي نړۍ او خپله د اسلام د دین په اړه د امریکا د خطرناکو اقداماتو تأثیرات به تر ډېره وخته پورې د مسلمانانو په فکري، عقیدوي، اجتماعي او سیاسي ژوند کې پاتې وي.

د (رانډ کارپوریشن) د څېړنیز مرکز د **۱۹۴۵**م کال د اکتوبر د میاشتې په اول تاریخ په دویمې نړیوالې جګړې کې د امریکا د پوځ او د هوائي ځواک

د ستر قومندان (جنرال آرنولد) له لوري د امريکا د (کالفورنيا) په ايالت کې تأسيس شو. جنرال ارنولډ چې کله وليدل چې امريکا دخپلې پرمختللې ټکنالوژۍ او اټوم بم په زور جاپان مات کړ او دويمي نړيوالې جګړې ته يې د پای ټکی کېښود نو عملاً دا ورمعلومه شوه چې عملي څېړنې او پرمختللې ټکنالوژي د غلبې له مهمو عواملو څخه دي، نو هماغه وو چې د جګړې تر ختمېدولو دوه مياشتې وروسته يې د (ډوګلاس) د الوتکو جوړولو د کمپنۍ له مشرانو سره د (کاليفورنيا) په ايالت کې د علمي څېړنو د يو خاص څېړنيز مرکز پر جوړولو مجلس وکړ او په نتيجه کې دواړو اړخونو د (رنډ کارپوريشن) پر جوړولو موافقه وکړه.
رانډ کارپورېشن په همدې کال کې د امريکا د هغه وخت د هوايي قواوو د رئيس ارکان د معاون (جنرال ليمای) تر سرپرستۍ لاندې د امريکا د هوايي قوت د لاټور پياوړي کولو لپاره په څېړنو پيل وکړ. دوه کاله وروسته (رانډ کارپوريشن) په پوره استقلاليت د کار کولو په مقصد د امريکا د هوايي قواوو د اداري د فيصلې پر اساس د (ډوګلاس) له کمپنۍ څخه جلا شو او په مستقل ډول يې په همدې (کاليفورنيا) کې د يو غير انتفاعي تحقيقاتي مرکز په حيث خپل کار ته دوام ورکړ. په همدې ۱۹۴۷م کال د (فورډ) مؤسسې چې د (فورډ) د موټر جوړولو د کمپنۍ اړوند وه (رانډ کارپريشن) ته يو ميليون ډالر عطيه ورکړه تر څو (رانډ) ورباندې پر خپلو پښو و درېږي.
د (رانډ کارپوريشن) څېړنيز مرکز په تېرو تقريباً او ياوو کلونو کې د امريکا لپاره د مصنوعي سپوږمکيو (سټيلايټونو)، کمپيوټر، ويډيويي تصوير، او د پوځ ترمنځ د عصري ارتباط د رامنځته کولو پر وسيلې چې وروسته يې د اوسني (انټرنټ) بڼه غوره کړه پراخې څېړنې ترسره کړې دي.
د (رنډ کارپوريشن) په څېړنيز مرکز کې په يوه وخت کې (۱۰۰۰) تنه څېړونکي په څېړنو بوخت دي چې د دغو څېړونکو ٪۶۰ يې په بېلابېلو تخصصاتو کې د (دوکتورا) سندونه او ٪۲۸ يې د (ماسترۍ) سندونه

لري، او پدې مرکز کې ۳۰ داسې پوهانو هم عضويت لرلی چې په بېلابېلو تخصصاتو کې يې د (نوبل جائزې) هم اخيستې دي.
رانډ کارپورېشـن خپله د لـوړو زده کړو فاکولتـه هم لـري چې پـه سياسـي علومو کې د (دوکتورا) سند ورکوي. دغه څېړنيز مرکز له امريکا د بانـدې نور مراکز هم لـري چې په برتانيـه کې د همدې مرکز مسـتقله څانگه، پـه منځني ختيځ کې د عمومي پاليسۍ مرکز، په قطر کې د سياسي څېړنو مرکز يې مثالونه دي.
په هغه وخت کې چې شوروي اتحاد امريکا ته د لوی دښمن په حيث مطرح وو نـو (رانډ کارپوريشـن) د هغـه د کمزوري کولـو پـه کـار کې دومره لـوی نقش درلوده چې د شوروي په نظامي او ستراتيژيکو کړيو کې به يې د(رانډ کارپوريشن) مرکز ته ( د مرگونو او تخريب د توليد اکاډمي) ويله.
د شوروي اتحاد تر له منځه تللو وروسته چې امريکا (اسلام) او مسـلمانان د خپل يوه ريښتني دښمن او متوقع خطر په حيث وټاکل نـو بيـا همدغـه د (رانډکارپويشن) څېړنيز مرکز امريکا ته د اسلامي نړۍ په لاندې کولـو او د ريښتني اسلام په تبديلولو او د (منځلاري اسلام) په نامـه د يـوه بـل ديـن د رامنځتـه کولـو پـه چـارو کـې پـوره لارښـوونه وکـړه، او د اسـلامي نـړۍ د قضاياوو د تحليل په اړه يې امريکا تـه ښې ډېرې څېړنـې ترسره کړې چې څو مشهورې او مهمې څېړنې يې د دې لپاره د افغان لوسـتونکي مخې تـه پـه لانـدې ډول ږدو چـې دا ورتـه معلومـه شـي چـې (رانـډ کارپوريشـن) د اسلامي نړۍ په اړه د امريکا لپاره څومره کـار کـړی دی. د يادولو ده چې دغه څېړنې ټولې په انگلېسي ژبه کې خپرې شوې دي چې مـا يـې نومونـه پښتو ته ترجمه کړي دي :
۱ – د بوسنيا له تجربې زده کړه.
۲ – د ناټو د پوځي ايتلاف د پوځي عملياتو او د بشـري مرسـتو د مؤسسـو ترمنځ د همغږۍ تقويه کول ۲۰۰۲م .
۳ – اسلام د قوقاز په شمال کې، چيچنيا د يوه مثال په ډول . ۲۰۰۳ م .

۴ – متمدن ديموکراتيك اسلام، ملګري ، منابع او ستراتېژۍ، ۲۰۰۳م .
۵ – اسلامي نړۍ د سپتمبر له يولسمې وروسته ۲۰۰۵م .
۶ – د تروريزم په خلاف د جګړې راتلونکې مرحلې او اقدامات. ۲۰۰۵م
۷ – پـه منځنــي ختــيځ کــې لــه تروريـزم څخـه د ځوانـانو د ليـرې سـاتلو فرصتونه ۲۰۰۵م .
۸ –اسلام او غرب، د مشترکو زمينو لټول ۲۰۰۶م .
۹ – د محاصرې احساس، د اسلام او غرب سياسي جغرافيه .
۱۰ – د منځلاري اسلام د نړيوالو شبکو جوړول ۲۰۰۷م .
۱۱ – د تايلند په جنوب کې د مسلمانانو پاڅون ۲۰۰۸م .
۱۲ – په ترکيه کې د سياسي اسلام راپورته کېدل ۲۰۰۸م .
۱۳ – د جهاد غږ د مجاهدينو له خولې ۲۰۰۸م .
۱۴ – له جرمني تر عراقه د امت په جوړولو کې د امريکا رول.
۱۵ –په منځني ختيځ کې د پوځي تګلوريو بدلون.
۱۶ – د مديترانې د حوض د هېوادونو امنيت.
۱۷ – د فلسطين د قضيې په اړه څلور پراخې څېړنې.
۱۸ – د عراق په اړه څو بېلابېلې څېړنې.
۱۹ – ايران پېژندنه ۲۰۰۹م .
۲۰ – د سپاه پاسداران ظهور ۲۰۰۹م .
۲۱ –ايران او د خليج امينت.
۲۲ – د شمالي افريقا امنيت، داخلي او خارجي ننګوونې.
۲۳ – د عربي فکر اوسني توجهات.
۲۴ – د عربي هېوادونو اقتصادي امکانات.

د امريکـا لـه لـوري د افغانسـتان تـر اشـغال وروسـته (رانډکارپوريشـن) د افغانستان په اړه هم په ډېرو مهمو موضوعاتو کې څېړنې ترسره کړې چې د امريکا د اشغال د تقويه کولو لپاره ډېرې ضروري يې دغه لاندې درې څېړنې دي:

١ – په افغانستان کې د راډيو له لارې ښوونه او روزنه. ٢٠٠١م.
٢ – د افغانستان په نوي اساسي قانون کې اسلام او ډيموکراسي ٢٠٠٣م.
٣ – افغانستان، دولت، ټولنه، د امريکا سياست او د راتلونکي پر لوري لاره ٢٠٠٨م([1])

په پورتنيو يادو شويو څېړنو کې (رانډ کارپورېشن) امريکا ته هغه لارې چارې او وسائل ور وښودل چې څنګه له هغو څخه په استفاده په افغانستان کې ليرې او د حکومت له کنتروله آزادو سيمو ته د راډيو له لارې هغه مفاهيم ور ورسوي چې د کتاب، مکتب، تلويزيون او حکومتي ادارو له لارې يې نه شي وررسولی، او هم يې امريکا ته هغه لاره وروښوده چې څنګه د اشغال د وخت په اساسي قانون کې اسلام غير فعال، او غربي مفاهيم او ډيموکراسي په فعال او عملي شکل ځای کړي. د يادولو ده چې د افغانستان د همدغه اساسي قانون په اړه زما يوسلسله صوتي څېړنيز درسونه نشر شوي چې د دې اساسي قانون کفري موارد او مادې ورکې د شرعي دلائلو په رڼا کې په نښه شوي او بيان شوي دي چې اورېدل يې بې ګټې ندي.

د افغانستان په اړه د (رانډ کارپويشن) په ترسره شويو څېړنو کې تر ټولو مهم نقش د افغاني الاصل امريکايي لوړپوړي مامور (زلمي خليلزاد) او د هغه د يهودۍ ښځې (چېريل بنارډ) دی چې دواړه د همدغه تحقيقاتي مرکز څېړونکي او په هغه کې د بېلابېلو پروژو مديران دي. او د دې لپاره چې (زلمي خليلزاد) د امريکا د مصالحو د تأمين په مقصد په افغانستان او اسلامي نړۍ کې د خپلو نظرياتو او (رانډکارپوريشن) د توصيو د عملي کولو لپاره مهم فرصت او پراخ امکانات موندلي وي نو ځکه خو يې هغه لومړی په افغانستان کی د امريکا د سفير او بيا په عراق کې د امريکا د

[1] – درنډ کارپوريشن په اړه د معلوماتو په تيارولو کې د ( طروحة جامعية عن تقرير مؤسسة راند الخبيث عن الإسلام الحضاري ) له کتاب څخه استفاده شوی ده.

سفير او په پاى کې د ملګرو ملتو په اداره کې د امريکا د سفير په توګه مقرر کړ.
دا هم د ياولو ده چې لکه څنګه چې (اشرف غني) او ښځه يې (مسيحي رولا) دواړه د بيروت د امريکايي پوهنتون فارغان دي همدغه ډول (زلمی خليلزاد) او يهودی (چيريل بنارډ) هم د همدغه پوهنتون فارغان دي.

## د منځلاري اسلام لپاره د امريکا معيارونه

امريکا چې له اصلي اسلام څخه په وېره کې ده د هغه پر ضد يې د (معتدل اسلام) په نامه داسې يو څه ته د اسلام نوم ورکړی چې هغه په حقيقت کې د امريکا د اهدافو او نظرياتو تمثيل کوي، او د اصلي اسلام د مسخ کولو او د مسلمانانو د منحرفولو لپاره له هغه څخه د يوې فعالې وسيلې په حيث کار اخلي.
امريکا د معتدل اسلام د رامنځته کولو او متعارف کولو تر نامه لاندې غواړي (اصلي اسلام) له خپلې اصلي محتوى خالي کړي، او پر ځای يې غربي مفاهيم او نظريات ورواچوي.
امريکا او ملګري يې غواړي له اسلامه د (وحيې)،(قدسيت)او (يوازې ديني نصوصو او تعليماتو ته د رجوع کولو) خبره وباسي، او د دغو معيارونو پر ځای (عقل)،(مصلحت)،(دنياوي مادي ګټې) او (له غرب سره پر يوه لار تلل) د معتدل اسلام معيارونه وګرځوي.
هغه اسلام چې امريکا يې غواړي هغه بايد له شرعي قوانينو، د توحيد او حاکميت له عقيدې، له جهاد ، د يرغلګرو په خلاف له مسلح مقاومت، د (ولاء او براء له عقيدې)، د اسلامي خلافت له سياسي نظام او د اسلامي امت د (وحدت) له نظريې خالي وي، او د دې ټولو پر ځای دې (ډيموکراسي)، ( د غرب له نظره د بشرحقوق)،( د ښځو آزادي)، (شخصي آزادي)، (له کفارو سره سوله ييز ژوند)، (سياسي او ديني تعددګرايي)،(نړيوالو قوانينو او اصولو ته التزام)،(هيومنيزم) او د (ګلوبلايزيشن) تصور دې د (معتدل اسلام) اصلي منځپانګه وي.

د دې لپاره چې امریکا د (توندلاري اسلام) او (معتدل اسلام) تر منځ خلکو ته فرق واضح کړی وي د (رنډکارپوریشن) امریکایي فکري مرکز د (معتدل اسلام) لپاره د ځینې پوښتنو په ترځ کې یو لړ مشخصات او معیارونه وړاندې کړي دي چې که هغه په چا کې راغلل نو هغه به (معتدل مسلمان)ګڼل کېږي، او که يې هغه معیارونه نه منل، نو هغه به په یقیني ډول (توندلاری مسلمان) وي.

**د منځلاري اسلام لپاره د رنډکارپورېشن د فکري مرکز معیارونه:**

۱ – هر هغه فرد او جهت چې ځان د معتدل اسلام پیرو ګڼي آیا پر مسلح مقاومت (جهاد) باور لري؟ او که اوس پرې باور نه لري او ملاتړ يې نه کوي آیا پخوا یې کله په مسلح مقاومت کې برخه اخیستې؟ او یا یې د هغه ملاتړ کړی؟

۲ – آیا د ډیموکراسۍ تأیید کوي؟ او که ډیموکراسي مني نو آیا هغه په هماغې خپلې پراخې معنی چې د افرادو حقوق او (شخصي آزادي) ورکې شامله ده مني، او که پدې اړه محدویتونه او استثناءات لري؟ (له شخصي آزادۍ څخه مقصد د خپل ځان په اړه د (جنسي آزادۍ په شمول چې همجنس ګرایي او هر ډول جنسي آزادي ورکې شامله ده مراد ده).

۳ – په نړیواله سطحه منل شوي بشری حقوق مني؟ (هغه چې هر چاته د دین د انتخابولو حق ورکوي).

۴ – آیا د بشري حقوقو په منلو کې څه استثناءات غواړي؟( مثلاً د دین د انتخاب او بدلولو په اړه).

۵ – آیا دا مني چې د دینونو بدلول د افرادو خپل حق دی؟

۶ – آیا پر دې ایمان لري چې دولت دې باید شرعي حدود تطبیق کړي؟

۷ – آیا پر دې ایمان لري چې دولت دې باید په مدني قوانینو کې شریعت تطبیق کړی؟

۸ - آیا دا مني چې خلکو ته باید حق ورکړ شي چې که له اسلامي شریعته پرته د سیکولر قوانیو مطابق فیصلي کوي نو څوك یې باید مخه ونه نیسي؟
۹ - آیا دا مني چې نامسلمان اقلیتونه دې له مسلمانانو سره مساوی حقوق ولري؟
۱۰- آیا دا مني چې د نامسلمانو اقلیتونو خلکو دې د اکثریت مسلمانانو په هېواد کې دې لوړو سیاسي منصبونو ته ورسیږي؟( یعني د هېواد مشر، وزیران، قاضیان، د پوځ مشران او داسې نور دې کافران وي).
۱۱- آیا د نامسلمانو اقلیتونو لپاره دا حق مني چې په مسلمان هېواد کې دې د ځان لپاره خپل د عبادت خاص ځایونه (لکه کلیساګانې، معبدونه او داسې نور) جوړ کړي؟
۱۲- آیا داسې نظام او قوانین مني چې پر سیکولریزم (بې دینۍ) ولاړ وي؟
په پورتنیو پوښتنو کې یاد شوي مهم مشخصات او معیارونه چې له مسلح فعالیت (جهاد) سره مخالفت کول، په ټوله معنی غربي ډیموکراسۍ منل او په هغې کې هیڅ ډول ترمیم نه کول، د غرب د معیار مطابق د بشري حقوقو منل، د بشري حقوقو پر غربي معیارونو د اعتراض نه لرل، د دین د بدلولو د حق منل، د شریعت له تطبیقولو انکار کول، په اسلامي ټولنو کې د سیکولر د (پر دین نه ولاړ) قوانینو د تطبیق مخه نه نیول، د کافر او مسلمان لپاره د مساوي حقوقو منل، د د ولت د مشرۍ او د نورو لوړو مناصبو لپاره د کافرو اشخاصو په ټاکلو د اعتراض نه لرل او په اسلامي هېوادونو کې د نویو کلیساګانو، مندرونو او د کفارو د نورو معبدونو د جوړېدلو د حق تسلیمول ښودل شوي دي چې دا هر یو یې د اسلام په دین کې یا (حرام) او یا ښکاره کفر ګڼل کیږي.
له پورتنیو معیارنو دا په واضح ډول معلومیږي چې امریکا او ټول غرب د مسلمانانو لپاره د (معتدل اسلام) په نامه داسې یو (نوی دین) غواړي چې

د غرب له (ليبراليزم) او (ډيموکراسۍ) سره هيڅ فرق ونه لري، او همدغه مفهوم د (رنډ کارپويشن تحقيقاتي مرکز) د (متمدن ديموکراتيك اسلام) په تعريف کې په لاندې ډول ذکر کړی دی:

((امريکا، نوې صنعتي نړۍ او په مجموع کې بين المللي ټولنه داسې يو اسلام غواړي چې د نورې نړۍ له نظامونو سره پر يوه لار روان شي، ديموکراتيك او مترقي اسلامی وي، او پر نړيوالو قوانينو، احکامو او اخلاقو وچليږي)).[1]

**په اسلامي نړۍ کې د امريکايي (منځلاري اسلام) پرځای د (اصلي اسلام) له تطبيقه د غرب ويره:**

د معتدل اسلام په اړه د (رنډ کارپويشن) د تحقيقاتي مرکز څېړنه په پيل کې لدې شکايت کوي چې ولې په اسلامي ټولنه کې له مسجد څخه د ټولنيزو، اقتصاي او د حاکمو او مسلطو سياسي ناخوالو په خلاف غږ پورته کېږي؟ او ولې په اسلامي هېوادونو کې – د دوئ په اصطلاح- توندلاري (اصلي مسلمانان) خپل ځانونه د موجود مسلط وضعيت د بديل په حيث وړاندي کوي؟ او ولې د غرب د ديموکراسۍ منونکی او ليبرالان په اسلامي هېوادونو کې وېرول کېږي؟ او په ځينې ځايونو کې د وطن پرېښودلو ته اړ کېږي؟ او ولې مرتدان، او يا نور نامسلمان خلك لکه قاديانان چې لا هم ځانونه مسلمان بولي تر فشار لاندې نيول کېږي؟

د دې لپاره چې په اسلامي هېوادونو او نورې نړۍ کې د مسلمانانو په زړونو کې له کفارو څخه کرکه ليرې کړای شي، او خلك د حقيقي اسلام پرځای د غرب له لوري د جوړ شوي (معتدل اسلام) منلو ته تشويق شي امريکا، اروپا او پر اسلامي نړۍ مسلط د هغوی ملګري نظامونه هرکال پر بېلابېلو پروژو په سلګونو مليونه ډالر مصرفوي او د حالاتو او شرائطو مطابق بېلابېلې څېړنې او سروې ګانې ترسره کوي.

[1]– Civil democratic Islam Partners Resources and strategies

د يـادو شـويو څېړنـو پـه لـړ کـې يـوه هـم د مشـهور امريکـايي څېړونکـي (ډيويډ کپلان) څېړنـه هـم ده چـې لـه امريکـايي لـوړ پوړيـو چـارواکو سـره د مرکـو او د (سـي آی ای) د راپورونـو د مطـالعې پـر اسـاس يـې د Hearts) Minds and dollars) په نامه پردې موضوع ترسره کړې چې امريکا څنګـه کولی شي چې اسلام له داخل څخه تبديل کړي.
هغـه د خپلـې څېړنـې پـه پيـل کـې وايـي:((امريکـا د اول ځـل لپـاره داسـې استراتيژي وضع کړې ده چې دا په ډاګه کوي چې د امريکـا د ملـي امنيـت مصلحت په دې کې دی چې اسلام له داخل څخه اغيزمن کـړي، خـو دا چـې امريکا په اسلامي نړۍ کې په سياسي او پوځي لحاظ په جګـړه کـې ښـکيل ده او خلـك نفـرت ورڅخـه لـري او د اسـلام پـه اړه يـې خبـره نـه مني،نـو لـه همدې امله د امريکا دغه ستراتيژي داسې وضع شوې چې امريکايـان بايـد د بل چا په توسط اسلام بدل کړي، چې دغه بـدلوونکي جهتونـه (مـنځلاري اسلامي دولتونه)، (مؤسسي) او (اصلاحي) ډلې دي. دوئ بايـد تشـويق شـي چې په ډيموکراسۍ کې برخه واخلـي، د نـورو (نامسـلمانو) پـه مقابـل کـې د (زغـم) د فرهنـګ او روحيـې د خپرولـو لپـاره فعاليـت وکـړي. امريکـا د همدې هدف لپاره ترشلو په زياتو اسلامي هېوادونـو کـې اسـلامي راډيـويي او تلـويزوني پروګرامونـه تمويلـوي، فکـري ورکشـاپونه او سـمينارونه جوړوي، له ديني مدرسو او فکري مراکزو سره مرستی کوي، او دا هرڅـه د دې لپاره کوي چې دغه خلك د (منځلاري اسلام) خپرولو ته تشويق کړي)).
د اسـلام د جهـادي تفسـير پـه مقابـل کـې د مـنځلاري غـرب پلـوي اسـلام د تفسير د حتميت په اړه (ډيويډ کپلان) د خپلې دې څېړنې په يـوې برخـه کـې د (سـي آی اې) د يـوه متقاعـد افسـر خبـره را اخلـي او وايـي چـې:((کـه دې وليدل چې د سړك پرغاړه کوم (ملا عمر) خپـل نهـج او فکـر تـه خلـك وربلـل نو موږ بايد د سړك پـر بلـه غـاړه يـو (مـلا براډلـي) ولـرو چـې د اسـلام غربـي ډوله نهج او فکر ته خلك ور وبولي)).

**په اسلامي نړۍ کې د منځلاري اسلام خپروونکي:**

د (رنډ کارپوریشن) د منځلاري اسلام طرحه او همدارنګه د غربي فکري جهتونو نورې طرحې او کتابونه لکه د (ډیویډ کپلان) د (Hearts Minds and dollars)طرحه او د (رابرټ سوتلوف) د (تروریزم په خلاف د فکرونو جګړه) طرحه، د (ولیام راج) د (دمسلمانانو او عربو اوریدونکو لپاره د عمومي ډیپلوماسۍ) طرحه، ټولې پر دې ټینګار کوي چې د اسلام مقابله باید د اسلام په داخل کې د غرب پلوو عناصر په توسط وشي، چې په دې لړ کې له لاندې یادو شویو خلکو او جهتونو څخه کار اخیستل کېدی شي:

۱ – د مسلمانانو په اکاډیمیک ماحول کې د لوړو تحصیلاتو د سیکولر فکر لرونکي.

۲ – اسلام ته منسوب د(منځلاري فکر) د ټیټې طبقې دیني عالمان.

۳ – د سیاسي ډلو او احزابو فعالین.

۴ – د ښځو له حقوقو د دفاع او له نارینه ؤ سره د هغوئ د مساوات د نظریې پلویان.

۵ – د(منځلاري فکر) لیکوالان او ژورنالستان.

۶ –د صوفیانه فکر لرونکي او د جهادي فکر مخالف پیران اوصوفیان.([1])

([1]) د غربیانو مقصد له تصوف څخه زهد، تقوي، تقرب إلى الله، اشتغال بالأذکار المسنونة او حُسن خلق او هغه څه نه دي چې په اسلام کې ورته (تزکیه) او (احسان) ویل کېږي او هر مسلمان یې بایدخپل کړي، بلکې د هغوئ په نزد تصوف هغو فلسفیانه افکارو او خاصو سلوکیاتو ته ویل کېږي چې اسلام ته د منسوبو منحرفو صوفیانو او نورو دینونو تر منځ مشترك دي، او منونکي یې ټول د جهاد او مجاهدینو په خلاف د سیکولریزم او دیموکراسۍ په صف کې درېږي. همدغه مفهوم رنډ کارپورېشن) د اسلام په اړه په خپله بله خبرنه کې چې د (د متمدن دیموکراتیك اسلام) په نامه یې خپره کړې داسې واضح کوي: ((...صوفیان په ماډرنستانو کې شمېرل کېدی شي. هغوئ د اسلام په اړه یو آزاد فکر او تعبیر لري. په کار ده چې په افغانستان او عراق کې چې خلک یې صوفیانه عنعنات لري صوفیانه تأثیرات په تعلیمي نصابونو او د خلکو په کلتوري معیارونو کې تشویق او تأییدکړای شي... صوفی حرکت د خپلې فلسفې، خپلو صوفیانه

۷- د مدني ټولنو فعالين:

د (رنډ كارپورېشن) د(منځلاري اسلام) څېړنه دامريكا حكومت ته توصيه كوي چې امريكا بايد دغه ډول خلك په بېلابېلو وختونو كې امريكا ته وروبولي، د امريكا له ډيموكراتيكو او پاليسي جوړونكو ادارو سره يې آشنا كړي، او د كانګرس غړو ته يې ور وپيژني، تر څو هغوئ په بېلابېلو پلانونواو پاليسيو كې د دې خلكو لپاره د مرستو وړانديزونه توصيه او تصويب كړي.

## امريكا د منځلاري اسلام د خپراوي لپاره په كومو ډګرونو كې مرستې او فعاليت كوي؟

د (رنډ كارپوريشن) د(منځلاري اسلام) طرحه امريكا ته توصيه كوي چې(توندلاري اسلام) يعنې حقيقې اسلام ته د ماتې وركولو لپاره دې هم له هماغې استراتيژۍ كار واخلي دكومې په نتيجه كې يې چې شوروي اتحاد مات كړ، او د كمونيزم فكر يې خلكو ته د يوه منفور فكر په حيث معرفي كړ. د امريكا د هغه وخت هغې استراتيژۍ دوه مهمې برخې درلوې چې يوه يې:

د امريكا او اروپا په ګټه تبليغات وه،

او بله يې:

د شوروي په خلاف سايكالوژيكه (رواني) او سياسي جګړه وه.

او هغه ستراتېژي ځكه مؤثره ده چې هغې له يوې خوا د غرب پر ارزښتونو، تمدن او پوځي قوت د خلكو باور ورجوړ كړ، او له بلې خوايې د شوروي اتحاد او كمونيزم پر ارزښتونو، تمدن، او پوځي وړتيا د شوري په داخل كې د خلكو اعتماد ورخراب كړ. او دا كار د پوځي قوت په توسط نه، بلكې دامريكا او غرب د مؤسساتي او تبليغاتي قوت په توسط ترسره شو.

---

اشعارو، او خپلې موسيقۍ له لارې د بېلابېلو دينونو ترمنځ د وصل كېدو قوي پلونه غزوي. Civil democratic Islam Partners Resources and strategies (
۵۸مخ).

نو امریکا باید د (توندلاري اسلام) یعنې حقیقي اسلام په خلاف هم خپل فعالیت د همدغه ډول یوې ستراتیژۍ په چوکاټ کې منظم کړي. پدې معنې چې لکه څنګه چې د شوروي اتحاد د له منځه وړلوپاره د شرقي اروپا په هېوادونو کې غرب پلوي دیموکرات احزاب او تنظیمونه جوړ کړای شول او تقویه شول، همدغه ډول دې په اسلامي نړۍ کې هم غرب پلوي احزاب او د مدني ټولنې په نامه سیاسي او اجتماعي تشکیلات جوړ کړای شي. او لکه څنګه چې له ۱۹۴۷م څخه تر ۱۹۸۴م پورې امریکا له اروپا او ترکیې سره مادي او د مشورې مرسته وکړه چې د شوروي اتحاد په مقابل کې قوي شي، همدغه ډول باید په اسلامي نړۍ کې هم له غرب پلوو حکومتونو، احزابو او مدني ټولنو سره هم مرسته وشي چې دجهادي فکر په مقابله کې ځواکمن شي.

امریکا په افغانستان کې د خپل (منځلاري اسلام) د خپرولو لپاره له ډېرو فکري او دیني جهتونو څخه کار اخلي چې ځینې یې په شعوري ډول له امریکا سره ملګري دي او ځینې نور یې په غیر ارادي ډول په دې کار کې استعمالېږي.

هغه جهتونه چې امریکایان یې استعمالوي په لاندې ډول دي:

۱ – سیکولر احزاب، ټولنې او شخصیتونه.

۲ – له جهاد او اسلامي فکر څخه منحرف شوي پخواني جهادي تنظیمونه چې اوس یې ډیموکراسۍ په کاروان ورګډ شوي دي.

۳ – اوسني اخواني فکر ته ځینې منسوب خلك چې د خپل دعوت لپاره یې د دوئ په ګومان سوله ییز اسلوب او د ډیموکراسۍ قالب غوره کړي دي. دوئ دا وظیفه پرغاړه اخیستې چې په څه ډول مسلمان ځوانان له جهاده منحرف او د هغه پر افادیت باندې یې شکمن کړي.

۴ – د روحانیت منحرف او حرفوي پیروان او هغه ډلې ټپلې چې د معنویت او روحانیت تر پردې لاندې د مجاهدینو او جهادي فکر په خلاف په جګړې اخته دي.

په اسلامي نړۍ کې او بیا په خاص ډول په هغو هېوادونو کې چې د غرب د پلویانو په خلاف جهاد ورکې جریان لري امریکا د خپلو سفارتو، مؤسساتو او استخباراتي کانالونو له لارې پر دغه ډول خلکو ډېرې لورینې لري او هغوئ ته په ټولنه کې د نفوذ پراخ وسائل په لاس ورکوي، او هم یې فکر ته په مطبوعاتو او تعلیمي نصابونو کې پراخ ځای ورکوي.

**۵** – هغه دیني ډلې ټپلې او جهتونه چې د افغانانو ترمنځ د مذهبي اختلافاتو خپرولو ته یې کار ویلی دی او تل په خپلو دعوتي او تعلیمي فعالیتونو کې همدې اور ته پوکي وهي. دغه ډلې یوازې په کوم خاص مذهب پورې اړه نه لري، بلکې په ټولو فکري مکاتبو او فقهي مذاهبو پورې ځان منسوب ښيي.

۶ – نشنلستان او د قومي تعصباتو پالونکي هم هغه مضر او خطرناك جهت دی چې غربیان یې په افغانستان او نورې اسلامي نړۍ کې د حقیقي اسلام په مقابل کې استعمالوي او تر شا یې دریږي.

# د امریکایانو له اشغاله وروسته په افغانستان کې د سیکولر احزابو پرله پسې زیږون

غرب او په سرکې یې امریکا له ډېرې مودې راهیسې غوښتل چې افغانستان د خپلې سیاسي غلامۍ په حلقه کې داخل کړي، او افغانان هم د نورو ولسونو په څېر په فکري او فرهنګي لحاظ تسخیر کړي. او د دې کار لپاره یې ډېرې وسیلې، احزاب، شخصیتونه، ادبې حلقې او مراکز او کلتوری فعالیتونه په کار اچولي وو، خو دا چې افغانستان د اوږدې مودې لپاره د جهاداومجاهدینو کور ګرځېدلی وو نو غرب خپلو دغه هدف ته په اسانه نه رسېده، هماغه وو چې امریکا د سپتمبر د یوولسم د پېښې په بهانه افغانستان اشغال کړ، او په مستقیم ډول خپلو اهدافو ته د رسېدلو لپاره د عمل میدان ته داخله شوه.

په افغانستان د امریکا یرغل د خپلو نورو سیمه ییزو او بین المللي اهدافو تر څنګ په افغانستان کې دوه ځانګړي او اساسي هدفونه لري چې په لاندې ډول دي.

## د سیکولر احزابو له جوړولو د امریکا دوه مهم هدفونه

### اول هدف ـ په سیمه کې د جهاد د فرهنګ ختمول:

امریکا ځکه پدې سیمه کې د جهاد فرهنګ ختمول غواړي چې جهاد دلته د کمونیزم د زوال سبب ثابت شو. کمونیزم له خپل ټول توان سره چې په نړۍ کې یې درلود د جهاد په وړاندې مقاومت ونه کړای شو، همدغه جهاد د غرب او امریکا د زوال سبب هم ثابتېدلای شي.

غرب ته د جهاد په وړاندې خپله د ناتوانۍ تجربه د شرقی روم د امپراتورۍ او د اندلس په له لاسه ورکولو کې معلومه شوې وه چې وروسته

بیاد صلیبي جګړو په ترڅ کې بیا هم تکرار شوه. د غربي تمدن معاصر فیلسوفان او سیاستداران تل پدې نظر دي چې جهاد او مجاهدین د دوئ د بې رحمه او بې معنویته تمدن د زوال سبب کېدای شي، نو باید په هر ځای کې د جهادي حرکتونو د ځپاند کېدلو مخنیوی وشي.
۲ – غرب په شلمې میلادي پېړۍ کې د استعماري جګړو او بیا وروسته د غرب پلوو حکومتونو له لارې د اسلامی نړۍ د سیاسی، اقتصادی، اجتماعی او فرهنګي چارو واګې په خپل لاس کې ونیول او د اسلامی نړۍ هر څه یی د خپل ځان کړل، او د اسلامی نړۍ حکومتونه او حاکمان یې د شطرنج د مهرو په څېر په اسانۍ بدل را بدل کړل.
د اسلامی نړی د هېوادونو په لکونو پوځونه د دوئ د اهدافو د تحقیق په لار کې نه یوازې دا چې خنډ نه دي بلکې د کرایي ملیشو په څېر په ډېره ارزانه بیه د غرب د اهدافو لپاره مسخّر دي، او د دې پر ځای چې دغه پوځونه له دین او هېواد څخه دفاع وکړی، د دین او هېواد د اصیلو بچیانو او مدافعینو په خلاف یې خپله خونړۍ او ظالمانه جګړه پیل کړې ده.
د غرب او د هغه د محلّي ملګرو په مقابل کې یوازې مجاهدین او ځینې اسلامي حرکتونه دي چې د غرب د هر ډول پوځي، سیاسي، اقتصادي او کلتوري مداخلو په مقابل کې ولاړ دي او نه پرېږدي چې اسلام او مسلمانان دې په خپلو هېوادونو کې ذلیل شي. که له همدغو مجاهدینو وېره نه وي نو غرب پلوي سیکولر او مفسد حاکمان به هر اسلامي هېواد د (ایتاترک) د ترکیې په څېر له اسلامه محروم کړي.
د دې لپاره چې غرب او د دې ځای ملګرو یې دغه موجود او قوي خنډ له منځه وړی وي نو په ټوله نړۍ کې یې د جهاد او مجاهدینو له منځه وړلو لپاره نړیواله جګړه اعلان کړې ده.
دا چې افغانستان په تېرو دوو لسیزو کې یو جهادي محور او د مجاهدینو مرکز ګرځېدلی وو او د نړی محکومو او مظلومو ولسونو دلته د ازادۍ او استقلال د حاصلولو زده کړه وکړه، او د نړۍ په هر ګوټ کې مجاهدینو او

ازادي غوښتونکو له افغانستان او افغانانو سره فکري او ايډيالوژيک تړاو درلود، نو ځکه خو امريکا تر ټولو د مخه پر افغانستان يرغل وکړ، او اشغال يې کړ.
غربيان پدې پوهېدل چې په نورو اسلامي هېوادونو کې د سيکولرو مرتدو حاکمانو او د مستبدو حکومتونو د شتون له امله جهاد او مجاهدين وده نشي کولای، او د دې کار لپاره يوازينۍ ازاده خاوره افغانستان ده، نو ځکه يې اول پر افغانستان بريد وکړ، او پدې يرغل کې يې د نړۍ ټول اسلام دښمنه قوتونه له ځان سره يو ځای کړل.

**دوهم هدف ـ د سيکولرزم (بې دينۍ) حاکمول:**

دا چې امريکا او غرب له يوې خوا د تل لپاره افغانستان په خپله حلقه او تسلط کې ساتل غواړي خو له بلې خوا د ډېرو درنو پوځي تاوانونو او اقتصادي لګښتونو د نه زغملو له امله دلته خپل نظامي حضور ته دوام نشي ورکولای نو داسې يوه سياسي فضا او حکومتي ميکانيزم رامنځته کوي چې د امريکا له پوځي شتون پرته هم افغانستان د امريکا په غلامۍ کې وساتي او د دې هېواد هر څه ته غربي بڼه ورکړي، او حاکميت، نظام، کلتور، تعليم او تربيه، سياسی جوړښتونه، اخلاقي ارزښتونه، فکری تګلوری او هر څه د امريکا پر لاره روان کړي. دی هدف ته د رسېدلو تر ټولو مهمه او موثره وسيله د Secularism (بې دينۍ) او westernization (غربی کولو) حاکمول دي، ځکه چې يوازې سيکولريزم کولی شي چې افغانان او افغانستان غرب ته تابع وساتي، او يوازې سيکولران غرب ته په هر حال کې وفادار پاتې کېدلای شي.
له همدی امله غرب او امريکا ټول سيکولر (بی دينه) افغانان او افغاني فرهنګي، سياسي، فکري، او ادبي ټولنې په خپلو پوځي مصارفو او وسايلو افغانستان ته راصادرې کړې او د هغو لپاره يې دلته د فعاليت او ودې کولو زمينه برابره کړه، حکومت او وزارتونه يې ور وسپارل، او هم يې په سلګونو غير دولتې مؤسسې يې په اختيار کې ورکړې.

غرب د افغانستان د اشغال په وخت کې لدې هېواد سره د مرستې په نامه په لسګونو ملیارده ډالر د کابل حکومت او ټولو هغو مؤسسو او جهتونو ته ورکړل چې د سیکولریزم د خپراوي لپاره کار کوي.

د افغانستان په اشغال کې شریکو غربي هېوادونو او مؤسسو د افغاني جهت سیکولرو سازمانونو او شخصیتونو ته د سیکولریزم د خپرواوي لپاره ښه ډېر تبلیغاتي او مطبوعاتي مؤسسې او وسایل په لاس ورکړل چې د افغانانو د سیکولرېزه کولو لپاره په هېواد کې دننه او دباندې په سلګونو نشراتي کانالونه په کار واچوي. دغو سیکولرو جهتونو دلته راډیویي او تلویزوني کانالونه پرانستل، او د دوئ تر څنګ یرغلګرو هېوادونو هم د خپلو راډیوګانو نشرات له یو او دوو ساعتونو څخه ځلېریشت ساعتونو ته وغزول، او ښه ډېر فرهنګیان، ادیبان، لیکوالان، شاعران او ډمان یې د ډالرو په مقابل کې د خپلو راډیوګانو او تلویزونون په خدمت کې کړل، او هغوئ په توسط یې د جهاد، مجاهدینو علماوو د دیني مدرسو د زده کوونکو، متدینو خلکو او بالآخره د هر هغه چا په خلاف یې خپرونې وکړې چې د یرغلګرو او سیکولرو په خلاف یې دریځ نیولی وو.

د اشغال په پیل کې د غربي اشغال دغو فرهنګي ملېشو داسې تبلیغات پیل کړل چې هر په شرع برابر سړی یې د القاعده او تروریزم پلوی وباله، او د اخلاقي فساد پر مخ یې د هېواد دروازې داسې پرانستلې چې په ډېره لنډه موده کې یې افغاني اسلامي اخلاقي او معنوي ارزښتونه وګواښل او داسې بې دینه، د اخلاقو منافي او د افغانی غیرت او حمیت خلاف خپرونې یې وکړې چې د کابل د اشغالي ادارې خرڅو شویو د شؤون اسلامي درباري ملایانو ته هم نور د زغملو وړ نه وې.

د دغو نشراتي مؤسسو لخوا ډول ډول داسې بهرني بې حیا فلمونه نشر شول چې نوی نسل یې پر بله لار روان کړ، او د دې هرڅه تر څنګ بهرنیانو ته د خدماتو او سهولتونو د وړاندې کولو تر نامه لاندې نایټ کلبونه،

شرابخانې، او د ګیسټ هاوسونو په نامه د زناکارۍ اډې د حکومتي جهتونو تر څارنې او پالنې لاندې منځ ته راغلې چې وروسته بیا په ښارونو کې د مجاهدینو د فعالیتونو له وېرې یا بندې شوې، او یا هم ډېرې محدودې او مخفي شوې خو بې حیا خپرونې لاهماغه ډول روانې دي.
دا هر څه د دې لپاره تر سره کېږي چې په افغانستان کې د سیکولر (بې دینه) ګوندونو د نشأت او د هغو د فعالیت منل کېدو ته ذهنونه او زمینه برابره کړي، او افغانان بیا د هغوئ له بې دینه سیاستونو او فعالیتونو سره حساسیت ونه ښیي، چې په نتیجه کې به یې بیا ارتداد، زندیقیت، فحشاء او هر ډول بې لاریتوب د ازادۍ، ډ یموکراسۍ، د بشر حقوقو د رعایت او د بیان د ازدۍ تر نامه لاندې تر سره کېږي، قانون به یې دفاع کوي، او څوک به د اعتراض حق ورباندې نه لري.
د همدغه ډول یوې ککړې فضا په رامنځته کولو سره په کابل کې د امریکا لخوا جوړې ادارې د سیاسي احزابو د جوړولو قانون جوړ کړ، او د غرب په لارښوونه او د غربي مشاورینو په همکارۍ ټولو (سیکولر) جهتونو د سیاسي احزابو په جوړولو لاس پورې کړ، او د حکومت لخوا ورته د فعالیت اجازت جواز ورکړل شو چې پدې لړ کې په لسګونو ګوندونو د خپل جوړښت اعلان وکړ.
دغه اعلان شوي ګوندونه ټول له یوې مخې (سیکولر) ګوندونه دی، کېدای شي ځینې یې ځان د اسلام او یا پخواني جهاد ته د انتساب تر نامه او کوم بل مقدس نامه لاندې مطرح کړي، خو په حقیقت کې هماغه هم سیکولر ګوندونه دي، ځکه چې د امریکا په ملګرتیاکې او د هغې تر سیوري لاندې څوک ریښتینی مسلمان یا مجاهد نشي پاتې کېدلای.
همدغه ګوندونه چې ځان ته اسلامي وایي تر هغو نورو ښکاره سیکولر ګوندونو یې د امریکا ډېر خدمت کړی دی. دوئ د امریکا لپاره د مسلمانانو په خلاف جنګېدلی،

امريکا ته يې استخباراتي فعاليتونه ترسره کړي، د جهاد او مجاهد نومونه يې په نړيواله سطحه شرمولي، په افغانستان کې د طاغوت او وضعي قوانينو په حاکميت راضي شوي، د امريکا له سيکولرو ملګرو سره يې ايتلافي حکومتونه جوړ کړي، جهاد يې تروريزم بللی، او په سلګونو داسې جنايتونه يې کړي چې ښکاره سيکولر ګوندونه يې شل کاله وروسته هم نشي ترسره کولای. نو له همدې امله دغه ګوندونه هم په حقيقت کې سيکولر ګوندونه دي.

امريکايان همدغه ډول دوه مخو او منافقو ګوندونو ته ضرورت لري تر څو له يوې خوا د هغو په وسيله حقيقي مسلمانان او مجاهدين وځپي، او له بل لوري ساده او د سطحي فکر لرونکي مسلمانان ورباندې تېرباسي چې د دوئ تر کنترول لاندې اشغال شوي افغانستان کې اسلامی ګوندونه هم موجود دي. نو ځکه خو امريکا دغه ډول دوه مخو ګوندونو او ټولنو ته هم د فعاليت اجازه ورکړه. که داسې نه وي نو بيا امريکا د نړی په هر ګوټ کې د مجاهدينو په حرکتونو او فعاليتونو ولې بنديز لګولی؟ ولې يې مشران تر تعقيب لاندې نيولي؟ او ولې يې د هغوئ شتمنۍ غصبې کړې او کنګل کړې دي؟ او ولې هغوئ تروررستان بولي؟

دا څنګه کېدای شي چې په فلپين، فلسطين، کشمير، ازبکستان، چيچنيا، عراق ، سوريه، صومال، ليبيا ، تونس، الجزائر، اندونيزيا او نورو هېوادونو کې دې جهادی تشکّلات او د هغو منسوبين تروررستان بلل کېږي، په افغانستان کې دې د حقيقي مجاهدينو د له منځه وړلو لپاره نړيوال ايتلاف جوړېږي، او بيا دې په هغه کې مرتدو او منافقو اشخاصو او جهتونو ته د اسلامي يا جهادي احزابو تر نامه لاندې عضويت ورکول کېږي، او غربي عسکرو د قرباني کېدلو په نتيجه کې دوئ واك ته رسول کېږي؟

د دې مدعا د ثبوت لپاره ښه مثالونه ټول هغه تنظيمونه،ټولنې او دربارونه دي چې هم يې په پوره بې شرمۍ مشران د امريکا په صف کې

ودرېدل، او هم يې خپل افراد، مريدان، پيروان او ټوپکيان د امريکايانو په خدمت کې کړل.
امريکايانو هم دوئ ته د اشغال په حکومت او نورو ناحکومتي ادارو کې ښه برخه ورکړه، ځکه امريکايان پوهېږي چې دغه خلک په ډېره ارزانه بيه د مجاهدينو په خلاف جنګېږي اويا دهغوئ په خلاف د نوي نسل ذهن جوړونه کوي. دوئ له ريښتينيو مجاهدينو سره کينه لري، او پدې پوهېږي چې که دغه نظام د مجاهدينو په لاس رڼګ شي دوئ به په هغه صورت کې خپل ډېر مادي او سياسي مصالح له لاسه ورکوي، نو ځکه دوئ د امريکايانو په لاس د جوړ شوي حکومت د بقا لپاره د مجاهدينو په ضد جنګېږي او منفي تبليغات کوي که څه هم چې امريکايان ورڅخه د مجاهدينوپه په خلاف د تبليغاتو او جګړې ته د دوام ورکولو غوښتنه هم ونه کړي.
نو پر همدې اساس ويلی شو چې دغه ډول اسلام ته منسوب (پراګماتيست) ګوندونه په ټولې اسلامي نړۍ کې امريکا او غرب ته تر هغو ښکاره سيکولر ګوندونو هم ډېر ارزښت لري. او ځکه خو يې له سيکولرو ګوندونو سره په حکومتونو کې هم شريك ساتي.
غرب دې خلکو ته يوازې په دومره حجم کې د تبارز اجازه ورکوي چې د غرب مقاصد ترې پوره شي، او د ډيموکراسۍ کرغېړن مخ ورباندې سپين کړي، خو هېڅکله د دې اجازه نه ورکوي چې د غرب د منافعو له دائرې ووځي. او په دې ډول غرب ښکاره بې دينه خلك د ښکاره سيکولر احزابو په وسيله او ساده او اسلامپالي خلك د دغه ډول اسلام ته منسوبو ديموکراتو ګوندونو،ټولنو او منحرفو سيکولرو (روحانيونو) په توسط په خپلو خپرو کړيو جالونوکې ساتي. خو افغانان پوهېږي چې ريښتني مجاهدين او د هېواد د ازادۍ حقيقي غوښتونکی څوک دي؟ او هېڅکله به هم نه د بې دينه سيکولر احزابو او نه هم د غرب روحاني ملېشو په څېرو او تبليغاتو وغولېږي.

## غربي اشغالګر او په اسلامي نړۍ کې د تعلیم سیکولریزه کول

غربي هېوادونه چې څومره د مسلمانانو له جهاد څخه په وېره کې دي په هماغه اندازه په اسلامي نړۍ کې د پوهې او وینېتیابه له خپرېدلو هم په وېره کې دي.
همدغه سبب دی چې هر کله غربي استعمار کوم اسلامي هېواد لاندې کړی نو تر هر څه دمخه یې دهغه هېواد تعلیمي نصاب دخپلو اهدافو د خدمت لپاره عیار کړی او د نصاب مضامین او مفرادت یې په داسې ډ ول انتخاب کړي چې لوستونکي یې باید په پوره اخلاص د استعمار په خدمت کې پاتې شي، او نور هېڅ ډول مفکوره او د آزادۍ احساسونه لري.
دتعلیم له لارې د ولسونو په اشغالولو کې په هندوستان کې د برطانوي استعمار د تعلیمي نصاب د بنسټ ایښودونکي (لورد میکالي) استراتیژي ډېره واضحه وه چې ویل به یې: (مونږ باید په هندوستان کې داسې یو نسل وروزو چې وینه اوجسم یې هندوستانی، خو فکر، فرهنګ او اراده یې انګلیسي وي، ترڅو د هندوستان دنیمې وچې د پراخو پرګنو په تسخیرولو کې زمونږ خدمت وکړای شي ).
د عربي نړۍ د تسخیر لپاره هم انګریزي استعمار د تعلیم له وسیلې څخه کار واخیست. کله چې په ۱۸۸۲م کې مصر د انګریزانو په لاس سقوط وکړ، نو د انګلستان د هغه وخت حکومت د مصر له انګریز حاکم (لارډ کرومر) څخه وغوښتل چې په مصر کې د انګریزي تسلط د ټینګولو لپاره یې چې هر څه ته ضرورت وي د برتانیې له مرکزي حکومت څخه دې یې وغواړي.
د دې پر ځای چې (لارډکرومر) د برتانیې له حکومت څخه پوځي وسائل او پوځونه وغواړي هغه ورڅخه د (تعلیم ماهرین) وغوښتل. د برتانیې

حکومت د (لارډ کرومر) د غوښتنې په ځواب کې هغه ته (ډوګلاس ډنلوپ) چې دلاهوت (مسيحي دينياتو) د شاهي فاکولتې فارغ التحصيل مسيحي عالم وو ورولېږه.
(ډوګلاس ډنلوپ) د مصر لپاره داسې يو د تعليم نظام او نصاب جوړ کړ چې هم يې د (الأزهر) د تعليمي او معنوي تأثير مخه ورباندې ونيوله، او هم يې د وخت په تېريدلو په مصر کې د داسې يونسل روزنه او پالنه وکړه چې د مصر راتلونکې يې له اسلامه بيګانه او د انګريز په رنګ کې رنګ کړ. او کله چې د مصر تعليمي نصاب سيکولر (بې دينه) شو نو په هغه پسې تقريباً د ټولې عربۍ نړۍ تعليمي نصابونه (سيکولر) شول، او حکومتونه يې هم د غرب پر لاره روان شول، چې تر ننه لاهم روان دي.
د همدغې استراتيژۍ پر اساس په نولسمې او شلمې ميلادي پېړۍ کې استعماري دولتونو لکه برتانيې، فرانسې ، روسيې، پرتګال، هسپانيې او ايټاليې د اسلامي نړۍ په خپلو مستعمراتو کې داسې نسلونه وروزل چې د مستقيم استعمار تر ختمېدو وروسته هم د سلګونو کلونو لپاره په خپلو هېوادونو کې د استعماري سياستونو د تطبيق او دوام ضمانت ورکوي، او همدغه د استعمار په نصاب روزل شوی نسل د اسلامي شريعت او اسلامي ارزښتونو په له منځه وړلو کې تر استعماري ځواکونو زيات فعال او سخت زړي دي.
د دغې استعماري تعليمي استراتيژۍ نتيجه دا راووتله چې هر څومره چې په اسلامي هېوادونو کې مکتبونه، پوهنتونونه او نورې تعليمي ادارې ډېرېږي په هماغه اندازه خلک له اسلام څخه لرې کېږي او ټولنې د اخلاقي لويدنې په لور سوق کېږي، او حاکمان يې چې د همدغو استعماري نصابونو حاصل دي غلامۍ ته پر ازادۍ ترجيح ورکوي، او ټول هغه خلک چې د ازادۍ پر لرلو تأکيد کوي او کار ورته کوي په ارتجاع، بنسټ پالنې او له تمدن څخه په ليرې والي تورن کېږي، چې سزايې پرته له زندان، تبعيد او قتل بل څه نه وي.

د شلمې پېړۍ له پيل راهيسې چې امريکا پر اسلامي نړۍ او په عمومي ډول پر شرق د تسلط کومې هڅې پيل کړې دي په هغو کې يې په مسلمانانو کې د سيکولر( لادين) تعليم د مسلط کولو خطرناکې هڅې هم پيل کړې دي چې پدې کار کې تر اروپايي استعماري هېوادونو هم ډېر مخته تللې ده.

امريکايانو د اسلامي نړۍ د تعليم او تربيې تقريبا ټول وزارتونه دېته اړويستلي دي چې خپل نصابونه، لوائح، قوانين او تعليمي ماحول پر سيکولر (په دين نه ولاړ) بنسټونو ودروي، ځکه هغوئ پوهېږي چې همدا دين دی چې خلک د غرب د ملحدو نظرياتو او د استعمار د امپرياليستي پراخ غوښتنې په خلاف دروي او د مقاومت توان وربښي.

امريکا د افغانستان له اشغالولو وروسته دلته هم همدغه چاره تر سره کړه، او د خپل اشغال په وخت کې يې درې ځلې د افغانستان تعليمي نصاب تبديل کړ، او په هر ځل تبديلۍ کې يې په تدريج سره هغه مضامين ورڅخه و ويستل چې زده کوونکو ته يې د حقيقي اسلام، جهاد، دفاع، آزادۍ او له کفارو څخه د کرکې کولو مفاهيم ورتلقينول. او د دې مفاهيمو پر ځاي يې په سيستماتيك ډول داسې مفاهيم ورکې راوستل چې نوی نسل د جهاد او دفاع له روحيې څخه محروموي، او په لاشعوري ډول يې له غرب سره په هرڅه کې پيوند اخيستلو ته هڅوي.

**د تعليم د لادينه کولو لارې چارې** :

غرب په پيل کې له لاندې يادو شويو دوو لارو په مسلمانانو هېوادونو کې د تعليم د لادينه کولو هڅې شروع کړې:

**اول** :غربي هېوادونو د يوې منظمې استراتېژۍ له مخې هغه مسلمان ځوانان چې غرب ته د علومو د زده کړې لپاره ورغلي وو د علومو ترڅنګ په غربي فرهنګ او مادي فلسفه هم وروزل. دغو هېوادونو له بېلابېلو لارو او سکالرشيپونو ذهين او با استعداده ځوانان وروغوښتل، او له فراغت وروسته يې په خپلو مستعمره هېوادونو کې د چارو واګې ورسپارل، چې

هغوئ بيا خپله هماغه غربي نظريه دلته پلې کړه، او د خپلو هېوادونو تعليمي نصابونه يې پر هماغو غربي نظرياتو ودرول چې دوئ هلته منلي ول.

**دوهم:**استعماري هېوادونو په خپلو مستعمراتو کې داسې مکتبونه، پوهنتونونه او تعليمي اداري جوړې کړې چې نصاب، استاذان، لوائح، قوانين او هر څه يې په مستقيمه توګه د مستعمرينو له لوري پر مخ بيول کېدل، خو د دغو ادارو متعلمين يې د تر اشغال لاندې هېوادونو د متنفذو کورنيو او چارواکو اولادونه ول چې په طبيعي ډول به په نظام او حکومت کې مطرح کېدل.

دغو دواړو چارو داسې تعليمي چارواکي، استاذان او مفکرين رامنځته کړل چې له اسلام سره دښمني او د مادي ژوند فلسفه يې په سيستماتيک ډول له غربيانو څخه په ميراث اخيسې وه، او د هغې لپاره کار او مبارزه يې د پرمختګ او (روڼ اندي توب) تر عنوان لاندې خپل افتخار باله.

**د غرب تعليمي مشاورين او ماهرين**:

په ټولو اسلامی هېوادونو کې استعماری هېوادونو خپل تعليمی ماهرين او مشاورين د مختلفو فشارونو او يا د تعليم لپاره د مالی مرستو په ورکولو او نورو لارو په کار وګومارل چې له تعليمي نصابونو څخه هر هغه څه وباسي چې د استعماری هېوادونو د اهدافو د تحقق په لار کې خنډ ګرځي، چې په لومړی قدم کې يې اسلامې تاريخ او بيا وروسته د قرآن ايتونه، نبوي احاديث او ټول ايدیالوژيک مضامين يا په مکمل ډول له نصابه و وايستل، او يا يې په مسخه شوي او نيمګړي ډول او په بې اهميته شکل کې متعلمينو ته وړاندې کړل. خو د دې کار په مقابل کې يې د غربي نړۍ سياسي، اقتصادي، فکري او اخلاقي ارزښتونو ته په پراخه پيمانه په نصاب کې ځای ورکړ، او کوښښ يې وکړ چې متعلمينو ته غرب د يوې (نمونه) ټولنې په حيث ور وپيژنی، چې د دې کار نتيجه له شرق او

اسلام څخه د يوه کرکجن خو په غرب او غربي ارزښتونو د مين نسل په شکل کې راووتله.

**د تعليمي ماحول غربي کول** :

د هرې تعليمي اداربواړه او ځوانان له خپل ماحول څخه رنګ اخلي، او په هماغو معيارونو ځان برابروي چې په خپل ماحول کې يې ويني.

نن ورځ په اسلامي نړۍ کې د استعمار د شاګردانو په لاس جوړو شويو تعليمي اداروپه پوره ډول د غربي هېوادونو د کلتور او ژوندبڼې د ننداړتونونو شکل غوره کړی دی. د دې لپاره چې د تعليمي ادارو محيط په ټوليزه توګه له اسلام او اسلامپالنې څخه محروم شوی وي په ټولو تعليمي ادارو او د هغو په ليليوو کې د مسجدونو جوړول هېڅ په پام کې ندي نيول شوي، ځکه چې تعليمي مسؤولين په تعليمي ماحول کې د مسجدنو له رول او تأثير څخه په وېره کې دي.

د افغانستان په ټولو پوهنتونو او ليليه لېسو کې يو اساسي مسجد هم ندی ودان شوی، خو په مقابل کې په هر پوهنتون او ليسه کې د سينما او تياتر اسانتياوې په نظر کې نيول شوې وې، او په هغو کې د زده کوونکو او ځوانانو لپاره د غربيانو د لويدلي او حيواني فرهنګ فلمونه او ډرامې ښودل کېدلې. همدغه سبب و چې په پوهنتونونو کې د پوهانو، مخترعينو او محققينو پر ځای زمونږ له تعليمي ادارو او پوهنتونونو څخه کمونستان، شعله يان، ستميان، افغان ملتيان او نور د نشنلستي افکارو لرونکې څېرې ټولنې ته راووتلې، چې هېواد ته يې پردي افکار راوارد کړل، او بيا يې د زور او جبر له لارې پر خلکو ور وتپل، چې په نتيجه کې يې د افغانانو ډاډمن ژوند د انقلابونو، کودتاګانو او اضطرابونو په طوفان کې تباه او برباد شو.

په اسلامي نړۍ کې د تعلمي ماحول د لا خرابولو لپاره د نجونو او هلکانو ترمنځ د مخلوط تعليم سلسله رواج کړای شوه چې مسلمانې ټولنې يې له

خطرناکو عواقبو سره مخ کړې. د نجونو او هلکانو ګډه تعلیم په حقیقت کې د غرب د شیطانی دامونو په سلسله کې تر ټولو خطرناک دام وو چې په اسانۍ یې ورکې په ملیونونو پېغلې او ځوانان ښکار کړل. دغه کار نه یوازې دا چې د اسلامي ارزښتونو پر ضد یو اقدام ؤ، بلکې د تعلیم او تربیې په خلاف هم یوه نا اعلان شوې پټه جګړه وه، او دا ځکه چې پېغلې او ځوانان د خپل انسانی فطرت د تقاضا پر اساس د عمر په دغه مرحله کې د (جنس) خوا ته ډېر میلان ښکاروي، او تر بل هر کار یې توجه دې خواته ډېره وي.

له بلې خوا مېډیا، نصاب، بې لارې ادبیات او د مخنیوونکو قوانینو نشتوالی دغه ډول تمایلاتو ته نوره هم هوا ورکوي چې په نتیجه کې یې ځوانان له علم څخه پاتې او په عشق او عاشقیو کې اخته کېږي.

که وغواړو چې په رښتیا سره مو تعلیم د پرمختګ او انکشاف په لور حرکت وکړي، او په دغه ډګر کې افغانان هم د نورې نړۍ د سیالی جوګه شي نو باید تعلیم او تعلیمي ادارې له بې دینۍ (سیکولریزم) او پردي پالنې څخه پاکې شي، او د اسلام د مترقي تمدن پر اساساتو ودرول شي، ځکه چې د قرآن کریم تر ټولو لومړي آیتونه دعلم او قلم په اړه نازل شوي دي، او دا هم ښکاره خبره ده چې اسلامي تمدن چې انساني نړۍ ته کوم مترقي فرهنګ متعارف کړی هېڅ بل دین او مذهب یې ساری نه لري.

# د فرعون پوهنتون

هندوستانی شاعر (اکبر اله آبادي) چې د اقبال په څېر يې غربي تمدن مطالعه کړی او بیا یې لیکنې ورباندې کړې دي په خپل یوه طنزي شعر کې وایي:(فرعون به د خلکو د زامنو د وژلو له امله دومره نه وای بدنام شوی که یې د پوهنتون د جوړولو هنر زده وای).

 د موسی علیه السلام د زمانې ببرته پاتې او مرتجع فرعون له دې وېرې د بني اسرائیلو نارینه بچیان وژل چې د دوئ له منځه د ده هغه دښمن را پیدا نشي چې کاهنانو دی ورڅخه ویرولی وو، او د ده د فرعونیت د زوال خطر یې بللی وو.

خو که هغه زوړ او ساده فرعون پدې پوهېدای چې په ملتونو کې د خپل دښمن ختمول او ملتونه او ولسونه د خپلو فرعوني مصالحو لپاره تسخیرول په چړې له یو مخیزې وژنې پرته په فکري یومخیزې وژنې هم کېدای شي نو هرو مرو به یې د بني اسرائیلو د ځوانانو لپاره یو (فرعوني پوهنتون) جوړ کړی وای، او حتما به یې د پوهنتون له لارې په (سیستماتیك) ډول د بني اسرائیلو له زړونو د(فرعون) او (فرعونیت) په خلاف کرکه او کینه ورکه کړې وه، او د معاصرو فرعوني ماهرینو په څېر به یې د ځوانانو دBrain wash (مغز وینځلو) عملیه تر سره کړی وه. چې پدې کار سره به د هغه وخت بني اسرائیلو هم فرعون د خپل قوم لپاره یو داسې عظیم محسن ګڼلی چې د تل لپاره به یې دوئ د موسی او هارون علیهما السلام له(بنسټ پالنې) خلاص کړي او د فرعوني ډیموکراسۍ په نعمت به یې نازولي وو. خو افسوس چې د هغې زمانې فرعون د اوسنۍ زمانې د فرعون په څېر هوښیار او مکار نه وو.

د وخت په تېرېدلو هر شي ترقي وکړه، د صنعت او ټکنالوژۍ په ذريعه ډېر ګران کارونه آسانه او ناممکن کارونه ممکن شول، او په دې لړ کې (فرعونيت) هم نور په هغې خپلې پخوانۍ ساده ګۍ او شډلتوب کې پاتې نشو، بلکې ترقي يې وکړه او د پخوانيو فرعونانو له ناکاميو او بدناميو يې پوره درس واخيست.

(ماډرن فرعونيت)اوس د ملتونو د ويلې کولو او د هغوئ د قيادتونو او د هغوئ د معنوي او تاريخي ارزښتونو د له منځه وړلو لپاره د ماشومانو او ځوانانو وژلو ته اړتيا نه لري، بلکې د (مکتبونو) او (پوهنتونونو) په جوړولو، د نصابونو په تحميلولو او د فکري او فرهنګي مسخ کولو له لارې کولای شي د ډېرو ملتونو د مستقبل سرنوشت پرته له کومې جګړې او ځاني تلفاتو په خپل لاس کې ونيسي.

د اوسنۍ زماني فرعون (امريکا) هم له اوږدې مودې راهيسې په لسګونو لوی او واړه هېوادونه تسخير کړي دي او هلته يې د خپلې خوښې حاکمان په خلکو ورتپلي دي چې د افغانستان، د سيمې د هېوادونو او د عربي نړۍ اوسني حاکمان تقريبا ټول د همدې ډول فرعوني پوهنتونونو فارغان او زېږنده دي.

د زمانې فرعون (امريکا) د همدغو تپل شوو حاکمانو په لاس تقريباً يونيم مليارد مسلمانان يرغمل کړي دي چې دغه د (فرعوني ډيموکراسۍ) وفادار پيروان چا ته پر (فرعون) او (فرعونيت) د اعتراض حق هم نه ورکوي.

خو هغه خلک چې د (ماډرن فرعونيت) له نصاب او پوهنتون دباندې په مساجدو او ديني مدرسو کې روزل شوي دي د (معاصر فرعونيت) پيروان هغوئ جاهل، ترهګر، بېرته پاتې، ورانکاري، اورپکي او دآزادۍ او تمدن دښمنان بولي،او د هغوئ د نيولو، تړلو او وژلو لپاره يې د (نړيوال ماډرن فرعونيت) پوليس او پوځونه په کار اچولي دي، او هم يې د هغوئ د جسدي تصفيې لپاره خپله ټوله عصري ټکنالوژې په کار اچولې ده.

خو هر څومره چې (معاصر فرعونان) له زوره کار اخلي په هماغه اندازه په مسلمانه نړۍ کې د اسلام سرښندونکي سپاهيان نور هم زياتېږي، او د فکر او تأثير په ساحه کې پراختيا مومي. همدا وجه ده چې (معاصر فرعونيت) د مقاومتونو د دائمي له منځه وړلو لپاره د فکرونو د تسخير په نيت په اسلامي نړۍ کې (امريکايي پوهنتونونه) جوړوي.
دغې خطرناکې وسيلې په تېروسلو کلونو کې د غرب او په ځانګړې ډول د امريکا لپاره په زړه پورې نتيجې لرلې دي. په تېرو سلو کلونو کې امريکا د اسلامي نړۍ په دريو تر ټولو مهمو ښارونو، بېروت، قاهرې او استانبول کې دغه ډول (امريکن يونيورسټۍ) جوړې کړې دي.
د غرب صليبي هېوادونو په سلګونوکلونه په مسلسل ډول د شام، ترکيې او مصر په خلاف صليبي جګړې وکړې خو هېڅ يې ترلاسه نه کړل. خو کله يې چې په دغو هېوادونو کې (امريکايي پوهنتونونه) جوړ کړل او په امريکايي او غربي نصابونو يې د مسلمانانو زامن وروزل، نو په ډېرې آسانۍ يې پرته له کومې جګړې پر دغو سيمو خپل حاکميت ټينګ کړ.
امريکايانو په دغو پوهنتونونو کې په پيل کې د دغو سيمو د نامسلمانو اقليتونو ځوانان وروزل، چې وروسته بيا همدغو فارغانو سياسي حرکتونه، قومي او ژبني احزاب او فکري او ادبي ټولنې جوړې کړې. غربي هېوادونه او دلته د هغوئ سفارتونه د دغو احزابو تر شا ودرېدل، او د سياسي فعاليتونو او کودتاګانو له لارو يې دغه احزاب قدرت ته ورسول، چې وروسته بيا دغو د امريکايي پوهنتونونو او نصابونو فارغانو اسلامي خلافت رنګ کړ او د سيمې هر څه يې د امريکايانو او د هغوئ د ملګرو په خدمت کې کړل.
غرب دغه ډول تپل شوي حاکمان او نظامونه تقريبا پر ټولې اسلامي نړۍ حاکم کړل، او د هغوئ په وسيله يې په اسلامي نړۍ کې د اسلام حاکميت او د شرعي قوانينو نفاذ چې له منځه وړل يې د اسلام د دښمنانو تر ټولو مهم هدف وو له منځه يووړ.

که خبره د خپل هېواد په اړه وکوو نو ګورو چې د افغانستان د خلکو مطلق اکثریت تر ډېره ځایه د (فرعوني پوهنتونونو) له خطرناک تاثیره لیرې او په امان کې پاتې وو، نو ځکه خو دلته د جهاد، مبارزې، مقاومت او د غلامۍ د نه منلو روحیه ورکې ژوندۍ پاتې وه. او د نړۍ د پخوانیو دوو لویو امپراتوریو زوال هم له همدې ځایه پیل شوی وو، او په همدې جذبې او قربانۍ افغانانو خپله ازادي او ملي هویت خوندي وساتلی شو.
اوس چې یو ځل بیا د زمانې د فرعون لښکر پر افغانستان یرغل کړی، او د تسخیرولو لپاره یې هر ډول وسائلو ته لاس اچولی، په دې لړ کې یې په کابل کې هم یو (امریکایي پوهنتون) جوړ کړ، تر څو د افغانستان د راتلونکي لپاره ورکې حاکمان، سیاستمداران، د مېډیا او مطبوعاتو چلوونکي، په غربي سیستم د هېواد د اقتصادي چارو سمبالوونکي او د (سیکولر) سیاسي ګوندونو مؤسسین او پیروان وروزي.
امریکایان په دی پوهېږي چېد دوئ له لوري ټاکل شوي جمهور رئیسان دغه هېواد په یوازې ځان د اوږدې مودې لپاره امریکایانو ته نشي اداره کولی، او امریکایان پدې هم ښه پوهېږي چې په دې هېواد کې هغوئ په زرګونو (کرزیانو)، (اشرف غنیانو)، (جلالیانو)، (احدیانو)، (شهرانیانو) او نورو په خټه افغاني امریکایانو ته ضرورت لري.
د شمال لنډغر او د جنوب بې فرهنګه ملېشې د امریکایانو لپاره د افغانستان د (سیکولر) کولو په لاره کې بې فائدې عناصر دي. امریکایان هغوئ یوازې د ملېشو په ډول تر یو څو ورځو استعمالوي تر څو په افغانستان کې د اریکا په خوښه و جوړ شوي تعلیمي نصاب او د (فرعوني پوهنتون) نوي فارغان صحنې ته راووځي. دغه فارغان چې په امریکایي نصاب، امریکایي مېتود او د امریکایي استاذانو لخوا به روزل شوي وي تر ډېرې مودې د امریکایانو لپاره د اوسنیو غلامانو ښه خلف ثابتېدلی شي.

په کابل کې د دغه ډول امريکايي پوهنتون د جوړېدلو اعلان په ۷/ ۱۱/ ۲۰۰۳م تاريخ په کابل کې د امريکايانو په لاس د جوړې ادارې د لوړو تحصيلاتو وزير (شريف فائز) له راډيوګانو سره په مرکه کې وکړ، او ويې ويل چې دغه امريکايي پوهنتون به په دارالامان کې په اويا جريبه ځمکه جوړېږي چې لاندې ځانګړتياوې به لري:
۱ – د پوهنتون نصاب به امريکايي وي.
۲ – د تدريس ژبه به يې انګريزي وي.
۳ – استاذان به يې ټول امريکايان وي.
د لوړو زده کړو وزير خو لا د توصيې په ډول دآزادۍ دراډيو له لارې داهم وويل چې افغانان دې اصلا په دغه پوهنتون کې د استاذ کېدلوکوښښ نه کوي، ځکه چې د افغانانو علمي سويه د دې پوهنتون وړ نه ده.
۴ – زده کړه به په دغه پوهنتون کې د پيسو په مقابل کې تر سره کېږي.
نو پورتني مواصفات او شرايط که هر يو په بېلابېل ډ ول وڅېړو دې نتيجې ته رسېږو چې امريکايان د افغانستان د دائمي اشغال لپاره يو خطرناک پروګرام لري.
امريکايانو د دغه پوهنتون نصاب ځکه امريکايي انتخاب کړی چې افغاني نصاب د دوئ لپاره فکري غلامان نشي روزلی. افغاني نصاب که څه هم چې يو (سيکولر) ته ورته نصاب دی، خو بيا هم د افغانيت او وطنپالنې آثار ورکې ليدل کېږي.او تجربې هم دا ثابته کړې چې د جهاد او مبارزې يو زيات شمير منسوبين د افغانی پوهنتونونو له انګړ څخه راپورته شوي ول.
امريکايان نه غواړي چې تر دې وروسته دې هم پوهنتونونه د جهاد او مبارزې سنګرونه وګرځي. هغوئ غواړي چې د پوهنتون محصلين دې له جهاد او اسلامپالنې سره خپل روابط د تل لپاره پرې کړي. او دا کار يوازې هغه وخت تر سره کېدلی شي چې نصاب په مکمل ډول له اسلام او افغانيت څخه بې برخې وي.

افغانان له اروپا او اروپايي ژبو ډېر لرې پراته دي، د هغوئ لپاره انګريزي د تدريس ژبه انتخابول د دې معنی لري چې د دې هېواد يو زيات شمير وګړي دې له لوړو زدکړو بې برخې پاتې شي.
خو امريکا د دې لپاره دا کار کوي چې د تدريس د ژبې له لارې خپل منحط او غير اخلاقي فرهنګ افغانانو ته ور صادر کړي، او يوه برخه ډېر کاري او مؤثر افغانان د تل لپاره له خپلو ژبو، ادبياتو، تاريخي ارزښتونو او ملي عنعنو محروم کړي، تر څو يې د تل لپاره په غرب او غربي اهدافو پورې وتړي.
که داسې نه وي نو بيا خو د علم او ټکنالوژۍ د خپرولو تر ټولو غوره او اسانه لار دا ده چې ټول غوره او مفيد معلومات دې د افغانانو خپلو ژبو ته را واړول شي چې په پراخه پيمانه استفاده ورڅخه وشي.
د افغانانو لپاره د تدريس ژبه انګريزي انتخابول په يوه خاصه ډله کې دعلم د انحصار معنی لري چې په هېڅ ډول له بشري او اخلاقی موازينو سره برابره خبره نه ده.
امريکايان د دې پوهنتون استادان د دې لپاره يوازې امريکايان ټاکي چې دافغانستان په ( سيکولر ) کولو کې په افغانانو باندې باور نه لري، ځکه چې افغان استاذ که هر څومره ځان (سيکولر) او بې دينه وښيي خو بيا هم په افغانه مسلمانه ټولنه کې اوسېږي او هېڅکله د اسلام او افغانيت په خلاف ښکاره بغاوت نشي کولی. هغه به په هر حالت کې په يو نه يو ډول مسلمان پاتې کېږي، او پدې لړ کې به هغه محصلينو ته هرو مرو د افغانيت تلقين ورکوي ، چې دا د امريکايانو لپاره يو نامطلوب کار دی.
او که خبره د علمی استعداد وي نو بيا خو په سلګونو داسې ماهر افغاني استاذان شته چې خپله د امريکا او اروپا پوهنتونونه ورباندې ودان دي.
امريکايان غواړي چې پدې پوهنتون کې دې افغاني زلميان په يوه هراړخيز امريکايي محيط کې وروزل شي. او که داسې نشي نو بيا به امريکايانو ته

هم دروسانو په څېر د هېواد په تعليمي مؤسسو کې مشکلات پيداشوي وي.
په تېرو دريو لسيزو کې د جګړو او بهرنيو يرغلونو له امله د افغانانو اقتصاد ډېر کمزوری شوی، خلک د يوې مړۍ ډوډۍ د پيدا کولو لپاره د هېواد پرېښودلو ته اړ شوي دي، او د همدې اقتصادي مشکلاتو له امله تقريباً ۸۰ فيصده خلکو زده کړې ته شاکړې ده. خو په دغه ډول حالاتو کې هم امريکايان غواړي افغانانو ته تعليم د ډالرو په مقابل کې عرضه کړي.
د دې کار هدف دا دی چې يوازې هغه خلك دې پدې پوهنتون کې زده کړه کوي چې ډالر ولري، او يا هم له يوې خوا له امريکايانو د خدمت او جاسوسۍ په بدل کې ډالر واخلي، او له بل لوري يې بېرته همدوئ ته د تعليم په بدل کې ورکړي.
حقيقت دا دی چې امريکايان او غربيان هېڅکله نه غواړي چې افغانان دې د علم او پرمختګ پر لاره روان شي. بلکې هغوئ غواړي چې د افغانستان ځوانان دې د دوئ د غلامی په فکري جال کې ښکار شي. که داسې نه وي نو بيا ولې په افغانستان کې موجودو پوهنتونو سره لاژمه مرسته نه کوي؟ هلته خو که محصلين د خپلو مشروعو حقوقو د ترلاسه کولو لپاره مظاهرې وکړې، د امريکايي ادارې د پوليسو او مليشو له لوري په ټوپکو ويشتل کېږي.
که امريکايان او غربيان په رښتيا سره غواړي چې د لوړو زده کړو ډګر کې له افغانانو سره مرسته وکړي نو د کابل، ننګرهار، مزار، هرات او خوست او نورو پوهنتونونو سره دې مالي، تعليمي او لوژستيکي مرستې وکړي، او هلته دې معاصر تعليمي وسائل برابر کړي. خو امريکايان دا هر څه د دې لپاره نه کوي چې هلته افغانان د افغانانو لخوا په افغاني روحيه د افغانستان د مصالحو لپاره روزل کېږي او امريکا ته يې هېڅ ګټه نه رسېږي، بلکې د افغانانو په خود کفا کېدلو کې د امريکايانو سراسر تاوان دی. امريکايان او غربيان غواړي افغانان تل د ځانته محتاج وساتي.

کېدای شي ځیني تنګ نظره او عاقبت نا اندیشه خلک داسې و انګیري چې مونږ به خلک له پوهنتون څخه زړه بدي کوو، او یا به له پوهنتون او لوړوزده کړو سره مخالفت لرو، خو حقیقت دا دی چې مونږ له لوړو او مسلکي زده کړو سره هېڅ مخالفت نه لرو، بلکې پوهنتون او عالي تحصیلات د خپل هېواد او خپلې ټولنې د ډېرو رنځونو علاج بولو. او پدې باور یو چې تر څو په افغانستان کې لوړې زده کړې عامې نشي تر هغه به افغانستان او افغانان دژوند په هر ډګر کې د بل چا محتاج وي.

هغه څه چې موږ خپل ملت او ځوانان ورڅخه په امان ساتل غواړو هغه د غرب په مادي او بې لارې فرهنګ کې منحل کېدل دي. صنعت او پوهه د بشریت مشترک میراث دی. خو دین، فرهنګ، ملي او معنوي ارزښتونه بیا د هر ملت بیل وي او د همدغو ملي، معنوي او تاریخي ارزښتونو ساتل او پالل د ملتونو بقا تضمینوي، او د پردیو په مقابل کې یې جهاد او مقاومت ته هڅوي.

دا چې امریکایانو او د نړۍ نورو کفارو ته زموږ د ملت مېړانه، جهاد، آزادي ساتنه او اسلامپالنه ورمعلومه ده نو غواړي چې د دغه ډول (فرعوني پوهنتونونو) او (فرهنګی مؤسسو) له لارې زمونږ ملت له خپلې معنوي وسلې څخه بې برخې کړي، او بیا یې د غلامانو په څېر د خپل ځان لپاره مسخر کړي. خو افغانان به انشاء الله هېڅکله دغې شومې او کرغېړنې توطیې ته د بریالتوب او تطبیق چانس ورنکړي. د یادولو ده چې ما په خپل بل کتاب (فکري پوهنه) کې د کابل د امریکایي پوهنتون په اړه تفصیلي بحث لیکلی چې د دې خطرناکې فتنې ټول اړخونه ورکې روښانه شوي دي، او لوستل یې د هر بادرده افغان لپاره ضروري دي.

## فرهنګیان که فرنګیان؟

یرغلګرو کفري دولتونو چې هر وخت پر کوم اسلامي هېواد د هغه د نیولو په هځه یرغل کړی نو له پوځي یرغل سره سم یې هلته د ذهنونو د تسخیرولو او د مقاومت د له منځه وړلو لپاره هر اړخیز فرهنګي یرغل هم کړی دی. او هڅه یې کړې چې د هغه ولس اصیل فرهنګ، دیني شعائر، اخلاقي او اجتماعي ارزښتونه او ملي عنعنې مسخه کړي، او یا یې له منځه یوسي، او پر ځای یې یو بل پردی او وارد شوی فرهنګ د خلکو په ژوند کې حاکم کړي، تر څو دغه وارد شوی پردی فرهنګ د نوي نسل ذهنونه د غلامۍ منلو ته برابر کړي.
یرغلګرو تل هڅه کړې چې خپل استعماري فرهنګ، نظریات او مفاهیم خلکو ته د ازادۍ، دیموکراسۍ، تمدن، مدني ټولنې، موډ، فیشن او داسې نورو اصطلاحاتو تر نامه لاندې ور تلقین کړي، او اشغال شوي مسلمان ملت خپل فرهنګ د ارتجاع، بنسټ پالنې، تنګ نظرۍ او نورو مختلفو نومونو و نوموي او بیا یې له منځه یوسي.
حقیقت دا دی چې د هر ملت د پایښت، ازادۍ، مقاومت او د سرلوړیې د خوندیتوب اسباب او عوامل د هغه ملت په فرهنګ او معنوي ارزښتونو کې نغښتې وي. او هر ولس چې خپل فرهنګ او معنوي ارزښتونه له لاسه ورکړي هغه خپل وجود هم له لاسه ورکوي. هغه بیا نه له نورو ملتونو سره سیالي کولای شي، او نه هم په نورو کې له منحل کېدلو څخه ځان ژغورلای شي.
انګریزانو چې کله هند ونیو، هلته یې د یو داسې نسل د رامنځته کولو لپاره د فرهنګي تغییر لاره غوره کړه چې په غلامي قانع وي، له خپلې ماضي سره هېڅ رابطه ونه لري، او د ژوند په هره چاره کې ورته انګریز د

غوره مثال حيثيت ولري. انګرېز حکومت دغه چاره خپل تر ټولو يوه ځيرک او مکار شخصيت (لارډ ميکالي) ته ور وسپارله. (لارډ ميکالي) په مسلمان هند کې د داسې يوه غلام نسل د روزلو لپاره لاره هواره کړه چې تر هر څه ورته د غرب پيروي مهمه وه. هغه به ويل: ((موږ بايد د هند په نيمه وچه کې داسې نسل وروزو چې ژبه، وينه او شکل يې هندي وي، خو عقل، فکر او فرهنګ يې د انګريز وي)).

فرانسويانو هم د خپل تسلط په وخت کې په الجزائر کې همدغه ډول يو نسل وروزه چې تر اوسه هلته د فرانسوي فکر او فرهنګ پالنه او ساتنه کوي.

روسانو خو د منځنۍ اسيا په هېوادونو کې يو داسې فرهنګي تحول راوستلی وو چې د هغې سيمي له خلکو څخه يې خپل هويت هېر کړی وو. د هغوئ ژبې، ادبيات، عنعنې، رواجونه لباس او د ژوند هر څه يې روسي شوي وو.

دا چې د تاريخ په اوږدو کې په افغانستان کې د يرغلګرو پښې نه ټينګېدې، او هر ځل له دې خاورې سرماتي او شرميدلي وتل نو يرغلګر هم د افغانانو د دغې مېړانې او معنوي قوت د سرچيني د ميندلو په هڅو کې دې نتيجې ته ورسېدل چې تر څو يې چې افغانان له خپل اصيل اسلامي او افغاني فرهنګ څخه منحرف کړي او د غرب په بې لارې او غير فطري فرهنګ کې منحل کړي نه وي، نو هېڅکله به د دې خاورې په دايمي اشغال کې بريالي نشي.

هماغه وو چې د امان الله خان له وخته راپدې خوا يې پدې مسلمان ولس کې د غرب د فرهنګ د متعارف کولو هڅې پيل کړې، او يو شمير افغاني ځوانان يې په غربي ټولنوکې وروزل او بيا يې له بېلابېلو وسيلو څخه په استفادې هغوئ د افغاني ټولنې قيادت ته ورسول چې هغوئ بيا له بېلابېلو لارو په افغاني ټولنه کې د غرب فرهنګ خپور کړ.

په افغانستان کې د هېواد تعلیمي موسسې هم د پردیو په نصابونو او د هغوئ تر څارنې لاندې چلېدلې، د مثال په ډول:
د استقلال لیسه د فرانسویانو لخوا، د اماني لیسه د جرمنیانو لخوا، د کابل پولیتخنیک دروسانو لخوا، د کابل پوهنتون د امریکایانو لخوا حمایه کېدل، او د همدغو هېوادونو ژبې ورکې تدریسېدلې، او فرهنګ یې ورکې افغانانو ته تلقین کېده.
کله چې د نوي نسل غرب پلوي مشران د چارو د واګیو او د صلاحیتونو خاوندان شول، نو د هر ډول غربي فرهنګ او بې لاریتوب پر مخ یې د هېواد دروازې په پراخ ډول پرانیستلې، او د بې دینۍ، فحشاء او بربنډتوب لپاره یې تبلیغات وکړل، چې په نتیجه کې یې د لکونو افغاني نجونو او مېرمنو له سر ه پړوني وغورځول. خو چې په دې یې هم بسنه ونشوه، نو نجونې او مېرمنې یې په مکتبونو او دولتي دوائرو کې د (موډ) او (فیشن) په نامه د کمیسونو لنډولو او د پرتوګونو غورځولو ته تشویق کړې چې هره ورځ به په ښارونو کې په لسګونو زره افغاني خویندې او میندې د اروپایانو په څېر بې پردې او بې پرتوګه ګرځېدلې، او دا هر څه د تمدن او ترقۍ تر عنوان لاندې تر سره کېدل.
کافرو یرغلګرو د خپلو پرله پسې یرغلونو او عسکري اشغال په زور له مسلمانو ښځو حیا او پرده لیرې نه کړای شوه، خو دغو افغانانو چې د غرب په فرهنګ لوی شوي او رنګ شوي وو جامې هم ورڅخه و ایستلې.
په حقیقت کې د افغاني ټولنې په بې لارې کولو کې داخلي (فرهنګیانو) تر خارجي (فرنګیانو) خطرناک نقش ولوباوه. دوئ د هېواد نشرات او مطبوعات د غربي فرهنګ د خپرولو لپاره په یومخیز ډول وقف کړي ول.
دوئ د هېواد په ښارونو کې د ځوانانو داسې یو نسل وروزه چې د غرب لوېدلی او بې معنویته فرهنګ ورته تر اسلام او افغاني فرهنګي ارزښتونو ډېر غوره ښکارېده.

دا ځل چې امريکا او انګريزانو د نورو غربيانو په ملتيا زموږ پر هېواد او دين يو ځل بيا پوځي يرغل وکړ، د هېواد شرعي حاکميت يې له منځه يووړ، په زرګونو بې ګناه انسانان يې ووژل، ښځې يې کونډې او ماشومان يې يتيمان کړل، او د افغانانو د سياسي او فرهنګي سرنوشت واګي يې په خپل لاس کې واخيستل، نو بيا يې هم له ځان سره داسې غرب پلوي افغانان ملګري کړل چې د دوئ ټول جنايات توجيه کړي، او دغه استعماري يرغل افغانانو ته د ازادۍ، ډيموکراسۍ، مدنيت او ترقۍ په نومونو معرفي کړي.
امريکا د دې هدف لپاره پخپله هم خورا ډېر وسايل په کار واچول، او د اطلاعاتو او فرهنګ د وزارت چارې يې هم داسې افغانانو ته ور وسپارلې چې په پوره اخلاص د غرب د سياسي، اقتصادي او فرهنګي اهدافو لپاره کار کوي.
دغو غرب پلوو د خپلو بادارانو د فرهنګ د متعارف کولو لپاره نوې جريدې، اخبارونه، مجلې، فرهنګي ټولنې، راډيوګانې او کيبلي تلويزوني چينلونه پرانيستل. دوئ شپه او ورځ په دې هڅه کې دي چې څنګه امريکايي او انګريزي يرغلګر افغانانو ته د رحمت د ملائکو په حيث معرفي کړي.
غرب پخپله هم زموږ د اصلي اسلامي فرهنګ د مسخه کولو لپاره خپلو راډيويي پروګروامونو کې څو برابره زياتوالی راووست، د مثال په ډول د امريکا غږ، بي بي سي، د ازادۍ راډيو، د المان غږ راډيو، د ماسکو راډيو او نورې راډيوګانې چې پخوا به يې په۲۴ساعتونو کې د افغانانو لپاره يوازې يو يا دوه ساعته خپرونې کولې اوس دا ټولې په مجموعي شکل په يوه شپه او ورځ کې په سلګونه ساعته خپرونې لري او ټولې د بېلابېلو پروګرامونو له لارې د افغانانو د فرهنګ د بدلولو لپاره کار کوي.
بي بي سي، امريکاغږ، المان غږ او د ازادۍ راډيوګانو په اوسني وخت کې د افغانانو تر ټولو غښتلي او مشهور ليکوالان، ژورنالستان، نوي

ادیبان او فرهنګیان په کرایه نیولي دي. او حتی ځیني هغه لیکوالان یې هم د خپل ځان لپاره مسخر کړي چې یو وخت یې په جهادي خپرونو او فرهنګ کې لاس او شهرت درلود.
تر دې ورتېر غرب یو ځل بیا د راتلونکي نسل د روزلو لپاره زموږ د هېواد تر ټولو مهم تعلیمي مراکز پخپل کنټرول کې راوستل. له تعلیمي نصاب څخه یې ټول هغه مفردات و ویستل چې په جهاد، اسلام، اسلامي تاریخ، ازادۍ او له کفارو سره په دښمني پورې یې اړه لرله. او دا هر څه یې د داسې چا په لاس له تعلیمي نصابه وویستل چې یو وخت یې په خپله د اسلامي فرهنګي مرکزونو د چلولو افتخار هم درلود، خو اوس د ډالرو سېلاب ته ټینګ نه شول او په پوره خسّت او بې شرمۍ د امریکایي مشاورینو تر څارنې لاندې د اشغال د حکومت لپاره د فرهنګي او تعلیمي ملېشو نقش ادا کوي.
امریکایانو د افغانستان تر اشغالولو وروسته دلته د تعلیم او تربیې په وزارت کې هغه نصاب د تطبیق لپاره راوړ چې د امریکا د(نبراسکا) د پوهنتون لخوا د افغانستان لپاره جوړ شوی وو.
المان یو ځل بیا (اماني لیسه) د دونیم میلیونو ډالرو په مصرف په الماني طریقه فعال کړه، ځکه چې المانیان پوهېږي چې له اماني لیسې څخه چې ځوک فارغېږي حتما به یوه منصب ته رسېږي، او بیا به د دوئ په درد خوري. فرانسې هم بیا د استقلال د لیسې چارې پخپل لاس کې ونیوې.
د عالي تحصیلاتو په لړ کې یرغلګرو امریکایانو په کابل کې د (امریکایي پوهنتون) پروژه عملي کړه چې د بېروت، قاهرې او د استانبول د (امریکایي پوهنتونونو) په څېر به د غرب پلوو حکومتونو لپاره کدرونه تیاروي.
غرب چې د افغانانو په خلاف په فکري او فرهنګي ډګرونوکې دکار کولو لپاره څومره غربیان شوي افغانان له ځانه سره راوستلي دي له هغوئ څخه زموږ څه ګیله نشته، ځکه چې هغوئ پرون هم په ښکاره د دښمن په صف

کې ولاړ خلك ول او افغان ولس هغوئ ته د پردیو په سترکه کتل، او نن هم هغوئ د يرغلگرو په صف کې ولاړ دي او له افغانانو سره په هر اړخيزه جگړه کې دي. خو د افسوس خبره دا ده چې يوه ډله نور (فرهنگيان) چې د کمونيزم په خلاف د جهاد په کلونو کې به يې ځانونو ته د اسلامي او افغاني فرهنگ وارثان ويل، او د جهاد او مهاجرينو په چاپيريال کې به يې د ځينو اسلامي او عربي مؤسسو په مالي مرستو ځانونه هم د ښو او تحريکي مسلمانانو په حيث مطرح کړي وو، او اسلامي نشرات به يې هم درلودل، خو اوس هغوئ هم د (فرنگي) (فرهنگيانو) په څېر د يرغلگرو په خدمت کې پراته دي او د جهاد او مجاهدينو په خلاف د تشکيك او منفي تبليغاتو پروژه يې له ير غلگرو په ټيکه اخيستې ده، او په ډېرې نامردۍ دوئ هم په دې اشغال شوي هېواد کې له يرغلگرو سره يو ځای په کار کولو د غرب د (کافرې ډيموکراسۍ) مخ ورسپينوي، او د دې خدمت په بدل کې په لاسته ورورو ډالرو او نورو امتيازاتو په خپل گومان خپله دنيا او هم خپل آخرت (ښايسته؟؟؟!) کوي.

حقيقت دا دی چې دغه ډول (فرهنگيان) د اشغال په تعليمي اداره کې په خپل شراکت هم خپل ځان تېرباسي، او هم په خپل دې کار د ولس د تېروېستلو په کار کې اخته دي. او د اشغال په خلاف د روان برحق جهاد د لارويانو په خلاف يې د (تشکيك) پوخ سنگر سمبال کړی دی چې فايده يې په يقيني ډول د اشغالگرو غربيانو په ځولۍ کې ورلوېږي. ای کاش چې دغه خلك رښتيا هم د (اولوياتو) په هغې (فقهې) چې دوئ يې دعوی لري پوه شي او عمل ورباندې وکړي، نو په هغه وخت کې به يې خپل قدرمن استعدادونه رښتيا هم د (اسلامي فکر) د خدمت په لار کې کارولي وي.

خو د امريکايانو په لاس د جوړ شوي حکومت تر سيورې لاندې په کار کولو او د دې حکومت د تعليمي پروژې په چلولو دغه خلك په حقيقت کې تر (سيکولرو فرهنگيانو) هم ډېر بد دي، ځکه چې دوئ اوس هم خپله مفکوره خلکو ته د اسلام په حيث وړاندې کوي، خو د کافرو اشغالگرو

غربیانو او د هغوئ د افغانو مرتدو ملګرو په خلاف د (فرض جهاد) په اړه یې نه یوازې دا چې خپل شرعي مسؤولیت ته شا کړې ده بلکه د ښارونو متدینو ځوانانو ته یې هم شکونه وراچولي دي. دغه ډول خلك یا په زړه خیرن دي، او یا یې د بصیرت سترګې دومره کمزوې شوې دي چې د ازادۍ او غلامۍ ترمنځ ښکاره توپیرونه هم نه ویني.

دغو فرهنګیانو یا لا تر اوسه پورې د غرب مکاري نه ده درک کړې، او یا دوئ هم د بد نیت خاوندان دي چې د (په هر څه کې د اعتدال) تر شعار لاندې د اسلام (ثوابت) هم تر پښو لاندې کوي، او په آګاهانه ډول د دښمن په صف کې ولاړ دي. که داسې نه وي نو د صلیبي یرغلګرو تر سیوري لاندې اسلامي فرهنګ ته خدمت څه معنی لري؟

په عمومي ډول د تاریخي تجربو په نظر کې نیولو سره دا په زغرده ویلی شو چې (فرهنګي) (فرنګیان) د غرب لپاره د مسلمانو ولسونو په تسخیرولو کې تر (جنګي) (فرنګیانو) ډېر خطرناک وي، او دا ځکه چې هغوئ د یوه ملت افراد وژني، خو دوئ د هغه ملت دین، عقیده، ارزښتونه او معنوي پاېښت له منځه وړي. نو پر همدې اساس دوئ هم مجرمان دي، او باید په هماغه روحیه تعامل ورسره وشي چې له جنګي یرغلګرو سره کېږي.

## جهاد که جګړه؟

د امریکا په مشرۍ د صلیبي پوځي ائتلاف لښکرو په تېرو لسو کلونو د خپلو ټولو حربي وسائلو او عصري تکنالوژۍ په کارولو نه ټول افغانستان ونیولی شو، او نه یې د لسګونو ملیارده ډالرو په مصرفولو په افغانستان کې د خپل ځان په ګټه کوم واقعي تحول راوستلی شو. بلکې ددې هر څه په خلاف د دې یرغلګر تړون صلیبي لښکرو خپل ډېر څه له لاسه ورکړل چې تر هر څه مهم یې د جګړې د ګټلو روحیه ده.
اوس خبره دې ځای ته راورسېده چې د صلیبي تړون ټول مشران نور له دې جګړې ستومانه ښکاري، او په ښکاره وایې چې د دې جګړې ګټل ورته یو ناممکن کار دی. خو دا چې غرب نه غواړي له افغانستان څخه دې د یوه ماتې خوړلي ځواك په حیث ووځي نو ځکه یې د پوځي جګړې تر څنګ یوه هر اړخیزه سایکالوژیکه (نفسیاتي) جګړه هم د افغانانو په خلاف روانه کړې ده چې تر ټولو مهم عنصر یې له جهاد څخه د افغانانو منصرف کول دي. او د دې هدف د تر لاسه کولو لپاره یې دې تبلیغاتو ته زور ورکړی چې افغانان نور له جګړې ستړي شوي دي او نور باید له دښمن سره د سولې پر لارو چارو غور وکړي.
د افغانانو روان جهاد ته که د جګړې په سترګه وکتل شي نو رینښتیا هم باید ورنه ستړي شوي وي، ځکه چې تر دریو لسیزو اوږده شوه، هېواد کنډواله شو، او جګړې په میلیونونو ککرۍ وخوړې.
خو که دا جګړه یو (في سبیل الله) جهاد وي او افغانانو د الله د دین د لوړولو، د شریعت د نافذولو او د اسلامي نظام د قائمولو لپاره یې د یوه ضرورت او شرعي عبادت په نیت روانه کړې وي نو بیا خو دغه اهداف تر اوسه یو هم ندي حاصل شوي. نه د الله دین حاکم شوی، نه شریعت نافذ

شوی، نه اسلامي نظام جوړ شوی، او نه هم وطن آزاد شوی دی. نو افغانان به ولې له خپل داسې شرعي في سبيل الله جهاد او عبادت څخه د سترګيا اظهار کوي چې په اسلام کې ورته (ذروة سنام الاسلام) د اسلام تر ټولو لوړ او غوره عبادت ويل شوی دی.

دا سمه ده چې يوه برخه پروني تنظيمي جهاديان منحرف شول، ايمان يې په ډالرو خرڅ کړ، د اسلامي نظام د جوړولو پر ځای د غرب د صليب تر سوري لاندې د غرب له ګوډاګيو سره د ډيموکراسۍ او سيکولريزم په صف کې ودريدل. خو دا هر څه له جهاد څخه د ستومانۍ په نتيجه کې نه ول، بلکې دا ټول د دغې ډلې دروغجنو (جهاديانو) د انحراف، ځان غوښتنې او قدرت ته د رسېدلو لپاره له کفارو سره د سازشونو له امله منځته راغلل.

دغو خلکو په خپل دې انحراف هم جهاد ته او هم ولس او هېواد ته ښه ډېر تاوان ور ورساوه،خو الله تعالی د دوئ تر انحراف وروسته داسې سپېڅلي، باعزمه، هوښيار او مستعد ځوانان د جهاد او مبارزې صف ته راوستل چې د سرونو په بې دريغه قربانيو يې د صليبې ترون لښکرو ته ماتې ورکړه.

که پروني منحرف شوي (جهاديان) يوازې له روسانو سره د جګړې خبره د ځان لپاره وياړ بولي پداسې حال کې چې په آخر کې بېرته د روسانو او امريکايانو غېږې ته ورولويدل، نو نننيو مخلصو مجاهدينو د تاريخ تر ټولو لوی پوځي ترون ته چې تقريباً د نړۍ ټول هېوادونه ورکې په يوه او بل شکل شامل دي ماتې ورکړه.

دا هر څه پدې دلالت کوي چې افغانان يوازې جنګيالي ندي، بلکې هغوئ د خپل مقدس هدف لپاره چې د الله تعالی د دين لوړول او د اسلامي نظام جوړول دي د جهاد د عبادت ستره فريضه ادا کوي، او هېڅکله هم پدې لاره کې د ستومانۍ اظهار نه کوي.

دا چې جهاد اوس په نړۍ کې په يو مستقيم مسير د خپل اصلي هدف په لوري روان او يو نړيوال شکل يې غوره کړی دی، او د نړۍ په هره سيمه کې يې د کفارو مصالح ته ضربې لاندې نيولي دي، نو ځکه خو غرب اوس په دغه ډول تبليغاتو د مسلمانانو د ديني او جهادي احساساتو د سړولو کوښښ کوي.

غربيانو ته دا حقيقت ښه ورمعلوم دی چې افغانان په شلمي او يوويشتمې پيړۍ کې د اسلامي امت لپاره د جهاد د(استاذۍ) وياړ او وړتيا لري، که دوئ افغانان له جهاد څخه منحرف کړي نو د نورو ملتونو حوصلي به په خپله لوېږي.

د غرب د دغو تبليغاتو اصلي مقصد دا دی چې نور دې افغانان د يرغلګرو په خلاف جهاد نه کوي. د امريکا او صليبيانو واکمني دې پرځان ومني، د غلامۍ سرنوشت ته دې تسليم شي، له دين، غيرت، افغاني عزت، سرلوړۍ او خپلواکۍ دې تېر شي، د دوه ميليونو شهيدانو قربانۍ او ويني دې هېرې کړي، د اسلامي نظام د قائمولو فکر دي له ذهن څخه وباسي، افغانې مسلمانې خويندې، ميندې او تورسرې دې نور د صليبي لنډغرو لنډغرتوب ته پرېږدي، او پرې دې ږدي چې غربيان د ښځو د حقوقو او د آزادۍ په نامه افغانه ميرمن هم د غرب د ښځوپه څېر د نارينه ؤ د هوسونو وسيله وګرځي.

د دغه ډول تبليغاتو په کولو سره غربيان غواړي تر څو ځوانان دې وسله پر زمکه کېږدي، د آزادۍ او سرلوړۍ د ژوند تصور دې له مغزو وباسي، صليبيانو او دهغوئ غلامانو ته دې اجازه ورکړي چې افغاني تنکي زلميان او پيغلوټې د ډېموکراسۍ تر شعار لاندې د فحشاو لنډغرتوب په محيط کې د سيکولريزم په نصاب او کتاب وروزل شي، او بالآخره دغه دغازيانو ټاټوبی دې د غربيانو د سياسي، اقتصادي،اجتماعي ګټو د تحقق لپاره د چرګانو په يوه بې عوضه مفت ډګر بدل شي.که داسې نه وي نو بيا ولې خلکو ته د جهاد د پرېښودلو تلقين ورکوي؟ افغانان خو جګړه

له شوقه نه کوي، هغوئ خو په اقتصادي لحاظ د دغې جګړې توان هم نه لري، بلکې افغانان له مجبورۍ ورځې په دغې تپل شوې جګړې اخته دي.
پر افغانانو خو تېرى شوى، آزادي او خپلواکي يې سلب شوې، خاوره يې د پرديو تر اشغال لاندې ده، ټول حقوق يې تر پښنو لاندې شوي، او انسانيت ته يې په سپکه کتل شوي دي. دا خو د هغوئ لپاره د خپل له لاسه تللي عزت د بېرته ګټلو جګړه ده، نو ځکه خو خامخا دغې جګړې ته دوام ورکوي، او په دې لاره کې د شهادت مرګ ته د غلامۍ پر ژوند ترجيح ورکوي.
تاريخ هم دا ښودلې چې افغانان د يوه ملت په حيث د دښمن په مقابل کې له خپل جهاده نه ستړي کېږي. د جنګيز، ګرګين، انګريز، روسانو او اوس د غرب په مقابل کې د دوئ جهاد او استقامت د دې مدعا ژوندي مثالونه دي.
جهاد د يوه طبيعي ضرورت ترڅنګ يوه داسې الهي فريضه ده چې انبياؤ عيهم السلام او د هغوئ امتونو کړې دى. جهاد کوم مادي مصلحت نه دى چې د هغه په ترلاسه کېدلو دې ساقط شي. جهاد د ملتونو د بقا او دهغو دآزادۍ د استمرار ضامن دى. جهاد جنت او د هغه نعمتونو ته د وررسېدلو تر ټولو لنډه لاره ده.
جهاد د دين او ناموس د ساتلو تر ټولو غوره وسيله ده، او افغانان تر هر چا زيات په اسلام، آزادۍ، عفت او ناموس مين خلک دي. افغانان وطن پرېږدي خو دين نه پرېږدي. افغانان له حکومت څخه تېرېږي خو له خپلو معتقداتو نه تېرېږي. سر ورکوي خو ايمان نه ورکوي. او تاريخ هم د دې ملت په اړه د همدې مدعا شواهد وړاندې کوي. نو بياڅنګه کېدى شي چې دوئ دې د دې مقدسو اهدافو د تحقيق په لاره کې له جهاده ستومانه شي؟
خو دا خبره رښتيا ده چې افغانان نور له هغو جګړو ستړي شوي دي چې د اسلام د حاکميت لپاره نه وي. په افغانستان کې بې هدفه جګړې، د

نشنلزم پربنسټ ولاړ رقابتونه، تنظیمي جنګونه، د قدرت د لیونیو ترمنځ د وینو تویول او د ولسونو د جنګولو لپاره جنایتکاره باندونه او ډلې ټپلې جوړول ربښتیا هم نور د افغانانو لپاره د منلو وړندي.
د درې لسیزو مسلسلو جګړو او سیاسي جریانونو باید نور افغانان هوښیار کړي وي. نور باید په هرې هغې جګړې کې له برخې اخیستلو ځان وساتي چې د اسلامي نظام د قائمولو، د الله تعالی د دین د حاکمولو او د یرغلګرو د شړلو لپاره نه وي.
یوې بلې غلط فهمۍ ته هم باید متوجه و اوسو، او هغه دا چې ځینې خلک وایې چې د افغانانو په خپل منځ کې جګړه د غندلو وړ ده. دا خبره پدې ډول سمه نه ده. صحیح خبره دا ده چې د مسلمانانو تر منځ جګړه غلطه ده. د مسلمانو او کفارو تر منځ جګړه یوه فریضه او مطلوب کار دی، که څه هم چې د واړه طرفه یې په یوه قوم پورې هم اړه ولري.
زموږ په پروني جهاد کې مقابل لوری کمونستان هم افغانان ول، خو موږ یې په خلاف جنګېدو، او د هغه جنګ په جواز کې مو هېڅ شک نه درلود. نن هم د غربیانو ملګري چې په افغانستان کې د صلیبي غرب د اهدافو د تحقیق لپاره کار کوي، د اسلام پر ځای د ډیموکراسۍحاکمول غواړي، او د خپل ملت په خلاف د یرغلګرو په صف کې ولاړ دي افغانان دي چې په خلاف یې جهاد کوو او د دې جهاد په روا والي کې هم هېڅ شک نه لرو.
پیغمبر صلي الله علیه وسلم هم تر آخره پورې د خپل هغه قوم په خلاف جنګېدلی چې دین یې ورسره نه مانه. په قوم کې له هغوئ سره یووالي رسول الله صلی الله علیه وسلّم له جهاده نه دی منع کړی، ځکه چې د مسلمانانو قوم او ملت د هغوئ دین او عقیده ده، نه د هغوئ وینه، خټه او یا هم مشترک ټاټوبی. او که داسي وګڼو نو بیا خو - نعوذبالله – د پیغمبرانو علیهم السلام په جهادونو او قربانیو د (ناروا والي) حکم کېږي، ځکه چې هغوئ هم د خپلو قومو د کفارو په خلاف جګړې او مبارزې کړې دي.

د غربي یرغلګرو په خلاف افغانان په مخ کې درې لارې لري، یوه دا چې د دښمن په صف ورګډ شي او له هغه سره د ډیموکراسۍ پر اساس په ایتلافي حکومت او دیموکراتیکه پروسه کې کار وکړي، چې دښمن هم همدا ورڅخه غواړي.

دوهمه لاره دا ده چې ټوپک دې کېږدي او کرار چوپه خوله دې کښیني، او پرې دې ږدي چې سرنوشت یې د پردیو لخوا و ټاکل شي.

او دریمه لار د هغوئ له اشغال څخه د خلاصون په مقصد فرض جهاد ته ادامه ورکول دي چې یوازې له همدې لارې آزادي ګټل کېداي او اسلامي نظام منځته راتلای شي او بس. نو طبیعي او معقوله خبره هم همدا ده چې افغانان خپل جهاد ته ادامه ورکړي، او په خاص ډول پدې وضعیت کې چې جهاد یې د فتحې پر درشل ولاړ دی.

افغانان باید د دښمن هغو تبلیغاتو ته هېڅ توجه ونه کړي چې وایې: افغانان نور له جګړې ستومانه شوي دي. پرون روسانو هم تر تښتېدلو مخکې همدغه ډول تبلیغات کول، او کمونست رژیم مجاهدینو ته د سولې وړاندیزونه کول. خو که پرون مجاهدینو ته (اشرار) ویل کېدل نو هم هغوئ خپل جهاد کاوه، او که نن ورته (ترهګر) او تروورستان ویل کېږي نو هم دوئ په خپل جهاد ته دوام ورکوي، ځکه چې جهاد دوه حتمي پایلې لري چې یوه یې (فتحه) او بله یې (شهادت) ده، او په دواړو کې یې خیر دی.

# عسکرجانه تاته وایم !

عسکرجانه! زه ستا وروریم او غواړم په مینه مینه دې په یو څو خبرو وپوهوم. عسکرجانه! زه ستا هغه ورو یم چې په دې هېواد کې مې د روسانو یرغل له پیله تر پایه ولید، او د هغوئ تر څنګ د درېدلې افغاني اردو انجام مې هم ولید. د دې وطن ټولې ملېشې او تنظیمي ټوپکیان مې هم ولیدل چې څنګه یې د خپل ملت په خلاف د دښمنانو د اهدافو د ترسره کولو لپاره جګړې وکړې.

عسکرجانه! زه نه غواړم چې تر دې ترخو تجربو وروسته دې بیا هم ته هماغه څه وکړې چې ستا ولس پرې کړېږي، خو زما او ستا دواړو کافر دښمن پرې خوشحالېږي.

عسکرجانه! غواړم په مینه او مهربانۍ درسره د زړه حال شریک کړم! زه او ته خو دوه وروڼه یو، خو افسوس چې ته رانه کفارو په خپله غېږ کې نیولی یې، خپل ټوپک یې تا ته لاس کې درکړی چې ما پرې وولې. او پدې ګناه مې و ولې چې ولې د کفارو په خلاف جنګېږم، او ولې هغوئ ته سر نه ټیټوم؟

عسکرجانه! زه او ته خو دواړه د یوې مور زامن وو، ما او تا ته خو مورجانې په یوه ورځ سیپاره لاس کې راکړې وه او د جومات ملا صاحب ته یې لېږلي وو چې دین زده کړو. ستا به هم یادېږي چې دواړه به یو ځای د ژمي په یخنۍ کې سهار وختي جومات ته تللو او د ملاصاحب مخې ته به کښیناستو، خو دا چې ما سیپاره وویله نو (طالب) شوم، اوتا تر زلمیتوبه خلاصه نه کړه! تا نه یوازې دا چې درس ونه وایه بلکې بل هېڅ کسب او کمال دې هم زده نکړ، آخر له مجبورۍ ورځې لاړې د کافر په لاس په جوړې شوې اردو کې عسکرجان شوې، هغه هم د کوم ملي مکلفیت پر اساس نه،

بلکې د دې لپاره چې دولس زره افغانۍ درکوي. که نه په شروع کې خو زه او ته دواړه (طالبان) وو.

عسکرجانه! تا ته خو ښه درمعلومه ده چې زه چې د مدرسې طالب وم نو هره جمعه به کورته راتلم، له تا او کورنۍ سره به د هرې جمعې ورځ زما اختر وو. د هرې هفتې په سهار بهزما د احترام پخاطر تر نيمې لارې ته هم را سره تللې، زماعزت او احترام به دې کاوه.

ما چې کتابونه وويل نو دا مې هم ورکې زده کړل چې د دين يوازې زده کول مطلوب نه دي، بلکې پر هغه عمل اوله هغه څخه دفاع کول هم د مسلمان کاردی،او د دين تطبيقول هم د دين د زده کوونکو وظيفه ده. هماغه ؤ چې د دين د تطبيق او له هغه څخه د دفاع لپاره مې جهاد شروع کړ.

عسکرجانه وروره! په کار خو دا وه چې تا په دې کار کې زما ملا تړلې وای، او زما ترڅنګ درېدلی وای، خو افسوس چې ته د کلي له چرسيانو او بنګيانو سره ملګري شوې. مور او پلار که هر څومره نصيحتونه او زارۍ درته وکړې خو ته هغه سړی نشوې چې هغوئ غوښتلې. مور او پلار درته پردۍ لور هم کنبېنوله چې ګوندې له واده سره به د مسؤليت احساس درکې پيداشي، ستا خو اولادونه پيداشول خو په تا کې د ښو او بدو د پېژندلو تميز پيدا نشو. هماغه وو چې لاړې د څو پيسو پخاطر د دين او وطن د کافرو دښمنانو تر څنګ د هغوئ په لاس په جوړې شوې اردو کې عسکر شوې، او اوس هغه څه کوې چې هغوئ يې در څخه غواړي.

عسکرجانه! کافران خو زما او ستا دواړو د دين دښمنان دي. هغوئ له ليرې ځايه د دې لپاره راغلي چې دلته پر ما او تا خپله حمکرانې وچلوي. هغوئ زموږ وطن اشغال کړی او زموږ هر څه يې په خپل واک کې راوستلي دي. ته نو ولې د هغوئ تر څنګ ولاړ يې او له ما سره دښمني کوې؟

عسکرجانه! تا ته به نه در معلومېږي چې زه نه غواړم چې تا ووژنم، خو ته له يرغلګرو کفارو سره په يوه صف کې ولاړ يې، او د هغوئ لپاره کار

کوې. تا خپل ځان د هغوئ سپر ګرځولی، نو ځکه خو زما په ګولیو لګېږې. خو بیا مې ستا په وژل کېدو خوا بدېږي، ځکه چې ناوې دې کونډې‌ږي، سپین سرې مور او سپین ږیری پلار درباندې کړېږي. ستاوړو وړو یتیمانو ته بیا هم همدا زه ځورېږم. او همدا ستا له امله بیا زه په خپل کور کلي کې چاته سر نشم پورته کولی. آیا تا هم کله پدې غور کړی دی؟

عسکرجانه! ته پوهېږې چې تا کفار په دوستۍ نیولي دي! ته پوهېږې چې کافران تا ته خپل دوست وایي؟ آیا پدې هم پوهېږي چې کافران تا او ستا اردو خپله لاسته راوړنه ګڼي؟ پدې پوهېږي چې هغوئ په خپلو منځونو کې وایې چې د اردو له عسکرو مو داسې خلک جوړ کړل چې نور به زموږ پر ځای هغوئ د اسلام او جهاد په ضد جنګېږي؟

عسکرجانه! کېدای شي چې ته ووایې چې زه خو له کافرانو کرکه لرم، خو ستا افسران د امریکایانو، انګریزانو، جرمنیانو او فرانسویانو لخوا ټاکل شوي دي، او ته د هغوئ په قومانده چلېږې. دلته ستا انفرادي کرکه تر هغې هېڅ تاثیر نه لري چې تر څو دې د دې کافرانو په وژلو د خپلې کرکې اظهار نه وي کړي. او که داسې ونشي نو بیا خو ته هم له زړه د هغوئ ملګري یې! ځکه چې ته خو ورسره بندي نه ئې، بلکې په خپله خوښه ورغلی یې، او له هغوئ سره دې د هغوئ د شرائطو پر اساس قرارداد کړی دی. ته له هغوئ سره یوځای اوسې، ته په خپله خوښه د هغوئ لپاره ما وژنې، او هغوئ ته زما د کور لاره ورښئې.

عسکر جانه! هغه بله ورځ دې ولیدل چې ستا یوه ملګري د خپل ټوپک یوازې یوه ججوره په ورسره روزونکو امریکایانو کې تشه کړه او بیا په هسکه غاړه له مجاهدینوسره ملګری شو! ودې لیدل څنګه یې په همدا یوه ججوره ټوله اروپا او امریکا ولړزوله؟ څنګه یې د هغه ځای ولسونه په خپلو حکومتونو پسې راپورته کړل؟ او څنګه د دښمن زړه ته دا خبره ولوېده چې دلته نور د هغوئ خواري ځای نه نیسي؟ ستا په حرکت کې هم همدومره برکت شته، خو ته ناځوانه حرکت نه کوې.

عسکرجانه! ورور مې يې، خو بې لارې ورور. خير، ته چې اوس هر څه يې د آخرت عذاب مې نه درباندې لورېږي، د الله تعالی له عذابه دې وېروم.
الله تعالی کافرانوته جهنم تيا کلی دی، او هرهغه څوک چې په خپله خوښه د هغوئ ملګرتيا کوي او د هغوئ په قومانده او د هغوئ په صف کې جنګېږي، هغه به ورسره جهنم ته ځي.
عسکرجانه! ګوره چې پدې خبره مې خوا بده نه کړې، ځکه چې دا زما خبره نه ده، دا زما او ستا د دواړو د خالق او مالک خبره ده، دا د هغه ذات خبره ده چې له ما او تا دواړو سره به د قيامت په ورځ حساب کوي. هماغه الله په خپل کتاب کې فرمايي:

﴿ وَمَن يَتَوَلَّهُم مِّنكُمْ فَإِنَّهُۥ مِنْهُمْ ۗ إِنَّ ٱللَّهَ لَا يَهْدِى ٱلْقَوْمَ ٱلظَّٰلِمِينَ ﴾ المائدة: ٥١.

(او له تاسې څخه چې څوک دوئ (کافران) په دوستۍ ونيسي نو هغه به هم له هغوئ (کافرانو) څخه وي، او بې شکه الله ظالمانو ته هدايت نه کوي).

عسکرجانه! آيا پدې دې غور کړی چې کافران ولې په ما پسې غرونه، سمڅې او ځنګلونه لټوي خو تا ته په خپل څنګ کې ځای درکوي؟ ما وژني، خو له تا راضي دی او تنخواه درکوي؟ دوئ ما ځکه وژني او دښمني را سره کوي چې د دوئ پر لاره نه ځم. خو تا ته ځکه تنخواه درکوي چې د دوئ پر لاره روان يې. که داسې نه وي نو زه او ته خو دواړه ورونه يو، او کور مو هم لاتر اوسه سره يو دی. دا هم درته ښه در معلومه ده چې که زه غره ته ختلی يم نو ښځه او بچيان مې ستا له بچيانو سره يو ځای مور او پلار ته پرې ايښې دي، نو بيا ولې ما وژني او تا ته ډالر درکوي؟
عسکرجانه! آيا ته پدې خبر نه يې چې د امريکا جمهور رئيسو(جورج بوش) چې کله خپل پوځونه د افغانستان د نيولو لپاره دې وطن ته رالېږل نو زما او ستا په خلاف يې خپله جګړه صليبي جګړه و بلله؟ آيا پدې پوهېږې چې

صلیبي جګړې څه ډول جګړې وې !؟ صلیبي جګړې خو په تاریخ کې هغه جګړې وې چې د غربي دولتونو پوځونه د صلیب تر بیرغ لاندې د اسلامې نړۍ د نیولو لپاره شرق ته د وچې او سمندر له لارې راغلل. او چې کله د اوسنۍ ترکیې د (انطاکیې) پر ښار فلسطین ته راتېرېدل نو د انطاکیې په محاصره شوي ښار کې یې (۱۰۰۰۰۰) سل زره تسلیم شوي مسلمانان په بې رحمۍ تر تېغه تېر کړل. او چې کله بیا فلسطین ته راورسېدل نو تر یوې هفتې په لړ وخت کې یې اویا زره تسلیم شوي مسلمانان ووژل، او بیا یې د هغوی جسدونه وسوځول. یوازې د(اقصی) د مسجد په دننه کې یې څوارلس زره هغه مسلمانان ووژل چې مسجد ته یې پناه وروړې وه.

عسکرجانه! د دوی افسران به چې کله په مسجد کې د وژل شویو مسلمانانو لیدلو ته ورتلل نو د هغوئ د اسونو پښې به تر زنګنونو د مسلمانانو په وینو کې ډوبې وې.

عسکرجانه! که زما پدې خبرو دې باور نه راځي نو له هغو کافرانو پوښتنه وکړه چې همدا اوس ته ورسره یو ځای زما په خلاف جنګېږې. هغوئ به هرومرو درته ووایې چې هو دا کیسې زمونږ د صلیبي جګړو تاریخ لیکونکي (ویلیام آف تایر) هم په خپل کتاب A *history of deeds done beyond* the sea کې لیکلې دي.

عسکرجانه! پدې پوهېږې چې پر بیت المقدس د واکمنۍ تر ټینګولو وروسته صلیبیانو د مسلمانانو په اولنۍ قبلې (مسجد اقصی) څه وکړل؟ هغوئ نوي کاله له مسجد څخه ډېران (دخځلو د غورځولو ځای) جوړ کړی وو. او تر هغه وخته د مسلمانانو اوله قبله د اروپایانو ډېران وو چې تر څو د اسلام ستر غازي د القدس فاتح (صلاح الدین ایوبي) د هغوئ له ولکې آزاد کړ.

عسکرجانه! اوس خو به پوه شوي یې چې له صلیبي جګړې څخه د(بوش) مقصد څه شی وو؟

عسکرجانه! ستا خرڅ شوي او منافق شرابي افسران درته درواغ وايې چې ته او صليبي پوځيان دواړه د يوې جګړې مساوي شريکان ياست، او دواړه د يوه هدف لپاره جنګېږئ. هو، درواغ درته وايي. هغوئ خو د اسلام او مسلمانانو په خلاف په يوه ښکاره او اعلان شوې صليبي جګړه کې اخته دي. او له تا يې د خپل مقصد لپاره د قربانۍ پسه جوړ کړی دی. که داسې نه وي نو بيا ولې په لارو او سړکونو تا مخته کوي او دوئ در پسې روان وي. خو د جګړې او حرکت قومانده د دوئ په لاس کې وي؟ دا د دې لپاره کوي چې پر هغه ماين تا والوزوي چې ستا ورونو دوئ ته ښخ کړی دی. که دوئ تا خپل شريک ګڼي نو بيا ولې خپله په بندو زرهدارو موټرو کې چې دوئ يې د ماين ضد بولي سپرېږي او ته يې په داسې يو نازکه سرلوڅي رينجر کې کښېنولی يې چې د مجاهد د کلاشينکوف مرمۍ هم تېروبېر ترې وځي؟

دوئ ولې پر مختللې وسلې لري، او تا ته يې له دويمې نړيوالې جګړې پاتې داسې تاريخ تېرې وسلې درکړې دي چې په ټوله نړۍ کې يې اوس استعمال نشته؟

دوئ ولې په ټانکونو کې ګرځي، خو ستا د افغانستان ټانګونه يې له يوه مخې له منځه يوړل؟ ولې يې درنې روسۍ وسلې درڅخه واخيستې او له منځه يې يوړې، او پر ځای يې د درنو وسلو هېڅ درنه کړل ؟. ولې يې ستا د کور او کلي د ورانولو لپاره ډول ډول طياري راوستې؟ خو ستا هغه څو کنډې کپرې طياري يې هم له منځه يوړې؟ ولې يې د افغنستان روزل شوې اردو منحل کړه. او د هغې پر ځای يې يوه بې احساسه، بې تعليمه، بې هويته، بې تجربې، بې دسپلينه، پر قومي او ژبنيو بنسټونو ولاړه او بې سواده د کرايي مليشو مجموعه د اردو په نامه را منځته کړه؟

عسکرجانه! امريکايان دا هر څه ځکه کوي چې له تا هم ډارېږي، هغوئ نه غواړي چې ته دې هم قوي و اوسې، هغوئ غواړي چې يوازې همدوئ دې قوي وي او له تا دې يوازې د يو بې واکه مريي او بې اختياره مزدور په

حیث کار واخلي. هغوئ په زور راغلي دي او هر څه په خپل زور تر سره کوي. زما وژل خو يې هسې هم هدف دي، خو چې تا ته يې هم طبعيت خراب شي نو وژني دې او بيا څوک ترې پوښتنه هم نشي کولی.
عسکرجانه! ستا منافق او شرابي افسران به دا هم درته وايي چې دوئ خو زمونږ مرستې او زموږ د وطن آزادولو ته راغلي دي. خو آيا تاکله پدې غور کړی چې مرسته همدېته وايې چې زمونږ هېواد راکنډواله کړي، اردو مو ړنګه کړي، ټانګو او ټول پوځي وسایل، هوايي ځواک، د هوايي مدافعې سیستم، رادارونه او د استحکام ټول وسایل مو له منځه يوسي؟ آيا مرسته همدې ته وايي چې واک مو پردی شي؟ مرسته همدې ته وايې چې تر سلو زرو زيات افغانان راووژني او بيا يې هېڅ مسؤليت هم پر غاړه وانخلي؟ آيا مرسته دېته وايې چې پر جوماتونو، شفاخانو، ودونو، وراګانو، کاروانونو، د سپرلۍ پر موټرو او پر کليو کورونو او کروندو مو درنې بمبارۍ وکوي؟
عسکرجانه! دا پوښتنه دې کله له ځانه او يا له کوم بل چا کړې چې دوئ دا وطن مونږ ته له چا آزادکړ؟ له يهودو؟ له نصاراؤ؟ له هندوانو؟ له روسانو؟ له غلو او جنګي مجرمينو؟ او که له هغو مسلمانانو چې دلته يې د الله جلّ جلاله د دين نافذول غوښتل؟ دوئ خو افغانستان آزاد کړی نه دی، بلکې اشغال کړی يې دی.
عسکرجانه! دلته حقيقي واک او اختيار له غربي اشغالګرو قواوو، غربي کمپنيو او غربي مؤسساتو سره دی، او دا ته چې کومې ادارې ته حکومت وايې او خپل ځان د هغې ساتونکی بولې، د دې ادارې هر وزير يې په صليبي ايتلاف کې د شاملو جهتونو دګټو د ساتلو لپاره د همغوئ له لوري ټاکل شوی دی. ته او ستا افسران خو لا څه کوې چې دلته د کابينې ټول وزيران او حتی چې ستا جمهور رئيس هم همدوئ ټاکلی دی. ځکه چې که چېرې هغه رښتيا هم يو خپلواک رئيس وای، نو د اشغالګرو د وحشيانه بمباريو په مقابل کې به يې ژړاګانې نه کولې، او د ښځو په څېر

به يې اوښکې نه تويولې. بلکې د يوه آزاد هېواد د جمهور رئيس په توګه به يې له هغوئ سره محاسبه کولای، او هغوئ به يې د دې ډول وحشتونو له ارتکاب څخه منع کړي وای.
عسکرجانه! غربيانو يوازې په افغانستان کې د اسلام او مسلمانانو په خلاف جګړه نده روانه کړې، بلکې هغوئ د اسلامي هېوادونو په ډېرو برخو کې د مسلمانانو په خلاف جګړې رواني کړې دي، په ځينو ځايونو کې خپله په جګړو اخته دي، او په ځينو ځايونو کې يې جګړه نورو ته ورسپارلې او دوئ يې تر شا ولاړ دي چې عراق،سوريه، فلسطين، يمن، صومال، سوډان چيچينيا ،او د اسلامي نړۍ ډېر نور هېوادونه يې مثالونه دي.
عسکرجانه! يوازې افغانستان نه دی چې دوئ ورکې خپل غلامان قدرت ته رسولي دي، بلکې هغوئ د اسلامي نړۍ په تقريباً ټولو هېوادونو کې همدغه کار کړی دی. او په ټولو هېوادونو کې يې د همدې روزل شويو غلامانو په لاس د اسلام د نافذېدلومخنيوی کړی دی.
عسکرجانه! آيا ته ګومان کوې چې رښتيا هم امريکايان او اروپايان د افغانستان اوسنۍ اردو د افغانستان لپاره تربيه کوي؟ او ددې لپاره په ملياردونو ډالره ورباندې مصرفوي چې سبا ته دا اردو له اسلام او اسلامي هېواد څخه دفاع وکولی شي؟ او ددې لپاره يې په وسلو سمبالوي چې د هېواد خپلواکې وساتي؟ نه، داسې هېڅکله نه ده، ځکه چې که هغوئ تاسې له اسلام او وطن څخه د دفاع په روحيه و روزي نو بيا خو به تر هر چا د مخه په همدوئ شروع کوئ. همدوئ به شړئ، او دا وطن به له همدوئ آزادوئ، ځکه چې ستاسې د دين مخالفين او دښمنان خو همدوئ دي، همدوئ په زوره ستاسو وطن نيولی، او همدوئ په خپل زور په ظلم او ناروا د مظلومو افغانانو په کورونو د شپې په تيارو کې چاپې غورځوي، ښځې او ماشومان يې په روزل شويو سپيو داړي، او نارينه يې لاس تړلي

او سترګې ترلې نا معلوم لوري ته له ځانه سره وړي، او ستا د حکومت چارواکې بیا په ډېرې عاجزۍ وایي چې مونږ یې هېڅ خبر کړي هم نه وو.
عسکرجانه! هغوئ نه غواړي په تا کې دې د آزادۍ احساس او له وطن څخه د دفاع روحیه پیدا شي. هغوئ غواړي له تاسو څخه داسې یو بې رحمه، بې عاطفې، بې سرېتوبه، بې دینه او بې مروته پوځ جوړ کړي چې په خپلو خلکو هېڅ رحم او زړه سوی ونه لرئ. او بیا ستاسو په لاس او ستاسو د متو په زور لدې خاورې د اسلام بېخ او بوټی وباسي. همدا ستاسې په واسطه اسلام او مسلمانان ذلیل کړي. همدا ستاسې په لاس علماء، طالبان، مجاهدین، نیک خلک، آزادي غوښتونکي ملي مشران او د کفارو سرسخت دښمنان زندانونو ته ورټېل وهي.
عسکرجانه! دا چې ته افغان یې او لاتر اوسه ځان یو ښه مسلمان بولې، نو زما دغه خبره به درته عجیبه او مبالغه ښکاري، خو ګوره عسکرجانه! هغوئ په همدغه ډول د مسلمانو هېوادونو پوځونه په (ترکیی)، (الجزایر)، (عراق)، د هند په نیمه وچه، په عربي هېوادونو، په افریقایې اسلامي هېوادونو او نورو اسلامي هېوادونو کې وروزل چې هلته د همدغو پوځونو او د همدوئ په طریقه د روزل شویو عسکرو له لاسه مسلمانان له ذلت او مشقت سره مخ دي.
عسکرجانه! هغوئ په ملیاردونو ډالره ستاسې په روزلو ددې لپاره مصرفوي چې سبا ته که دوئ تېښتې ته اړ شي نو بیا به ټول هغه کارونه تاسو ته در وسپاري چې پخوا دوئ کول. بیا به همدا تاسې د اسلام د نفاذ او د اسلامي نظام د حاکمېدلو مخنیوی کوئ، لکه چې نن یې په ټوله اسلامي نړۍ کې د دوئ په لاس روزل شوي پوځونه کوي.
عسکرجانه! همدا نن لا ستا هر څه د دوئ په واک کې دي. ستا تنخواه، ستا لباس، ستا خوراک، ستا وسله، ستا مهمات، ستا تشکیلات، ستا روزنه، ستا قومانده او تا ته د اهدافو تعیینول هر څه د دوئ په واک کې او

د دوئ له لوري دي. خپل ملت درباندې وژني، خو بیا یې هم په تاسو باندې د (ملي اردو) نوم ایښی دی.
عسکرجانه! که زما خبرې درته بیځایه ښکاري، نو راځه په خپله یوه تجربه وکړه چې ته او ستا ملي اردو څومره خپل واک او خپله اراده لري؟ تجربه داسې وکړه چې ته او ستا څو ملګري چې کومه ورځ له کفارو سره یوځای په کوم (مشترک) عملیات کې ساحې ته ووتلئ او کفارو غوښتل چې کوم کلی او یا کور تلاشي کړي، نو تاسې ورته ووایاست چې تاسو ته ضرورت نشته، تاسو همدلته ودرېږئ او مونږ یې خپله تالاشي کوو، ځکه چې دا زمونږ خپلې خویندې او میندې دي، او که هغوئ خامخا غوښتل چې د مسلمانانو کورته ورننوځي نو په زور یې منع کړئ، ځکه چې له تاسو سره هم وسلې شته. هلته به بیا درمعلومه شي چې تاسو د کوم ملت (ملي اردو) یاست! او هلته بیا درته زما د خبرو ریښتینولي در معلومه شي چې ته او ستا اردو یې د اسلام او وطن د حریتد ساتلو او دفاع لپاره تربیه کړي یاست او که د مطلقې غلامۍ او بې واکه مزدورۍ لپاره؟
عسکرجانه! یوې بلې خبرې ته دې پام را اړوم، او هغه دا چې ته چې د چا په خلاف جنګېږې هغوئ خو یا د قرآن حافظان دي، یا د مسجد او محراب عالمان دي چې له مسجد او محراب څخه د دفاع لپاره یې ټوپک پورته کړی دی. او یا د مدرسو طالبان او د هېواد او اسلامي نړۍ هغه مخلص بچیان دي چې د دین د ساتنې او د مسلمانانو د هېوادونو د آزادولو لپاره یې د کافرو امریکایانو او اروپایانو په خلاف مقاومت شروع کړی دی. ته خو په حقیقت کې د هغوئ ورور یې، ته یې باید ترڅنګ ولاړ وای، خو افسوس چې ته لاړې د کفارو د ټانګ پر سر کښیناستې، او د کفارو له صفه په هغه ټوپک د اسلام په مدافعانو ډزې کوې چې همدغو کفارو درکړی دی.
عسکرجانه! که دوئ طالب او ملا نه پیژني نو ته خو یې ښه پېژنې! ته چې پیدا شوې همدې ملا دې په غوږ کې د توحید نعره در واوروله، چې لږ

لوی شوې همدې ملا په جومات کې دین در وښود او په لمانځه یې ودرولې، هره جمعه دې همدا ملا د دین په احکامو خبروي. همدا ملا دې له پردۍ لور سره نکاح درتړي. په همدې ملا پسې د لمانځه اقتدا کوې، په رکوع یې رکوع کوې، او په سجده یې سجدې ته ځې. او کله چې ته او یا دې کوم بچی له درد او مرضه وځورېږي، او له ډاکټره نا امیده شې، نو بیا همدې ملا او طالب ته ورځې چې دم درباندې ووایي.

له زندانونو څخه راخوشی شوي ملایان او طالبان وایې چې په زندان کې به له یوې خوا ظالمانو دومره وهلو چې هډوکې به یې را مات کړل، خو کله به یې چې ښځې ناروغې شوې نو بیا به یې اوبه هم په موږ ورته دمولې. او چې کله به مو پوښتنه ترې وکړه چې که ښه او مبارک خلک درته ښکارو نو بیا مو ولې ترۍ او ډبوئ؟ هغوئ به ویل: ستاسو وهل زمونږ مجبوریت دی، خو په تاسې اوبه دمول زمونږ قناعت.

ښه عسکرجانه! چې دا دومره هر څه د ملا منې! نو د اسلامي نظام راوستل او د کفارو په خلاف جنګ ولې ورسره نه منې؟ او یا یې ولې د دښمن په صف کې درېږې؟ همدا نن به دې هم (کور ودانې) او یا (مورجانې) ستا بچیان سهار وختي د سبق لپاره ملا ته لېږلي وي، خو افسوس چې تا د بل چا لاره نیولې، او د بل چا لپاره دې په ملا او طالب پسې ټوپک راپورته کړی دی.

عسکرجانه! آیا پدې دې فکر کړی چې که ته مړ شې تر هغې به دې څوک نه ښخوي چې تر څو دې بیا هم د ملاصاحب په مخکې د جنازې لپاره کښېنږدي!

عسکرجانه! چې پیدا شوې او دې دنیا ته دې نوې سترګې وغړولې، نو هم همدې ملا ته یې په مخکې کښېښودې، او اوس چې له دنیا سترګې پټوې بیا دې هم د همدې ملا او طالب مخې ته ږدي.

عسکرجانه! ستا خو د تګ او راتګ معاملې دواړه ستا د دين په حکم په ملا پورې تړلې دي، نو دا څه درباندې وشول چې له کفارو سره يو ځای او د هغوئ په وينا په خپل ملا او طالب پسې راپورته شوی يې؟
عسکرجانه! آيا کله دې پدې غور کړي چې که پدې لاره کې مړ شې دنيا او آخرت به دې دواړه خرابيږي؟ دواړه به ځکه خرابيږي چې نه به د الله تعالی په لاره کې مجاهد شهيد شوی يې چې عمل دې قبول شي، ښنه درته وکړي او په آخرت کې دې له انبياؤ او صديقينو سره ملګري کړي. او نه به له کفارو څخه د وطن د آزادولو او د خپل ملت د حريت د ګټلو په لاره کې مړ شوی يې چې خلک درباندې فخر وکړي، نوم دې په اتلانو کې راشي، او د پلار، ورونو او قوم شمله دې درباندې هسکه شي.
عسکرجانه! کېدی شي چې يرغلګر کفار او د هغوئ ګوډاګی حکومت دې د يو څو لحظو لپاره وستايي، او په کوم حکومتي امبولانس کې دې مړی هم کورته راوړي او پلار ته دې ستا د وينې د قيمت (يولک) افغانۍ هم ورکړي، خو مونږ او خپلوان به دې په يادولو شرميږو! خلک به په مړي پسې يوازې غمجن کيږي، خو مونږ به هم ستا په مرګ شرميږو، او هم به غمجن يو. نور خلک به هم وايي چې: مه يې يادوئ ! په دولس زره افغانيو يې ايمان خرڅ کړ او بې ايمانه له دنيا لاړ.
عسکرجانه! خلک به په فاتحې کولو راته شرميږي، بچيان به دې څوک د شهيد يتيمان نه بولي، او ښځه به دې څوک د شهيد کونډه نه بولي. او خلک به لا نور پېغورونه هم راکوي چې: د کفارو نوکري به يې نه کوله، ولې يې په ډالرو پسې ځان مړ کاوه!
عسکرجانه! د دين او عقيدې خبره درته کوم! ته چې د چا په ضد جنګيږې ته ځان له هغوئ سره يو شی هم بولې! ځکه چې ته هم په يوه الله د ايمان دعوی لرې، او هغوئ هم په يوه الله ايمان لري. ته هم محمد صلي الله عليه وسلم خپل پيغمبر ګڼې که څه هم چې پر لاره يې نه ځې! او هغوئ هم د همدې پيغمبر امتيان دي، او د همدې پيغمبر د شريعت د نافذولو لپاره

جنګېږي. ته هم چې کله نا کله لمونځ کوې نو هماغې قبلې ته مخ کوې چې دوئ ورته درېږي! ته هم هماغه د (لا إله إلا الله محمدرسول الله) کليمه وايې که څه هم چې په معنی او مقتضا يې نه پوهېږې او نه عمل پرې کوې! او دوئ هم د همدې کليمې د لوړوالي لپاره خپلې ځوانۍ قربانوي. ته هم په همغې عربي ژبې عبادت کوې چې دوئ يې ورباندې کوي، نو بيا يې ولې پردي بولې؟ او ولې ورسره په جګړه اخته يې؟ او ولي دې د هغوئ له دښمن سره لاس يو کړی دی؟

خوعسکرجانه! د دې هر څه په خلاف ته چې د چا په صف کې ولاړ يې او د چا په ټانګ سپور يې، هغوئ له تا سره هېڅ ډول شريکې نقطې نه لري. هغوئ نه ستا رب مني او نه ستا دين، ځکه چې ستا رب يو دی، او دوئ خپل رب له دريو شريکانو جوړ ګڼي. ستا دين ستا د دين او دنيا دواړو لپاره تا ته لارښوونې او قوانين لري، خو دوئ وايې چې زمونږ دين (نصرانيت) دې چې زمونږ د دنيا په چارو کې هېڅ مداخله نه کوي. ته خپل پيغمبر محمد صلي الله عليه وسلم د الله تعالی بنده او د هغه استازی ګڼې، خو دوئ عيسی عليه السلام ته _نعوذ بالله – د الله زوی وايې. ته په لمانځه کې کعبې مخامخ ته درېږې! خو دوئ د هماغه (ابرهه) په دين دي چې د کعبې د ورانولو لپاره يې د فيلانو لښکر راوستلي وو. نو بيا ولې په غړېدلو سترګو واقعيتونو او حقايقو ته نه ګورې؟ او ولې په رڼا ورځ د حق لار درڅخه ورکه ده؟

عسکرجانه! تر اوسه لا فرصت لرې ! د کفارو سينې ته د خپل ټوپك د شپېلۍ په وربرابرولو او په هغوئ د خپل زړه په يخولو دا ثابته کړه چې رښتيا هم مسلمان او افغان يې. او رښتيا هم ته د دې ملت بچی يې! که ژوندی راووتې نو د وزير اکبرخان غوندې به دې بيا د (مکناټن) د وژلو حماسه تکرار کړې وي، او که شهيد شوې نو په دنيا به دې له افتخاره ډك تاريخ پرې ايښی وي، او په آخرت کې به جنت او د پيغمبرانو، صالحينو او شهداوو ملګرتيا درپه برخه شوې وي.

عسکرجانه! امریکایان او ملګري خو یې تا د دې لپاره تیاروي او مسلح کوي دې چې ته په خپل وطن کې د (تروریزم) په خلاف وجنګیږې. آیا پدې پوهیږې چې (تروریزم) څه ته وایي او تروستان څوک دي؟ تروریزم خو د سیاسي مقصدونو د حاصلولو لپاره د تاوتریخوالي له لارې د خلکو ویرولو او په مرګ تهدیدولو ته وایي. اوس نو تا ته په الله قسم درکوم چې ته په خپله ووایه چې زموږ خلک، کلي، کورونه، واړه، زاړه، سپین ږیري او تور سرې د چا له لاسه شپه او ورځ په ویره کې تیروي؟

آیا پدې پوهیږې چې څوک یې کلي او کورونه ور بمباروي؟ څوک یې په نیمه شپه پر کور چاپې غورځوي، سړي یې وژني، ښځې یې بې ستره کوي او په سپیو یې داړي، ماشومان یې ویروي او ځوانان یې لاس تړلي او سترګې تړلي نامعلوم ځای ته بیایې؟

عسکرجانه! خپل و جدان ته رجوع وکړه او راته ووایه چې څوک د دې ولس پوره پوره کلي د دې لپاره په میزایلو او هوایي بمبار له منځه وړي چې دوئ هلته ورتلی نشي؟ که د خپلو خلکو په چیغو، فریادونو او ګواهیو دې باور نه راځي نو هغه خو خامخا ومنه چې هغه بله ورځ د دوئ خپلو رسنیو رپورټ ورکړ او عکسونه خپاره کړل چې امریکایي ځواکونو د قندهار په ارغنداب کې یو کلی د زمکې له مخه لرې کړ.

عسکرجانه! که د دوئ د ویرې اچونې، تروریزم او ورانۍ په هکله د بل چا خبرې نه منې نو د کابل د غلامۍ ادارې له ارګ څخه خپور شوی خبر خو باید ومنې چې امریکایانو په قندهار کې دومره کلي، باغونه، کشمش خانې، او کورونه وران کړي چې تاوان یې سل میلیونو ډالرو ته رسیږي.

عسکرجانه دا د دوئ هغه ټول تاوان نه دي چې زمونږ خلکو ته یې ور رسولی دی، بلکه دا یوازې د یوه ولایت په څلورو ولسوالیو کې د یوه عملیات اټکل شوی تاوان دی. دوئ په ټول افغانستان کې هر وخت په هر عملیات کې همدې ته ورته مالي تاوانونه ستا مظلوم ولس ته ور اړوي. دا خو یې یوازې د مال تاوان دی. د سر د تاوان، او د روحي فشارونو، او له

هغو څخه د راولاړو شویو روحي ناروغیو خبره خو یې لا تر اوسه چا مطرح کړې نه ده.
عسکرجانه! ته خویې وینې همدوئ دلته افغانان ذلیلوي، دوئ هم کرزی ذلیلوي او خپلې فیصلې ورباندې په زور مني، هم سیاف ذلیلوي او په کور بې اجازې د تلاشۍ لپاره ورننوځي، هم ستا ملي اردو ذلیلوي او پرته له خبرولو یې په سیمه کې پوځي عملیات ترسره کوی.
عسکرجانه! امریکایان ستا حکومت هم ذلیلوي. دوئ د همدې حکومت په نامه یې له دنیا څخه پیسې اخلي، خو د مصرفولو صلاحیت او واک یې نه ورکوي. دوئ په خپله هم د افغانانو په نامه ډالر راوړي خو ورکوي یې نه. یوازې شل فیصده یې دلته په هغو کارونو مصرفوي چې د دوئ په ګټه دي، او پاتې اتیا فیصده بېرته په بېلابېلو نومونو په خپلو جیبونو کې اچوي خو حساب یې ټول په موږ پسې لیکي.
عسکرجانه! امریکایانو ستا ټول ولس یرغمال کړی دی. پوځ ددوئ په یرغمال کې دی، پولیس د دوئ په یرغمال کې دي، کابینه د دوئ په یرغمال کې ده، د کرزي د خپل دفتر مامورین د همدوئ مامورین دي او د همدوئ د استخباراتو لپاره کار کوي. پارلمان د همدوئ په یرغمال کې دي او د دوئ د خوښې خلاف نه کومه فیصله کولی شي او نه هم د غور او بحث لپاره کومه موضوع وړاندې کولی شي. وزارتونه د همدوئ په یرغمال کې دي او هر وخت یې خوارکې ژورنالستان نیولي او ډبولي وي چې ولې یې د ځینو واقعیتونو خبر تېر کړی دی؟ مکتب او نصاب د همدوئ په یرغمال کې دی او د دوئ د مشاورینو له موافقې پرته یو مضمون څه چې یوه موضوع هم په تعلیمي نصاب کې نشي داخلېدلی.
داخلي او خارجي مؤسسات د همدوئ په یرغمال کې دي او هر څه چې دوئ غواړي هماغه ورباندي کوي. نو ته ووایه چې که دوئ وېره اچوونکي او تروریستان نه وي نو څوک به تروریستان وي؟

عسکرجانه! تا ته به نه دریادیږي چې کله دوئ پر افغانستان حمله وکړه نو په هماغه وخت کې د رمضان میاشت هم راورسیده. د ټولې نړۍ مسلمانانو ورڅخه هیله وکړه چې لږ تر لږه د رمضان په میاشت کې خو دې د افغانانو پر کور، کلي، او ښارونو بمبارۍ ودروي. خو ته پوهیږي چې دوئ یې په ځواب کې څه وکړل؟ ته به ځکه ناخبره یې چې نه سواد لرې، نه مطالعه کوې، نه کمپیوټر لرې، او نه هم انټرنیټ ګورې چې د دوئ حقیقت در معلوم شي. دوئ د مسلمانانو دې غوښتنې ته دا ځواب ووایه چې عسکرو یې پر هغو بمبونو چې زما او ستا پر کلي یې اورول په خپلو لاسونو په غټ خط ولیکل: ( gift of Ramadan ) یعنې د رمضان تحفه. هغوئ ستا پر اولس د رمضان په میاشت کې د بمونو تحفې واورولې او پدې ډول یې د خپلې کینې او خپل ( نصراني) تروریزم اظهار وکړ.

عسکرجانه! امریکایان یوازې ستا د طالب، ستا د ملا، ستا د مسجد محراب، او مدرسې دښمنان نه دي، بلکه دوئ ستا د ولس د پت او عزت دښمنان هم دي. دوئ پدې پوهیږي چې دلته تر هر څه د پت او ناموس قدر او عزت ډیر دی، نو ځکه یې په شعوري ډول د دې هستۍ د لوټلو اقدامات وکړل، او لا نور یې هم کوي. آیا همدوئ په کابل او نورو ښارونو کې د (ګیست هاوسونو) په نامه د فحشاوو مراکز جوړ نه کړل؟ آیا همدوئ ستاسو له ( ډګر والاټو) ( ترجمانانو) او په ارزګان کې له اتیا کلن سپین ږیري سره لواطت ونه کړ؟ او همدوئ یې په قصدي ډ ول جریان مېډیا ته ونه سپاره؟

عسکرجانه! دې ولس ته دامریکایانو دغه سپکاوي اوسنی ندی. تر دوئ دمخه چې کله انګریزانو افغانستان اشغال کړی وو په هغه وخت کې هم د دوئ پوځې مشرانو همدا چارې کولې. او کله چې شاه شجاع مکناټن ته د انګریز پوځیانو له دې کارونو شکایت وکړ نو ددې پر ځای چې هغه یې شکایت واوري او خپل پوځیان افغانانو ته له سپکاوي منع کړي هغه ورته

وویل چې: که زموږ پوځیان دا کارونه ونه کړي هغوئ په ډول ډول مرضونو اخته کیږي.

عسکرجانه! دا خبرې درته زه له خپله ځانه نه کووم، بلکه همدغه حقیقت د افغانستان د تاریخ په مشهور کتاب ( سراج التواریخ ) کې چې فیض محمد کاتب د امیر حبیب الله خان په غوښتنه لیکلی پدې الفاظو راغلی دی: (شاه این ماجرا را بزبان کنایه و ایما به (سرولیم مکناتن جې) بگفت که سپاه انگلیس را ازین کار باز دارد، و او که از عاقبت کار و حمیت و شجاعت مردم این دیار آگاه نبود در جواب گفت که: هر گاه سپاهیان از مباشرت با زنان باز داشته شوند گرفتار چندین امراض خواهند شد. و شاه گفت که همچنین است، ولیکن شیوع و رواج این کار در حوصلهٔ ناموس پرستان افغان گنجیدن بغایت دشوار است، پس میباید که بچوب سیاست منع خریداران این بازار نموده آید، ورنه این شجرۂ خبیثه فتنه بار خواهد آورد، سر (ولیم مکناتن) گوش به سخنان شاه نداده در زاویهٔ نیسان نهاد). ( سراج التواریح صفحه (۱۵۶) .

عسکرجانه! غربي پوځیان ستا د ولس د خلکو سپکاوی د انفرادي جنایاتو په حیث نه کوي، بلکه همدغه یې ورته د جنرالانو توصیه او تګلاره ده. که د هغې زمانې شاه شجاع د هغې زمانې له مکناتن څخه لدې امله د دې کار د بندېدلو غوښتنه کوله چې خلک به ورپسې راپورته شي نه ددې لپاره چې دا د مسلمانانو پر ناموس تېری دی، خوستا د وخت شاه شجاع (حامد کرزی) د دې زماني له مکناتنانو څخه دغه ډول غوښتنه هم نشي کولی. تا خو به هم په بګرام کې هغه کېسې اورېدلې وي چې خلک یې د یرغلګرو پوځیانو او د یو شمیر بې غیرته او غرب ځپلو افغانو ښځو په اړه کوي. دا ته نو د کوم ملت د (ملي اردو) عسکر یې چې ټوپک دې په لاس کې دی او په ځای د دې چې په هغه د خپل ملت د ناموس ساتنه وکړې ته په سره وینه ولاړ یې په خپل ټوپک د یرغلګرو پیره او حفاظت کوې؟ عزت

دې څه شو؟ افغانيت دې څه شو؟ مسلماني دې څه شوه؟ آيا دا هر څه دې په دوه سوه ډالرو پر يرغلګرو خرڅ کړل؟

عسکرجانه! دومره خو به تاته هم در معلومه وي چې د افغانستان د تير تاريخ په خلکو کې چې څوک تر ټولو ډېر يادېږي او افغانان ورباندې افتخار کوي هغه وزير اکبر خان دی. وزيران خو نور هم ډېر تېر شوي دي خو وزير اکبرخان ځکه د افتخار وړ دی چې مکناټن انګريز يې وژلی دی. او د هغه په ملګرو کې تر ټولو (محمدشاه خان) ځکه ښه يادېږي چې هغه ورسره د انګريز په وژلو کې مرسته کړې ده. که ته هم کوم امريکايې يا انګريز او يا هم کوم بل يرغلګر ووژنې همداسې به ته هم د راتلونکو نسلونو لپاره د افتخار وړ يې.

عسکرجانه! تا ته خوبه دې يرغلګر روزونکي دا هم وايې چې مونږ دلته ځکه راغلي يو چې دا هېواد تروريستانو نيولی وو او مونږ ورڅخه آزاد کړ. خو ګوره عسکرجانه! چې په دروغو يې تېر نه ووځې. دا هېواد نه چا نيولی وو او نه دلته د بل چا واکمني چلېده. نه دلته د پرديو په لکونو پوځونه وو او نه يې په لسګونو زره ټانګونه او پوځي وسائل. نه دلته چا عسکري بېسونه درلودل اونه هم چا د افغانانو پر کليو او کورونو چاپې غورځولې. نه دلته د چا زندانونه وو، او نه چا لدې ځايه بنديان بل ځای ته وړل. نه دلته د شپې تلاشۍ وې او نه هم چا د خلکو د موټرو او کاروانونو مخه نيوله. نه دلته چا په وزارتونو کې رسمي او غير رسمي حاکم مشاورين ليدلي ول او نه هم چا پرېښودل. نه دلته چا شخصي توقيف ځايونه درلودل او نه دلته د چا شخصي امنيتي استخباراتي کمپنۍ، کمپاينونه، مليشې او اربکيان موجود ول. نه دلته چا جمهور رئيس ته د پيسو کڅوړې ورکولې او نه هم دلته د چا فرمايشي وزيران مقرر وو. نه دلته چا د چا په خلاف خپل سري عمليات کول او نه چا د چا پر ودونو، وراګانو، جنازو، کاروانونو، مساجدو، مدرسو، او مکاتبو بمبارۍ کولې.

د طالبانو په پنځه کاله حاکمیت کې هیڅ دا ونه ویل چې کوم اجنبي جهت دې د چا کور، کلی، ښار او بازار محاصره کړی وي. دلته نه هېچا د خپلو شخصي استخباراتي، تبلیغاتي، استعماري او نورو مؤسساتو د امنیت د ساتلو لپاره سړکونه بندکړي ول او نه دلته چا دګشت او ګذر ممنوعه سیمې درلودلې. نه دلته پردیو خپلې شتمنۍ درلودې، او نه دلته چا د افغانانو اقتصادي منابع تر خپل کنترول او انحصار لاندې راوستلي ول.
عسکرجانه! غربي یرغلګر او او دهغوئ د دې ځای ملګري به تاته د هغو ځو تنو مسلمانو مجاهدینو شتون د تروریزم د واکمنۍ په حیث در یادوي چې خپل کور، کلی، تجارت، تحصیل، کورنۍ، اولادونه او هوسا ژوند یې پرې ایښی وو او د خپل اسلامي مسؤلیت د احساس پر بنا ستا د دین او د وطن د دښمنانو په خلاف ستا د وروڼو تر قوماندې لاندې د افرادو په حیث دلته د روسانو او کمونستانو په ضد د همدغو رهبرانو په بلنه چې اوس په پارلمان او حکومت کې ناست دي د جهاد لپاره راغلي ول او کله چې دښمن ماتې وخوړه نو ځینو یې دا غوره وبلله چې د خپلو هېوادونو د ظالمو او مستبدو حکامو له ظلم او وحشت څخه ستا د ملت د مهربانۍ او غیرت غېږ ې ته پناه راوړې وه او خپلې ښځې او بچیان د تا په کور کې د تا د ښځو او بچیانو تر څنګ ستا د ایماني غیرت او افغاني حمیت سیوري ته کښینوي. او دلته د مهاجرینو په څېر یو څو د آرام شپې تېرې کړي. ښځه یې ستا د ښځې خور او بچیان یې ستا د بچیانو وروڼه او خویندې شي او دوئ ستا د اسلامي انصاریت او افغاني عاطفې احسانمن وي.
عسکرجانه! ته پوښتنه وکړه چې آیا دلته په هغه وخت کې چا د افغانانو زمکه ، تجارت، لاره، کلی ، ولایت، ولسوالۍ ، دفتر، پوځي قرارګاه، د دخول او خروج لارې او نورځه ورځخه نیولي ول؟
عسکرجانه! ګوره چې دا در څخه هېره نشي چې موږ مسلمانان یو او مسلمانان چې هر چېرې او هر څوک وي ټول سره وروڼه او یوملت دي. الله

تعالي فرمايي: (إِنَّمَا الْمُؤْمِنُونَ إِخْوَةٌ). الحجرات ١٠. (بيشکه چې مؤمنان په خپلو کې سره وروڼه دي). الله تعالی فرمايي (وَ إِنَّ هَذِهِ أُمَّتُكُمْ أُمَّةً وَاحِدَةً) سورة المؤمنون /٥. (دغه ستاسې يو امت دی).
عسکرجانه! د شرق مسلمان د غرب د مسلمان ورور دی او د هغه په اړه مسؤليت لري. هر هغه څوك چې زموږ د دين منونکی دی هغه زمونږ ورور دی که څه هم چې زمونږ د ژبې ويونکی نه وي او يا زموږ د قوم مربوط نه وي. خو کافران، نصرانيان، امريکايان، انګريزان، پرنګيان ( فرانسويان ) نور يرغلګر اروپايان او دلته دهغوئ غلامان ، کمونستان، ديموکراتان، بې دينه ( سيکولر) خلك، او دخپل ملت په خلاف د پرديو په صف کې ولاړ مزدوران نه زمونږ وروڼه دي ، نه له مونږ سره خواخوږي لري، نه زمونږ د ننګ ، ناموس، او شرافت پروا لري، او نه هم زمونږ د دين منونکي دي.
دغه ډلې يوه يې هم زمونږ له ( ملت ) څخه نه ګڼل کېږي، ځکه چې موږ خو د ابراهيم عليه السلام پر ملت يو، او د ابراهيم عليه السلام په هکله الله تعالي فرمايي : (مَا كَانَ إِبْرَاهِيمُ يَهُودِيًّا وَلاَ نَصْرَانِيًّا وَلَكِن كَانَ حَنِيفًا مُسْلِمًا). آل عمران ٦٧ . ( ابراهيم عليه السلام نه يهودی وو او نه نصرانی، بلکه د حق منونکی مسلمان وو). او دوئ خو ځينې يې يهوديان، ځيني يې نصرانيان، او ځينې نور يې ملحدان او له حق دين څخه سرغړوونکي او د هغه په خلاف جنګېدونکي دي.
عسکرجانه! دا دې هم په پام کې ونيسه چې غربي اشغالګر خو اوس تا د خپل ملت په خلاف جنګوي، د خپل دين او وطن وروڼه دربانديې شهيدانوي، ستا خپلې خويندې او ميندي دربانديې کونډوي، خپل وربرونه دې دربانديې يتيمانوي، او خپلې تور سرې دربانديې بې ستره کوي، او د دې هر څه په مقابل کې يوازې يو څو افغانۍ در کوي او بس، خو بله ورځ به دوئ هم د روسانو په څېر خپلو هېوادونو ته روان وي، دوئ به هلته د روم، پاريس ، نيويارك، لندن او فرانکفورت په ښارونو کې له

خپلو کورنیو او اولادونو سره د عیش او عشرت شپې تېروي، خو تا به دلته دې وران، کنډواله شوي او سوځېدلي وطن کې د کونډو، بورو او یتیمانو فریادونو، آهونو، او ښېراوو ته پرېږدي. نه یوازې ښېراوې، بلکه دلته به بیا خلك له تا سره حساب هم کوي. هغه خلك به ټول له تا سره د خپلو حسابونو تصفیه غواړي چې ته یې د پردیو پر ټانګ سپور کور ته ورغلي وې، او له یرغلګرو سره په شریکه دې د هغوئ پر کور چاپه غورځولې وه، او تورسرې دې ورته بې ستره کړې وې.
عسکرجانه! په پای کی کې دا درته وایم چې ما پر خپل ځان ستا د پوهولو حق پور ګاڼه، او هیله ده چې پدې خبرو به مې ستا یو څه پور پرېکړی وي.
او دا څو خبرې مې ځکه درته وکړې چې ته خو زما ورور یې! څه د امریکایي او د انګرېز ورور خو نه یې! ستا خو مړی او ژوندی دواړه ما ته راپاتې کېږي. غربیان او د هغوی بې دینه سیکولر ملګري خو به له ماتې وروسته غرب ته وتښتي، خو ستا د غلامۍ، له کفارو سره د ملګرتیا، د خپل دین او ولس په خلاف د جنګېدلو، له ملا، طالب، مسجد، محراب او مدرسې سره د دښمنۍ توري کارنامې به زما د ولس او هېواد په تاریخ کې ثبتېږي! نو عسکرجانه! له الله تعالی ووېرېږه! او نور له دې پردي صفه او له دې شرمېدلي ناروا کاره راووځه! راځه یا د الله تعالی د دین په ملاتړ وسله پورته کړه، او یا لاړ شه خپلو اولادونو ته حلاله نفقه پیدا کړه چې ته د سبا له شرمه خلاص شې، او زه د خلکو له پېغوره.

## د پوهنتونونو ځوانان دهېواد د اسلامي اصالت شعوري سپاهيان

د اسلام لپاره مبارزه له اسلامي عقيدې راپورته شوي شعور، سياسي بصيرت، ناتمامه صبر او سرشارې ځوانۍ ته ضرروت لري. او هر کله چې دغه څلور ګوني عناصر د يوه با عزيمته صالح قيادت تر سيوري لاندې د اسلامي مبارزې په ټولي کې موجود شي الله تعالی د هغه ټولي په کار کې برکت او په حرکت کې يې توفيق او عزيمت پيداکوي، که څه هم چې دغه ډله ډېره وړوکې هم وي.
په قرآن کريم کې د الکهف مبارك سورت هم د همدغسې يوې ډلې ځوانانو حال او سرنوشت بيانوي. پدې سورت کې الله جل جلاله د هغو ځوانانو کيسه بيان کړې چې د حق د سپيڅلي شعور په لرلو يې د کفر په خلاف خپله کرکه او مخالفت اعلان کړ، او د خپل ايماني او سياسي بصيرت په رڼا کې يې د وخت د طاغوتي نظام کړنلارې تشخيص کړې. هغوئ نه طاغوتي حاکميت ته تسليم شول، او نه يې ورسره روغه وکړه. بلکې په صبر او استقامت يې د ايمان لاره غوره کړه، او خپلې ځوانۍ يې پر حق دين د ټينګ پاتې کېدلو په لاره کې وقف کړې، او الله ﷻ د هغوئ په دغه قيام د هغوئ قدمونه او زړونه ټينګ کړل.
د کهف ځوانانو هم پرته لدې چې د قيام عواقب ورمعلوم وي د ايمان د ساتلو په منظور يې د غرونو او کړاوونو ناهمواره لاره ونيوله. هغوی چې د دنيايي ژوند ټول مادي وسائل يې پرې ايښي ول او د معنويت د لارې قربانيو ته يې ځان تيار کړي وو نو الله ﷻ هم ورته د پايښت داسې وسيله برابره کړه چې ماديت ته ورکې هېڅ ضرورت نه وو.
د کهف د ځوانانو دغه د بې وسۍ قيام الله ﷻ ته دومره قدرمن وو چې هغه يي د يوه امت د ايمان او نجات ذريعه وګرځاوه. او د هغوئ ياد يې په

خپل كتاب كې د يوه وړوكي مؤمن جماعت د مبارزې د ژوندي مثال په حيث آخري امت ته پر رسول الله ﷺ را نازل كړ.

د رسول الله ﷺ ملګري هم تقريبا نوي په سلو كې غښتلي ځوانان ول. هغوئ په الهي نصرت او بيا د خپلې سرشارې ځوانۍ په قوت د اسلام يو داسې عظيم دولت او نظام په پښو ودرواوه چې دهغه وخت تاريخ يې سارى نه وو ليدلى. هغوى د نبوي مدرسې هغه ممتاز شاګردان ول چې د ټول بشريت د قيادت او استاذۍ چارې يې په بې ساري ډول سمبال كړې، او انساني تمدن يې د ارتقا داسې لوړو مراحلو ته ورساوه چې د نړۍ زمانې ټول فيلسوفان ورته حيران پاتې شول.

د كمونزم په خلاف د افغانستان د ستر جهاد پيل هم د مسجد او مدرسې تر څنګ د كابل د پوهنتون له انګړ څخه شوى وو. همدغه د پوهنتون بااحساسه او متدين ځوانان ول چې تر ټولو دمخه يې د كمونيزم د سره سيلاب خطر احساس كړ، او د هغه د مخنيوي افتخار هم د پوهنتون د ځوانانو په برخه شو. هغوئ له هغه سند او شهادتنامې محروم شول چې د هغې پر اساس به يې ښايي په كومه طاغوتي يا غلامه اداره كې وظيفه ترلاسه كړې واى. خو الله ﷻ په داسې شهادتونو ونازول چې د انبيا وو، شهداوو او صالحينو ملګرتيا به يې ان شاءالله په برخه شوې وي.

د كمونيزم او روسانو په مقابل كې د جهاد د سنګرونو ساتنه هم د هېواد د نورو اقشارو ترڅنګ تر ډېره همدغه د پوهنتون د ځوانانو او يا له پوهنتون څخه د فارغو ځوانانو لخوا كېدله. كه د جهاد د لومړيو كلونو د جبهو مشران او قومندانان را په ياد كړو نو وبه وينو چې ګڼ شمېر يې ډاكټران، انجينران، څارنوالان، پوځي افسران، قاضيان، استادان او نور هغه كسان ول چې د پوهنتون له اكاډيميک او سياسي چاپيرال سره يې تړاو درلود. دې هرڅه پدې دلالت كاوه چې زمونږ ملت په آګاهانه ډول د كمونيزم او الحاد په خلاف جهاد كاوه.

په پوهنتونونو پورې اړوندو متدينو ځوانو قومندانانو د کلي او ولس بېسواده ځوانان هم داسې د کمونيزم په خلاف د مبارزې او جهاد په سنګر کې منظم کړل چې د شوروي روزل شوي زبرځواک پوځ ته يې د الله تعالی په نصرت ماتې ورکړه.

پر افغانستان د امريکا له تسلط وروسته هم د پوهنتونو ځوانانو د خپل اسلامي اصالت او اسلامي عقيدې سره د مضبوط تړاو ثبوت وړاندې کړ.

د امريکايانو لخوا قرآن کريم ته د سپکاوي په خلاف د پوهنتونونو د ځوانانو سراسري او زړورې مظاهرې او د هېواد په اسلامي اصالت ټينګار د هغوئ د پاخه اسلامي احساس ښکاره بېلګې دي.

پر هېواد د امريکايي اشغال په اوج کې چې د ننګرهار د پوهنتون ځوانانو د پوهنتون په ماحول کې د ګډا او فحشا د رواجولو په عکس العمل کې کوم زړور او له غيرت او شهامته ډک غبرګون ښکاره کړ ټول غرب ورباندې وښورېده.

کله چې اروپا د اسلام د پيغمبر محمدﷺ د سپکاوي په خاطر له عناد او غروره ډک اقدام په مکرر ډول وکړ بيا هم همدغو د پوهنتونو غيرتي ځوانانو د غرب په خلاف لويې مظاهرې په لار واچولې. دغو مظاهرو دکرزي ګوډاګۍ اداره دومره په وېره کې کړه چې د يوه سرتاسري ملي پاڅون ژوره انديښنه ورته پيدا شوه.

امريکا غواړي چې د پوهنتون ځوانان له سياسي شعور او اسلامي بصيرت څخه بې برخې کړي او د همجنس بازۍ، غربپالنې، موسيقۍ او شرابو په ډنډ کې يې غرق کړي. د دې کار لپاره هغوئ پراخې پروسې په کار اچولې دي چې د ځوانانو پر مخ د بې لارېتوب او لنډغرتوب د دروازو خلاصون، د غرب د(بواى فرينډ) او (ګرل فرينډ) د غربي فرهنګ رواجول، له نصاب څخه د اسلامي موادو لرې کول، د پوهنتونو له کتابخانو څخه داسلامي فکري او تحريکي کتابونو ټولول، په بازارونو کې په دغه ډول کتابونو

بندیزونه لګول او د ځوانانو په سمتي او ژبنیو اختلافونو مشغولول شامل دي.
یوه بله خبره چې ډېره د اهمیت وړ ده هغه دا ده چې امریکا لدې هر څه سره سره بیا هم د هېواد د پوهنتونونو له ځوانانو وېره لري. او له همدې امله خو ئې داځل د لبنان، ترکیې او مصر په څېر په کابل کې هم خالص امریکایي پوهنتون جوړ کړ، چې هر څه ورکې په امریکایي معیارونو برابر تر سره کېږي.
امریکا غواړي په افغانستان کې داسې ځوانان وروزي چې یوازې نومونه یې د افغانانو وي خو فکر، فرهنګ، عقیده، ژبه، دود او بالآخره د ژوند هر اړخ یې امریکایي وي، تر څو له زړه په پوره اخلاص د افغانستان په راتلونکي کې د امریکایانو د بېلابېلو اهدافو او اجنډاوو لپاره کار وکړي.
که داسې نه وي نو هغوئ ولې د موجودو پوهنتونو د میعار او ظرفیت د لوړولو پخاطر له دغو پوهنتونو سره اکادیمیکې مرستې نه کوي؟
د پوهنتونونو ځوانان د یرغلګرو په مقابل کې د ملي پاڅونونو او د هېواد په سیاسي ژوند کې د ملا د تیر اهمیت لري.
د پوهنتونونو مسلمانو ځوانانو له دوه زره یوولسم میلادي کال څخه راپدې خوا په ټوله عربي نړۍ کې چې د مستبدو او سیکولرو حکامو له لوري اداره کېږي داسې جهادي او اسلامي حرکتونه پیل کړل چې د ډېرو طاغوتي حکامو تختونه یې ولړځول او لانور یې هم لړځوي.
که له یوې خوا د پوهنتون ځوانان د هېواد روښانه مستقبل او ازادۍ ضامنان ګڼل کېږي نو له بلې خوا دغه ځوانان په پوهنتوني محیط کې له ډېرو ستونزو سره هم مخ دي چې څو یې په لاندې ډول یادوو:

## په پوهنتوني محیط کې د مسلمانو ځوانانو ستونزې

**۱ –د سازماني انسجام نشتوالی:**

وروسته له هغه چې پخواني جهادي تنظیمونه د انحرافونو او بېلابېلو عواملو په نتیجه کې د قیادت له صحنې ووتل او اکثره یې د روسانو او یا د امریکا په غلامۍ او خدمت اخته شول په ځوانانو کې تحریکي انسجام او سازماني بهترۍ هم خپل ځای له غربه راواردو شوو او سرچینه اخیستونکیو ارګانونو او ټولنو ته پرېښود چې د Westernization (غربي کولو) په کار کې په پوره زور او شور په کار اخته دي.

مسلمان ځوانان هر یو د اسلام او هېواد د خدمت لپاره په زړه کې پخه اراده او ارمان لري خو د دغه ارمان له چا سره د شریکولو منظم مواقع په لاس نه ورځي. او که کله نا کله یوه نیمه غونډه او یا مجلس له چا سره وکړي نو د تپل شوې اداري لخوا په یوه او بل نامه تورن کېږي، او د فعالیت مخنیوی یې کېږي. او دا پداسې حال کې چې په ټوله نړۍ کې د محصلینو اتحادیې د سیاسي او فکري فعالیتونو قانوني حق لري.

**۲ - د غرب د فرهنګي یرغل په مقابل کې د اسلامي نشراتو او مطبوعاتو نشتوالی:**

په افغاني ژبو کې هسې هم د اسلامي، فکري او اخلاقي کتابونو، مجلو او نشراتو کموالی لیدل کېده. او هغه یوه برخه مطبوعات چې د جهاد او هجرت په کلونو کې د ځینې تنظیمونو او فرهنګي جهتونو له لوري لیکل شوي او یا چاپ شوي وو هغو ته هم د هغو د لیکونکو او مؤلفینو د منفي دریځونو له امله لویه صدمه ورسېده چې اوس یې هر څوک لیکوال د امریکایانو او یا نورو یرغلګرو په خدمت کېویني نو د هغه پر کتاب یې هم هېڅ باور نه کېږي. د مثال په ډول د شهراني، رباني، سیاف او لسګونو نورو لیکوالانو کتابونه د هغوئ د نااسلامي مواقفو له امله مسلمانو

ځوانانو او د جهاد او آزادۍ د لارې لارویانو ته نور هغه پیغام نشي ورکولای چې یو وخت یې ورکاوه.
له بل لوري دکابل د ادارې د اطلاعاتو او فرهنګ وزارت په ټولو هغو کتابونو چې د غرب د لوېدلي او الحاد ځپلي فرهنګ عیبونه یې مسلمانانو ته څرګند کړي دي بندیز لګولی دی ترڅو ځوانان د اسلامي نړۍ د اسلامي تحریکونو د مثبتو تجربو له نتائجو څخه بې خبره وساتي.
خو په مقابل کې یې د مطبوعاتو، راډیوګانو، تلوېزونونو او د سلګونو انټرنټي وېبپاڼو له لارې د غرب د مبتذل فرهنګ داسې یو خطرناک سیلاب د افغاني ټولنې پر ځوانانو راخوشې کړی دی چې که د اسلام د سپېڅلي فرهنګ په خپراوي یې مخه ونه نیول شي نو په نږدې راتلونکي کې به افغاني ځوانان له خپل هر څه پردي شي.
خو ځوانان کولای شي دغه تشه په دیني حلقاتو، لکچرونو، نوټونو، د قرآن او حدیث په اونیزو درسونو او د انټرنیټ له اسلامي ویب سایټونو څخه په استفادې ډکه کړي.
له بل لوري د پوهنتونونو مسلمان ځوانان د ډېر څه لیکلو او خپرولو توان لري چه لاس په لاس یې مشران کشرانو ته رسولای شي. دغه ډول تجربه یو ځل په ترکیه کې هغه وخت تکرار شوه چې کله (کمال اتاترک) او ورپسی (عصمت اینونو) د سیکولر ترکیې جمهورو رئیسانو د ترکیې خلک له اسلام څخه محروم کړل. خو هغه وخت د پوهنتونو او مکاتبو ځوانانو او پیغلو په میلیونونو نسخې د (بدیع الزمان سعید نورسي) د (رسائل النور) ایمان پالونکې رسالې په لاس لیکلې او لاس په لاس یې سره یو بل ته رسولې.
**۳ - نشنلزم او نشنلست حرکتونه**:
غربیان د خپلې زړې استعماري سیاسي حربې چې وایي: (بیل یې کړه ایل یې کړه) په عملي کولو غواړي د هېواد په پوهنتوني ماحول کې یو ځل بیا ځوانان د نشنلزم او توکم پالنې خوا ته سوق کړي. هغوئ پدې کار کې له

ستمیانو، پرچمیانو، افغان ملتیانو او نورو نشنلستو ډلو څخه کار اخلي او د هغوئ په وسیله ځوانانو ته د نشنلزم (توکم پالنې) نظریه ورکوي تر څو په آسانه د هېواد د پوهنتونو ځوانان د اسلام او هېواد له علیا مصالحو غافل او په خپلمنځي اختلافاتو یې اخته کړي.

د ژبو، سمتونو او قومونو پراساس د خلکو وېشل د اشغالګرو او یرغلګرو کار دی. اسلام په قطعي ډول د دې نظریې مخالف دی. په اسلام کې تر ټولو غوره هغه څوک دی چې د ډېرې تقوا لرونکی او الله ﷻ ته نږدې وي.

د هېواد د پوهنتونونو او مسلکي زده کړو ځوانان چې د سبا چارواکي او حاکمان دي باید د دښمنانو د دغه ډول فتنو ښکار نه شي، او پرېنږدي چې دښمن یې په یوه او بل نامه سره و ویشي. ځکه افغانانو په تېرو کلونو کې د دغه ډول وېشونو ترخې پایلې ولیدلې چې هېواد یې وران او واک یې پردی شو. نور باید مسلمان ځوانان دې موضوع ته په جدي ډول متوجه وي.

## د اسلامي امت د ذلت له اسبابو او عواملو څخه

له ډېرې مودې راهیسې په نړۍ کې اسلامي امت د ذلت او کمزورتیا لورې ته روان دی او دا پداسې حال کې چې الله تعالی دې امت ته غوره امت ویلی دي.
اسلامي امت په پیل کې یو پرمختلونکی، فاتح او د خپل واک او حاکمیت لرونکی امت وو، خو اوس یې بچیان کله د یوه زبرځواک تر تسلط لاندې د ذلت شپې تیروي او کله د بل. د دې لپاره چې د ذلت او بېرته پاتې والي په علتونو پوه شو او د هغو د لیرې کولو هڅه وکړو د امت د ذلت او ضعف ځینې اسباب او عوامل د اسلامي امت د مفکرینو د لیکنو له مطالعې څخه په استفادې په لاندې څو نقطو کې په مختصر ډول تشخیصوو:
د امت د بیرته پاتې والي او ذلت عوامل :
١- **د خلافت سقوط**: د رسول الله ﷺ له وفات راهیسې اسلامي امت د خلافت ترسیوري لاندې ژوند کاوه، او همدغه سلسله تر ١٩٢٤م کال پورې په بېلابېلو شکلونو کې په امت کې روانه وه.
د خلافت نظام مسلمانان په سیاسي لحاظ سره یو کړي او په دفاعي لحاظ یې ټول امت د دښمن په مقابل متحد ساتلی وو. د خلافت تر سیوري لاندې د ټولې اسلامي نړۍ مسلمانانو ځانونه د یوې امت غړي ګڼل. د وطنونو، ژبو، رنګونو، مذاهبو او قومونو جلا والي ځکه دوئ یو له بله نه ووجلا کړي چې ټولو ځانونه تر ډېره وخته د یوه سیاسي نظام اتباع ګڼل، او د سیاسي تصامیمو مرجعیت یې یو وو. دښمن به چې له مراکش څخه تر اندونیزیا پورې مسلمانانو ته د یوه امت په حیث کتل نو له هغوئ څخه به یې سترګه سوځېده او مسلمانانو په خلاف به یې د څه اقدام جرأت نشو کولی. نو هماغه وو چې فیصله یې وکړه چې د خلافت نظام باید په

اسلامي امت کې له منځه یوړل شي ترڅو مسلمانان له داسې قوته محروم کړي چې اوږده موده يې امت د کفارو په مقابل کې ځواکمن ساتلی وو.
دښمن د خلافت د له منځه وړلو لپاره په بېلابېلو مرحلو کې له بېلابېلو دسیسو او توطیو څخه کار واخیست، تر دې چې په ۱۹۲۴م کال کې د مسلمانانو وروستی خلافت د یوه یهودي الاصله مسلمان ډوله پوځي حاکم (کمال اتاتورک) لخوا لغوه اعلان شو.
د خلافت د له منځه وړلو چارې په حقیقت کې برتانیې د ټولې اروپا په ملاتړ تر سره کړې، او د اسلامي امت ځینې خاینو او غدارو حکامو هم مرسته ورسره وکړه. نامسلمانه اقلیتونو او له اروپایانو څخه متأثره نشنلستو رهبرانو او مفکرینو هم په دغه ستر جنایت کې ونډه واخیسته او هغه په پداسې شکل چې د اسلامي امت په نوي نسل کې یې د قومیت، وطنیت او ژبنیو بېلتونونو شعارونه پورته کړل، تر دې چې ستر مسلمان امت یې په همدغو شعارونو او معیارونو ټوټه ټوټه کړ، او هره ټوټه یې یو بیل اروپایې هېواد لاندې کړه، او پر هغې یې یا خپله مستقیمه واکمني ټینګه کړه، او یا یې خپل هغه فکري غلامان ورباندې حاکم کړل چې د همدې کار لپاره یې روزلي ول.
اروپایې استعماري دولتونو په اسلامي نړۍ کې خپل فکري غلامان د (سیکولریزم) په نظریه روزلي دي، او سیکولریزم هغه نظریه ده چې نه غواړي د انسانانو د ژوند چارې دې د الهي وحي پر اساس تنظیم شي.

**۲– (سیکولریزم) یا د دین او د دولت بیلتون:**

د مسلمانانو په فکري او عملي ژوند کې د (سیکولریزم) حاکم کېدل د اسلامي امت د ذلت او بېرته پاتې والي یو بل عامل دی، او هغه ځکه چې انسانان او نړۍ د الله تعالی مخلوق دي، او الله تعالی تل د خپلو بندګانو د چارو د تنظیم او د هغوئ د لارښوونې لپاره انبیاء او اسماني کتابونه رالیږلي دي چې د هغو په ذریعه یې بشریت ته د انساني ژوند د چارو د پرمخ بیولو اصول او قوانین ورښودلي دي.

او هر کله چې بشریت د انبیاؤ او اسماني کتابونو د تعلیماتو په رڼا کې خپلې چارې تنظیم کړې دي نو هم د الله تعالی د رحم او کرم مستحق ګرځېدلي، او هم یې پر زمکه بشري ژوند په عافیت او خیر کې تېر شوی دی. خو کله یې چې له هغو څخه سرغړونه کړې ده، نو په ډول ډول اسماني او زمکنیو مصیبتونو او عذابونو اخته شوي دي.
د دې امت مسلمانانو هم چې تر کومه وخته د خپل انفرادي، اجتماعي، سیاسي، اقتصادي او پوځي ژوند چارې د شریعت پر اساس تنظیمولې نو دوئ هم په نړۍ کې د یو فاتح، پرمختللي او عزتمند امت په توګه اوسېدل. خو له کومې ورځې یې چې لدې تګلارې انحراف کړی له هماغې ورځې له ذلت او ضعف سره مخ شوي، او د ژوند د چارو واګې یې هم د پردیو لاس ته ورغلي دي.
ډېر دردونکی حالت خو لا دا دی چې په ملیونونو مسلمانان هم د غربي ډوله تعلیم د تأثیر له امله د (سیکولریزم) د کفري نظریې پلوی کوي، او د اسلامي شریعت پر ځای یې د حاکمولو لپاره کوښښونه او عملي کار هم کوي.
دغه ډله خلک د ناپوهۍ او یا هم له اسلام سره د عناد له امله دا استدلال کوي چې غرب هغه وخت مادي ترقي وکړه چې د انساني ژوند چارې یې د دین له تسلط څخه آزادې کړې، او د دین او دولت تر منځ یې د بیلتون نظریه حاکمه کړه. خو هغوئ یا لدې خبرې غافل دي او یا نه غواړي دا حقیقت ومنې چې په غرب کې چې د (دین) په نامه د انسانانو په ژوند کې چې څه مسلط ول هغه په حقیقت کې (الهي دین) نه ؤ، بلکې هغه د تحریف شوي مسیحیت د منحرفو (پاپانو) شخصي نظریات ول چې د خپل استبداد د حاکولو په مقصد یې پر غربي ټولنې مسلط کړي وو. نو ځکه خو هلته غربیانو حق درلود چې د(کلیسا)له منحرفو نظریاتو او د (پاپانو) له استبداده ځان خلاص کړي.

خو د دې پر ځای چې غربي مفکرين خپله ټولنه د اسلام د حق دين ښېګڼو او حقانيت ته وروبولي له خپلو مطلقو مادي او شهواني غوښتنو او له الله ﷻ څخه د بغاوت پر اساس له را ولاړو شويو نظرياتو يې هغوئ ته د (سيکولريزم) نوی (دين) ورجوړ کړ، او پدې ډول يې د غربي ټولنې افراد د (کليسا) له استبداده خلاص کړل، خو په عين وخت کې يې د حق دين (اسلام) له منلو څخه هم محروم کړل.

په اسلامي نړۍ کې سيکولريزم په ټوله معنی يوه (پردۍ نظريه)ده چې د مسلمانو له خپل وياړلي او ځلاند تاريخ څخه د پردي کولو يوه توطيه ده. ځکه چې د (سيکولريزم) معنی په اسلامي ټولنه کې يوازې او يوازې دا کېدلی شي چې مسلمانان دې د الله ﷻ د کتاب او د رسول الله ﷺ د احاديثو احکام د خپل ژوند په چارو کې له پامه وغورځوي، او په هغه څه دې فيصله کوي چې د دوئ نفسونه يې غواړي، چې د دې نظريې منل په حقيقت کې له اسلامه د وتلو او مرتد کېدلو په معنی دي.

اسلام يو مکمل دين دی چې د ژوند ټولې چارې په ښه ډول تنظيموي، او په هېڅ صورت کې يو مسلمان ته دا اجازه نه ورکوي چې له (اکراه) او (اضطرار) پرته دې د اسلام کوم حکم پرېږدي.

خو اوس چې ټول مسلمان هېوادونه په يوه او بل ډول د غرب تر تأثير او يا هم حاکميت لاندې دي، او غربيان غواړي چې مسلمانان دې تل همداسې د دوئ تر حاکميت لاندې پاتې وي، نو ځکه خو نه پرېږدي چې د مسلمانانو په ژوند کې دې بېرته اسلام حاکم شي. له همدې امله خو غرب د خپلو فکري غلامانو او سيکولر پوځونو په زور د (سيکولريزم نظريه) پر مسلمانانو ورتپلې ده.

غرب پدې پوه دی چې هرکله چې اسلام د مسلمانانو په ژوند کې بېرته حاکم شي نو په هماغه ورځ به مسلمانان بيا قوي کېږي، او د غرب له تأثير او تسلط څخه به ځان خلاصوي چې دا بيا هېڅکله غرب ته د ملنو نه ده. نو پر همدې بنا ويلی شو چې د(سيکولريزم نظريه) د مسلمانانو د

تسخيرولو لپاره د غرب هغه ناپوځي وسيله ده چې ټوله اسلامي نړۍ يې د ژوند په هره ساحه کې د غرب تر تسلط لاندې راوستلې ده، او يوه ډېره برخه اسلام ته منسوب خلک يې د هغې له لارې له زړه پدې قانع کړي دي چې شريعت بايد په اسلامي ټولنه کې نافذېدلو ته پرېنښودل شي، او هر خير بايد د غرب له لوري په وضع شوو قوانينو او معيارونو کې ولټول شي. او پدې ډول دغې نظريې د امت بچيان له يوې رواني (روحي) ماتې سره مخ کړي دي.

**۳- روحي شکست او د کمترۍ احساس :**

د اسلامي امت د ذلت او کمزورۍ يو بل عامل د دښمنانو په مقابل کې د رواني (روحي) ماتې او د هغوئ پر وړاندې د کمترۍ احساس يا د (اقبال) په اصطلاح د (خودۍ د احساس) له منځه تلل دي.

په اسلامي امت کې د دښمن په مقابل کې د روحي قوت احساس او له دښمن څخه نه مرعوب کېدل هغه قوت وو چې تل يې د الله ﷻ په فضل د هغه په لرلو په لږو مجاهدينو هم د ډېرو لويو لښکرو او سترو دولتونو مقابله کړې او برى يې حاصل کړى دى.

د اسلام دښمنان پدې خبره پوه شوي دي چې په مسلمانانو کې تر مادي قوته د روحي د برلاسۍ احساس ډېر مهم دى. نو له همدې امله يې په اسلامي نړۍ کې د ګوډاګيو حکومتونو او د غرب په لارښوونه د چلېدونکو احزابو او اجتماعي او مدني بنسټونو له لارې په تعليمي نصابونو، مطبوعاتو، قوانينو او ادبياتو کې دې خبرې ته زور ورکړى چې مسلمانان د غرب په مقابل کې کمزوري دي، او که غواړي چې له کمزورتيا ووځي نو بايد غرب په استاذۍ ومني، او د هغه پر برلاسۍ باور ولري.

دغو پردې پالو جهتونو د غرب مادي او پوځي پرمختګ اسلامي امت ته له حده زيات لوى معرفي کړ، او دا خبره يې مسلمانانو ته ورتلقين کړه چې

هغوئ هېڅکله هم د اروپايي او امريکايي قوتونو د مقاومت توان نه لري، ځکه چې هغوئ په هر لحاظ تر مسلمانانو زور ور دي.
دغه ډول نظرياتو او تبليغاتو د اسلامي امت په هغو نسلونو کې چې د اروپايي استعمار او يا د هغو تر تأثير لاندې د چلېدونکو حکومتونو په وختونو کې را لوی شول د دښمن په مقابل کې د «روحي ماتې» احساس پيداکړ، او مخکې تر دې چې له دښمن سره په جګړه کې ښکېل شي هغه ته ورتسليم شول. نه يوازې دا چې ورتسليم شول، بلکې د دښمن په صف کې درېدل يې د ځان لپاره افتخار وګڼه، او له خپلې فاتحانه ماضي څخه انکار يې د تمدن او پرمختګ لپاره ضروري وګڼل. او بالاخره له دښمن څخه د وېرې او رعب په هغه مرض اخته شول چې مخکې د اسلام دښمنان ورباندې اخته ول، هغه چې رسول الله ﷺ فرمايلي چې دښمن له مونږ څخه د يوې مياشتې مسافې په ليرې والي هم رعب احساسوي.

۴- **ناپوهي او په اسلامي او تجربوي علومو کې بېرته پاتې والی :**

جهل او په شرعي او دنياوي علومو کې د مسلمانانو کمزورتيا هم د اسلامي امت د ذلت له عواملو څخه يو عامل دی. دغه عامل هغه وخت رامنځته شو چې د شرعي مدارسو له نصاب څخه سياسي او تجربوي علوم او د تجربوي مدارسوله نصاب څخه شرعي علوم وويستل شول، چې په نتيجه کې يې د شرعي علومو په درلودونکو کې د دنياوي علومو او سياسي پوهې صلاحيتونه رامنځه نشول، او دغه ډګر داسې خلکو ته ورپاتې شو چې نه يې په زړونو کې له الله ﷻ څخه وېره وه، او نه يې هم پر بشريت ترحم درلود. هر څه يې د خپلې خېټې او شهوت لپاره زده او بيا استعمال کړل، بلکې تر ډېره يې خپل علم او تجربه د اسلام د دښمنانو په ګټه وکاروله.
او هغو چې په دنياوي مکاتبو کې تجربوي او سياسي علوم حاصل کړل، هغوئ بيا له خپلو ديني، شرعي، اخلاقي، اجتماعي او ملي مسؤليتونو

بې خبره پاتې شول، او د ديني او ملي احساس د نه درلودلو له امله د دښمن د ماشين د پرزو په حيث استعمال شول.
د اسلامي علومو نصابونه هم له خالصو شرعي علومو لکه قرآن، تفسر، حديث، اسلامي عقيدې، مقارنې اسلامی فقهې، سيرت النبي، اسلامي تاريخ، اسلامي سياسي علومو او په هره زمانه کې د دښمن په اړه له معلوماتو خالي شول او ځای يې بېرته پاتې منطقو، خيالي ادبياتو، بې ضرورته ګرامري او لغوي ابحاثو، د تصوف په نامه له نورو دينونو او نظرياتو څخه راواردو شويو فلسفو او حتی چې کله نا کله حرفوي تعويذ ګرۍ، فالبينتوب او د خلکو د اموالو د تروړلو لپاره (تجارتي روحانيت) ونيو.
د دغه مسخ شوي ديني تعليمي نصاب په نتيجه کې د ملايانو او ديني علومو ته د منسوبې طبقې داسې يو نسل رامنځته شو چې د دين له حقيقي روځ څخه ناخبره، او له خپل ديني مسؤليت څخه چې د بشريت لارښوونه او د فساد مخنيوی دی غافل وو. او د دې پر ځای چې دغه خلك په ټولنه کې د فساد مخنيوی وکړي، او د مفسدو او واردو شويو بې لارې نظرياتو په خلاف مقاومت وکړی، دوئ هم د ټولنې د مفسدينو مزاج او له دين څخه د ناخبره اکثريت رواجونو ته ورتسليم شول.
د روحانيت او ديني علماوو دغه ډول مسخ شوي شکل نه يوازې په ټولنه کې د فساد مخنيوی ونه کړای شو، بلکې په خپلو غلطو کړنو، بې بنسټه نظرياتو او کاږه فهم يې اسلام او شريعت هم بدنام کړ، او د دين دښمنانو ته يې پر دين د اعتراض فرصت هم ور برابرکړ.
له بلې خوا مفسدو او مستبدو حکومتونو هم هڅه وکړه چې دغه ډول مسخ شوي نظريات خلکو ته د اسلام په نامه ورمعرفي کړي، چې پدې کار سره يې دوه فائدې تر لاسه کړې: يوه دا چې پدې کار يې د حقيقي اسلام د نافذېدلو مخنيوي وکړ، او بله دا چې هر هغه څوک چې د ريښتيني اسلام لپاره يې دعوت کاوه او د هغه د نافذولو هڅه يې کوله هغه يې خلکو ته د

توندلارو، افراطي، د ټولنې له اجتماعي فرهنګ څخه دوتلیو علماؤ په حیث ورمعرفي کړل، او خلک یې د هغوئ په خلاف راوپارول، او هغوئ یې په بېلابېلو نومونو له ټولنې څخه تجرید کړل، او د هغوئ پر ځای یې هغه خلک ټولنې ته د علماؤ په حیث وړاندې کړل چې د غرب له پوهنتونو او یا هم په شرق کې له هغو پوهنتونونو فارغ شوي چې نصابونه یې د غربیانو په خوښه جوړ شوي دي.
په مجموعي ډول په امت کې د نافع علم او رغوونکو نظریاتو کموالی او ضعف د اسلامي امت د ذلت له خطرناکو عواملو څخه شمېرلی شو.
**۵– نشنلزم او وطنیت:**
د اسلام تر راتګ د مخه بشریت د بېلابېلو اختلافونو له امله د تفرق، جګړو او د بېلابېلو قومونو ترمنځ د کشمکشونو له مصیبت سره مخ وو. د نړۍ قومونو په خپل منځ کې د سره یوځای کېدلو او یو امت کېدلو لپاره مشترک مفاهیم نه درلودل. په ډېرو وړو وړو سببونو به د قومونو او حکومتونو ترمنځ جګړې پېښېدلې، او بیا به یې په لسګونو او یا هم سلګونو کلونو دوام کاوه. ځینې قومونو به پر ځینو نورو د تفوق دعوی درلوده، او مخالف لوري ته به یې د غلامانو په سترګه کتل، چې باید په هر حالت کې د دوئ طاعت وکړي.
په همدغه ډول حالاتوکې الله ﷻ پر محمدﷺ د اسلام مبارک دین نازل کړ، چې ټولو انسانانو ته یې د انسان په سترګه وکتل، او د هغوئ ترمنځ د تفاضل او برترۍ معیار یې یوازې (تقوی) وټاکله.
اسلام ټول مسلمانان سره وروڼه کړل. د تور، سپین، سره او زیړ رنګ لرونکو انسانانو تر منځ یې تفاوت له منځه یووړ. عرب، ترک، تتار، آسیایي، اروپایي او د بل هر ځای مسلمانان یې د یوه امت بچیان کړل. له (تقوی) پرته پر بل هر څه فخر کول او د هغه پر اساس ځان له نورو غوره ګڼلو ته یې (جاهلیت) ووایه. هماغه وو چې ټول مسلمان قومونه چې هغه که د هرې سیمې او ژبې مربوط ول په یوه امت تبدیل شول، چې دین یې

یو، د عبادت ژبه یې یوه، رسول یې یو، قبله یې یوه، سیاسي او اجتماعي ارزښتونه یې یو او د حاکمیت ممثل او سیاسي قیادت یې یو شو.
دغه یو والی تر ډېره حده د اسلام داخلي او خارجي دښمنانو ونشو زغملی، نو د بېلابېلو توطیو په ذریعه او د رنګارنګ فتنو په راولاړولو یې بېرته د اسلامي نړۍ مسلمانان پر قومونو، سیمو او سیاسي تشکّلاتو وویشل. تر دې چې په شلمه میلادي پېړۍ کې اروپایانو د خپل استعمار په دور کې اسلامي نړۍ ته د (معاصر نشنلزم) خطرناک سرطان هم راصادر کړ.
معاصر نشنلزم لومړی مسلمانان پر عرب او ترک باندې سره وویشل. او بیا وروسته په اسلامي نړۍ کې بېلابېل نشنلست حرکتونه لکه عربي نشنلزم، ترکي نشنلزم، هندي نشنلزم، فارسي نشنلزم، کردي نشنلزم، پښتني نشنلزم ، مغلي او هزاره ګي نشنلزم او نور نشنلزمونه رامنځته شول. دغه ټول نشنلزمونه لاندې مشترک مشخصات لري:
۱ - ټول نشنلست حرکتونه او پیروان یې له اروپایي افکارو لکه کمونیزم، سیکولریزم او لیبرالیزم څخه متأثره دي.
۲ - ټول نشنلست حرکتونه او اتباع یې له اسلام سره دښمني لري، او نه غواړي چې په هېوادونو کې یې دې اسلامي شریعت حاکم شي. ځکه چې د شریعت د حاکمیت په صورت کې بیا نشنلزم په خپله له منځه ځي.
۳ - ټول نشنلست حرکتونه د اروپایانو په لمسون له خپلو مرکزي دولتونو سره په اختلاف او جګړه کې دي، او هر یو یې له مرکز څخه د تجزیې غوښتونکي دی.
۴ - ټول نشنلست حرکتونه ا و د هغو اتباع په تاو تریخوالي باور لري. او هڅه کوي چې د زور او تشدد له لارې خپل خصم او مقابل لوری له منځه یوسي. ځکه چې په نشنلستانو کې له نورو قومونو سره د مشترک ژوند ظرفیت نشته.

**۵** – ټول نشنلست حرکتونه دخارجي دښمن د يرغل په وخت د دښمن په صف کې درېږي. او خپل ټول وسائل د يرغلګر دښمن په خدمت کې استعمالوي. ځکه چې نشنلستان پدې فکر وي چې د بهرني دښمن د شتون او د هغه د حاکميت په صورت کې له مرکز څخه خپله آزادي او د دوئ په اصطلاح خپل حقوق ښه حاصلولی شي. نو بايد د دښمن په قوت ځان تقويه کړي، او هغوئ ته په خدمت کولو، تجسس او نورو ذليلو کارونو هغوئ ته ځای ورنږدې او باوري کړي.

خارجي دښمن هم هڅه کوي چې همدغه متعصب اقليتونه او نشنلست حرکتونه په غېږ کې ونيسي، ويې پالي، او تقويه يې کړي، تر څو د همدوئ له لارې پر قوي اکثريت او مرکزي دولتونو غلبه حاصله کړي.

د پورتنيو مشخصاتو مصداقونه په څو څو ځله په اسلامي نړۍ کې په عربي، فارسي، ترکي، کردي، هندي، ازبکي، هزاره ګۍ، بلوچي او پښتني نشنلستانو کې وليدل شول. او همدا اوس هم په سيمه کې ټول نشنلست احزاب او حرکتونه د يرغلګرو امريکايانو ترڅنګ ولاړ دي، او د اسلام د مجاهدينو په خلاف د هغوئ مرسته کوي.

اروپايانو د نشنلستانو پاللو ته ځکه زړه ښه کړ چې هغوئ د اروپايانو ډېر پخوانی ارمان چې د اسلامي امت ټوټه ټوټه کول وو ور پوره کړ.

د معاصر نشنلزم له راټوکېدلو مخکې به چې هر ځل اروپايانو پر کوم اسلامي هېواد يرغل وکړ نو د نورو هېوادونو مسلمانانو به هرو مرو د هغه هېواد د اوسيدونکو مرسته کوله، ځکه چې هغه به يې خپل وروڼه ګڼل، او د هغوئ پر وړاندې به يې د دفاع او نصرت مشترک مسؤليت احساساوه.

خو اوس چې نشنلستانو اسلامي نړۍ د قومونو، ژبو، جغرافيوي موقعيتونو او نورو معيارونو پر اساساتو وېشلې ده، د مسلمانانو تر منځ يې د اسلامي اخوت د احساس پر ځای د (نشنلزم) زهرجن فکر ته وده ورکړې ده او هغه يې تر هر څه مقدس ګڼلی، او د اسلام د دين او د مسلمانانو د ديني مقدساتو پر ځای يې ورته د جاهليت د زمانې پاتې

شوني تاريخي آثار او د و (طنيت) تصور تر هر بل تصوره ارزښتمن معرفي کړي دي، نو ځکه خو اوس کفار هر هېواد په آسانۍ لاندې کولی او ايل کولی شي. او د دې کار علت يې هم دا دی چې د هر هېواد اوسېدونکي اوس يوازې د خپلې خاورې په اړه ځان مسؤول ګڼي نه د ټول امت او ټولې اسلامي نړۍ په اړه. او دا د اروپايانو هغه تاريخي ارمان وو چې د پوره کېدلو لپاره يې هغوئ په سلګونه کلونه هڅې کړې وې، خو اوس دا دی نشنلستانو او د (وطنيت) بنده ګانو په مفته ورته تر سره کړ.

په شلمې او يوويشتمې ميلادي پېړۍ کې ښايې نشنلستان او د (وطنيت) د عقيدې لرونکي د امت په حق کې تر ټولو لوی مجرمين وي، ځکه چې همدوئ په لږه موده کې امت دومره کمزوری او ټوټه ټوټه کړ چې اروپايانو په سلګونو کلونو کې هم دومره نه وو کمزوری کړی او تقسيم کړی.

نشنلستان په اسلامي امت کې د دښمن د داخلي پوځيانو حيثيت لري، او په هېڅ صورت د اسلامي امت د تقويې، پرمختګ، سرلوړۍ او په نړيواله سطحه له نورو قوتونو سره دسيال کېدلو اجنډا او نظريه نه لري.

**۶ - ماديت، له دنيا سره بې حده مينه، او له مرګ څخه وېره:**

د اسلامي امت د ذلت او خوارۍ له عواملو څخه يو هم د ډېرو مسلمانانو له لوري د خالصو مادي تصوراتو خپلول او له مرګ څخه وېره ده. په تېرو پېړيو کې اسلامي امت خپل پرمختګ، برلاسی او نړيوال منلی حيثيت د خپلو معنوي ارزښتونو د لرلو له امله حاصل کړی وو، که داسې نه وي نو په مادي لحاظ خو مسلمانان اوس تر پخوا څو برابره ډېر پرمختللي دي، خو نه خپل واک او آزادي لري، او نه يې هم څوك په نړيوالو تصاميمو کې رأيه پوښتي. او که څه خبره و هم کوي نو څوک يې خبرې ته غوږ نه ږدي.

مسلمانانو په ورستيو دوو پېړيو کې معنوي ارزښتونو او ميعارونو ته خپله توجه کمه کړه، ګټې او تاوان ته يې يا د (مادي کمونيزم) او يا يې هم ورته د (مادي کپټاليزم) له ليدلوري وکتل. نتيجه يې دا راووته چې پخوا به چې مسلمانانو کوم څه ته ګټه ويله نن يې هغه تاوان وباله، او کوم شي

ته به يې چې تاوان وايه هغه يې نن خپله ګټه و بلله. د ګټې او تاوان د پيژندلو او سنجولو معيارونه يې پردي شول، نو ځکه خو يې ډېر د حقيقي ګټې کارونه لکه جهاد ، صدقه، احسان، دينداري، عفت، تقوی، غيرت او نور د خير کارونه پريښودل، او د هغو پر ځاي يې د سرمايې ټولولو، د غلامۍ قبلولو، بخل، سود ، سيکولريزم (بې دينۍ) فيشن (لنډغرتوب) تګې او د شخصي آزاديو په نامه د بې غيرتۍ کارونو ته توجه وکړه.
د جهاد او قربانۍ احساس چې د مسلمان امت امتياز وو او د همدغه امتياز په لرلو يې ځان د نړۍ په ملتونو کې سر لوړی ساتلی وو، هغه هم په مسلمانانو کې کمزوری شو. د قربانۍ ميدان ته د ورتللو د جرأت پر ځای يې په نفسونو کې له مرګه وېرې ځای ونيو، هماغه وو چې په خپله يې د خپلې دفاع سنګرونه خالي کړل، او له مادياتو او د خوندونو له ژوند سره يې کچې مينې د عزت او سرلوړۍ له ټولو امتيازاتو بې برخې کړل.
حکامو هم د دې پر ځاي چې د امت بچيان په پوځونو او امنيتي جوړښتونو کې د جهاد او قربانۍ په روحيه له دين او وطن څخه د دفاع لپاره سمبال کړي وای، هغوئ د مسلمانانو په ميليونونه پوځونه او پوځيان د دښمن په نصاب او نظرياتو وروزل، او له کفارو سره يې په مشترکو پوځي تړونونو کې شامل کړل ، چې دا دی اوس يې وينو چې په لکونو د مسلمانانو زامن ځوان پوځيان د غرب د ګټو لپاره د خپلو ولسونو او آزادي غوښتونکو اسلامي نهضتونو په خلاف جنګېږي. له موږه يې خوري او اغوندي، خو د بل چا لپاره جنګېږي، او د بل چا لپاره مري.

## د رسول الله صلی الله علیه وسلم او اسلام په خلاف د غرب مشترک جنایات

د انبیاؤ په تاریخ کې تل لیدل شوي چې هر کله چې د باطل لورى د دلیل او منطق په میدان کې پاتې راغلی نو بیا یې د انبیاوو علیهم السلام په شخصیتونو پورې ملنډې وهلي او په هغوي پورې یې په دې نیت مسخرې کړي چې که د هغوئ له حقانیت څخه د څه مودې لپاره د خلکو پام واړوي.
خو د دې کار نتیجه تل د باطل د توقع په خلاف د انبیاؤ علیهم السلام په ګټه راوتلې ده، او په انبیاؤ پورې مسخره کوونکي خلك او قوتونه هلاك شوي او ذلیل شوي دي.
کله چې د رسول الله ﷺ د زمانې کفارو د هغه په شخصیت پورې په همدې نیت مسخرې شروع کړې، نو الله تعالی ورته د تسلۍ پخاطر دا آیت نازل کړ: (و لقداستهزئ برُسل من قبلك فحاق بالذین سَخِروا منهم ما كانوا به یستهزؤون) سورة الأنعام آیت۹.
ترجمه :( ترتا د مخه په نورو پیغمبرانو پورې هم مسخرې شوې وې، بیا نازل شو په مسخره کوونکو عذاب د دوئ د مسخرو د عاقبت او پایلو په ډول).
الله تعالی کټ مټ همدغه آیت په سورة الأنبیاء کې بیا هم نازل کړی.
کېدای شي چې د انبیاؤ په حق کې دغه بې ادبه خلك سمدستي په کوم عذاب اخته نشي، خو دا پدې معنی نه ده چې الله تعالی به هغوئ ته هېڅ نه وایي، بلکې الله تعالی فرمایي: (و لقداستهزئ بِرُسُل من قبلك فأمليتُ للذین كفروا ثُمّ أخذتُهم فكیف كان عقاب ). سورةالرعد /۳۲.
ترجمه: (تر تا د مخه په نورو انبیاؤ پورې هم ملنډې وهل شوې وې، ما مهلت ورکړ ملنډو وهونکو کفارو ته، او بیا مې ونیول په عذاب، بیا نو زما عذاب څنګه ؤ!؟)

د انبیاؤ علیهم السلام د سپکاوي مرتکبین په دنیا کې له ذلیل کېدلو علاوه په آخرت کې یقیناً جهنمیان دي. الله تعالی په سورت الکهف کې فرمایي: ﴿ذلك جزاؤهم جهنم بما كفروا واتخذوا آياتي ورسلي هزوا﴾.
ترجمه: ﴿په انبیاؤ پورې د ملنډو وهونکو جزا جهنم ده د دوئ د کفر او د الله په آیاتونو او انبیاوو پورې د مسخرولو امله﴾.
په اوسنۍ وخت کې چې په (ډنمارك) او نورې اروپا کې څو څو ځله پیغمبر صلی الله علیه وسلم ته منسوب له سپکاوي ډك کارتونونه جوړ او خپاره شول دا هم د اسلام په مقابل کې د دلیل او منطق په ډګر کې د غرب د ماتې او ناتوانۍ عکاسي کوي.
په غرب کې منحرف مسیحیت او مادي الحادي فکر په دلیل او منطق سره د اسلام له مقابلې پاتې راغلی. غربیان اوس خپله ماتې کله په خپلو پوځي یرغلونو او کله هم پر اسلامي مقدساتو په بریدنو پټول غواړي.
غرب تر دې مخکې مرتد هندوستانی (سلمان رشدي) استعمال کړ، او بیا ټول غربي هېوادونه په یوه خوله د هغه تر شا ودرېدل. بل ځل یې سپکاوی کوونکې بنګالۍ مرتدې (تسلیمي نسرین) ته پناه ورکړه. بیا یې د قرآن په خلاف دسیسه جوړه کړه او د (رښتیني قرآن) په نامه یې له الحاد او کفریاتو ډك کتاب رامنځته او خپور کړ.
د پورتنیو جنایاتو ترڅنګ ټول غرب په یوه خوله د جهاد پر مقدسې فریضې د (تروریزم) او وحشت تور ولګاوه، او د مسلمانانو له ذهنونوڅخه یې د دغې فریضې د قدسیت د وېستلو لپاره په زرګونو طریقې او په ملیاردونو ډالر په کار واچول.
دغه ډول حرکتونه ټول د دې لپاره ترسره کېږي چې په اسلامي امت کې د دیني حمیت نبض معلوم کړي، او د هغه په تناسب په خپلو نورو جنایاتو کې زیاتوالی راولي.
د اروپا د دغه جنایت په هکله ځینې غرب پلوې حلقې او په خپله اروپایان دا هڅه کوي چې دغه جنایات د کومې جریدې د شخصي او انفرادي اقدام

په حیث معرفي کړي، خو دا خبره هغه وخت غلطه ثابتیږي چي د دې جنایاتو په هکله خپله د (ډنمارك) او اروپایې ټولنې رسمي دریځونو ته وکتل شي.

د اروپا مشرانو د هغو جرایدو له دریځ څخه چي د سپکاوي کارتونونه یې خپاره کړې ول په مکرر ډول د بیان د ازادۍ په بهانه دفاع وکړه او تر شائې ودرېدل. اوکله چي په اسلامي هېوادونو کي د دغه جنایت په مقابل کې سخت عکس العمل راڅرګند شو او په ډنمارك کې د پنځه دېرشو اسلامي هېوادونو سفیرانو وغوښتل چې د ډنمارك له صدراعظم سره وګوري هغه له غروره ډك موقف غوره کړ او له سفیرانو سره ئې هېڅ ونه لیدل، او د مسلمانو هېوادونو پر دریځ او د تقریبا یونیم ملیارد مسلمانانو پر احساساتو ځان خبرول ئې له خپل شان سره مناسب ونه بلل.

دغه موقف هغه وخت د ټولې اروپا په رسمي موقف بدل شو چي د اروپا د اتحادیې رئیس د (ډنمارك) د صدراعظم د دریځ تأیید وکړ، او د مسلمانانو مظاهرې یې د تأسف او کرکې وړ وبللې. بلکې تر دې هم ورتېر شو، او رسما یې د ډنمارك پر منافعو حمله پر ټولې اروپائې ټولنې حمله وګڼله.

د اروپایې اتحاد له دغه رسمي احمقانه او مغرور دریځ سره د همغږۍاو ولسي ملاتړ په نیت له سپکاوي ډك کارتونونه د نورې اروپا اخبارونو او جرائدو هم په مکرر ډول خپاره کړل، او د مسلمانانو غبرګون ته یې هېڅ اهمیت ورنه کړ، چې پدې کارسره اروپایانو عملا ثابته کړه چې د اسلام او مسلمانانو په خلاف د هغوئ حکومتونه او مېډیا چي د ولسونو ترجماني یې کوي سره مشترك موقف لري.

که له یوې خوا اروپا له خپلو دغو جنایاتو په دفاع کې مشترك دریځ غوره کړ، نو له بلې خوا په ټولې نړۍ کې مسلمانانو هم وښوده چي د هغوئ په زړونو کې لا تر اوسه له محمد صلی الله علیه وسلم سره مینه ژوندۍ او څپانده ده.

مسلمانانو دا هم ثابته کړه چې د غرب بې تهذیبه فرهنګ او په اسلامي نړۍ کې غربي ډوله تبلیغاتو د هغوئ له زړونو د انسانیت د محسن محمد صلی الله علیه وسلم مینه نده وېستلې. هماغه وو چې په میلیونونو مسلمانانو په پرله پسې ډول په مظاهرو او لاریونونو کې برخه واخیسته او شهادتونه یې ومنل چې پدې لړ کې افغانانو بیا ثابته نړۍ ته له خپل پیغمبر صلی الله علیه وسلم سره په داسې حال کې د مینې ثبوت وړاندې کړ چې خاوره یې لا د همدغو یرغلګرو تر اشغال لاندې ده.
افغانانو په لویو مظاهرو او د یرغلګرو پر مرکزونو په بریدونو او د زخمونو او شهادتونو په زغملو دا وښوده چې افغاني روح او اسلامي احساسات لا تر اوسه د دوئ په زړونو کې ازاد او سرشار دي، که څه هم چې غربیانو د افغانانو د افکارو د بدلولو لپاره په میلیاردونو ډالر مصرف کړل.
کرزي او د هغه حکومتي اجیرو ملایانو خو افغانانو ته د یرغلګرو په خلاف د زغم توصیې وکړې او کرزي خو لا په خپلو ویناؤ کې خلکو ته د ډنمارکیانو د ښنلو توصیه هم وکړه. پداسې حال چې ښننه هغه وخت کېږي چې مجرم خپل جرم ومني او د هغه له امله له مقابل لوري ښننه وغواړي.
په هغه وخت کې د اشغالګرو له لوري د افغانستان لپاره د ټاکل شوي حکومت قاضي القضات (فضل هادي شینواري) خو په ډیرې بې شرمۍ دا هم و ویل چې غربیان زمونږ دښمنان نه دي،بلکې هغوئ زمونږ دوستان دي. او دا ځکه چې هغوئ مونږ ته د لندن په کنفرانس کې د لس ملیاردو ډالرو وعده راکړې ده. فضل هادي شینواري په هغه وخت کې د غرب په خلاف مظاهرې د اسلام په خلاف کار وباله، او پدې کارسره ئې خلکو ته دا ښه واضحه کړه چې نوموړي ته د محمد صلی الله علیه وسلم تر ذات او شخصیته د امریکایانو او اروپایانو خوشحالول ډیر اهمیت درلود.

## څه باید وکړو ؟

پداسي حال کې چې هېوادونه، پوځي توانائی، فرهنګ، مقدسات، وګړي او هر څه مو تر برید لاندې دي موږ باید د غرب د دې جنایاتو په اړه څه دریځ ولرو او څه وکړو؟

آیا له غرب سره ودرېږو لکه څنګه چې د اسلامي نړۍ د حکومتونو غرب پلوي واکمنان او د غرب نور فکري او فرهنګي ملګري راته توصیه کوي؟

که بې تفاوته پاتې شو او د دغه ډول یرغلونو په خلاف هېڅ موقف ونه نیسو؟

آیا یرغلګر به زموږ پدې ډول دریځ نور هم زړور نه شي؟

او که پکار ده چې د فطري او اسلامي تقاضا پر اساس د یرغلګرو په خلاف ودرېږو او له خپل هر ډول دیني، ملي او اخلاقي ارزښتونوڅخه د دفاع په صف کې ودرېږو او پدې لاره کې ځان قربانۍ ته تیار کړو؟

د سلیم عقل، ازاد فطرت، اسلامي او افغاني حمیت تقاضا خو داده چې باید نه له یرغلګرو سره ودرېږو، او نه غلي پاتې شو. بلکې د خپل ایماني مسؤولیت پر بنا په مېړانه د هرډول پوځي او فکري یرغل مقابله وکړو.

خو دا چې دا مقابله څنګه وکړو؟ دا کار منظمې ستراتېژۍ او د حالاتو له تقاضاسره سمو تدبیرونو ته اړتیا لري. او که داسې ونشي نو بیا به مو ډېر څه د بې نظمیواو بې هدفیو په سیند لاهو شي.

مونږ باید د غرب د کلیساځواب له مسجده او د پوځي یرغلونو ځواب له سنګره ووایو، او د خطرناکو پلانونو دمخنیوي لپاره یې ستراتېژیك تفکیر ولرو. زمونږ مسجد، سنګر، اداره او ستراتېژیك تفکیر باید په هر لحاظ دومره غښتلي کړو چې د غرب دمجهزې کلیسا، سیستماتیکې جګړې او د غربیانو د هر اړخیزو ستراتېژیکو پلانونو مقابله ورباندې وکولی شو.

ترڅو چې زموږ په سنګرونو کې په اسلامي عقیده او پوځي وسایلو سمبال ځوانان ناست وي نو د غرب په آیسکریم او شرابو لوی شوي یرغلګر

پوځيان دلته وخت نشي تېرولی. خو که په کوم ځای کې مو سنګر خالي کېږي هلته به هرو مرو دښمن سيمې نيسې او خپل پلانونه به عملي کوی.
موږ بايد د غرب د فرهنګ مقابله د اسلامي ارزښتونو په خپرولو او د اسلامي ژونددود په خپلولو وکړو، ځکه چې د غرب الحاد ځپلی فرهنګ له لنډغرتوب پرته زموږ لپاره هېڅ نه لري.
غربيان بايد خپل يرغلونه ودروي او مسلمانانو ته د درناوي پر بنسټ دې د دليل او منطق له لارې مذاکرې او مناقشې ته کښيني.
خو دا چې غرب له يوي خوا زموږ هېوادونه لاندې کړي وي، او له بلې خوا موږ ته د ازاد ژوند په حق قائل نه وي او په اسلامي هېوادونو کې هر څه د خپل مزاج او خپلې خوښې مطابق تر سره کول غواړي، ځان حاکم او موږ دمحکوم په صفت پېژني، نو پداسې حالاتو کې اصلاً مذاکره اومفاهمه هېڅ معنا او حيثيت نه لري.
په دغه ډول حالاتو کې مسلمانان مجبوره دي چې په بالمثل عمل لاس پورې کړي. ځکه چې لدې پرته بله هېڅ لاره او وسيله ورپاتې نه ده.
اروپايانو چې د اسلام او مسلمانانو په خلاف کوم له دښمنۍ او سپکاوي ډك عزايم ښکاره کړي دي د هغو د ځواب لپاره په اوسنيو شرايطو کې تر ټولو غوره او هر اړخيزه لار د هغوئ د مصالحو په خلاف هراړخيزه جګړه او له هغوئ سره مقاطعه ده.
يوازې اقتصادي مقاطعه نه، بلکې هر ډول مقاطعه. مونږ بايد د جنايتکار غرب له زينتي توليداتو، بې لارې فرهنګ، نظامونو، مؤسسو او هر هغه څه سره مقاطعه وکړو چې شديد ضرورت ورته نه لرو.
کېدای شي د دغې مقاطعې تأثير په يوې يادوو ورځو کې څرګند نشي، خو په اوږده موده کې به د غرب د اقتصاد او تمدن لپاره د هغه زخم په څېر وي چې په کراره کراره وينه تري ځي او بالآخره يې زخمي د ژوند کولو وړتيا له لاسه ورکړي.

نن د مسلمانانو او غرب ترمنځ د مادیت او معنویت جګړه روانه ده، او تاریخ د تل لپاره ثابته کړې چې بری تل د معنویت په برخه وي، که څه هم چې باطل به په پیل کې زورور ښکاري.

لکه څنګه د روسانو مادي فکر او تمدن زمونږ د برحق معنویت په وړاندې ماتې وخوړه همدا ډول به ان شاء الله هرومرو د مکار، مغرور او متکبر غرب سرنوشت هم وي. که څه هم چې یو څو ورځې به زمونږ څو خرڅ شوي او کرایي لیکوالان، پوچ مغزي او له اسلامي ارزښتونو پردي شوي تاریك ضمیره (روښانفکران!!!؟)او طوطي ډوله شاعران پر دې ملت د غرب د لوېدلو ارزښتونو او بې لارې فرهنګ د ورتپلو په بدل کې یو څو ډالر واخلي، خو سبا به دوئ هم د کمونیست سلیمان لائق په څېر اعتراف کوي چې هسې یې د کاغذ پر مخ خلکو ته د کمونیزم جنتونه جوړ کړي ول.

## له قرانکریم څخه د دفاع د افغاني پاڅون حقیقت، لاسته راوړنې، دلالتونه، دریځونه او راتلونکی

د ۱۳۹۰ هـ ش کال د حوت د میاشتي له پیله په ټول افغانستان کې یو خونړی پاڅون روان وو چې د افغانستان په بېلابېلو سیمو کې د ټولنې د بېلابېلو اقشارو زورورو مظاهرو او توندو عکس العملونو د دې پاڅون د تکامل عوامل برابرول. دغه پاڅون تر اومې ورځې یې د اتیاو په شاوخواکې خلک ووژل شول، په سلګونو نور زخمیان شول، او نا معلوم شمېر مسلمان افغانان د کابل د ادارې او د هغې د استخباراتو له لوري ونیول شول او د افغانستان او اسلامي نړۍ مسلمانان یې په فکري او عاطفي لحاظ مشغول وساتل پدې ارزي چې معقوله ارزونه یې وشي، اسباب او عوامل یې وڅېړل شي، د ښکیلو لوریو دریځونه ورکې واضح شي، معنوي، رواني او ایډیالوژیک دلالتونه یې وسپړل شي، د تداوم د ضرورت او یا نه ضرورت دلائل یې روښانه شي، مشروعیت یې کره او راتلونکې ته یې د موجودو واقعیتونو په رڼاکې وکتل شي، تر څو دغه ملي پاڅون چې د افغانانو د اسلامي مبارزې یوه لویه پېښه ده په مستدلل او هر اړخیز ډول ددې ملت د سربښندنو او مبارزو په تاریخ کې توثیق او ثبت شي.
دا هر څه باید ځکه وشي چې د اسلام دښمنان او په مسلمانانو کې دهغوئ منافق (سیکولر)ملګري تل هڅه کوي چې د اسلامي امت د ولسونو جهادونه او مبارزې غلطې توجیه کړي، بې ارزښته یې وښیي، او مثبت نتائج یې چې راتلونکو نسلونو ته د کفارو او د هغوئ د ملګرو په خلاف د جهاد او سربښندنې الهام او روحیه ورکوي له منځه یوسي.

د دې لړۍ لپاره چې موضوع پر علمي اساس او روښانه ډول څېړل شوې وې په لاندې څو برخو یې وېشو:

۱ – د پاڅون حقیقت.

۲ – د پاڅون لاسته راوړنې.

۳ – د پاڅون په اړه دریځونه.

۴ – د پاڅون دیني، اجتماعي، فکري او رواني دلالتونه.

۵ – د پاڅون د تداوم ضرورت او د هغه د مشروعیت دلائل.

۶ – د پاڅون د راتلونکي تګلاره او متوقع تأثیرات.

د دې لړۍ په ترڅ کې د هرې برخې محتویات مو ښه روښانه کړي وي تر هر ځانګړي عنوان لاندې موضوع پر نورو فرعي عنوانو په لاندې ډول ویشو.

**د پاڅون حقیقت او عوامل:**

لاندې درې ګوني عناصر د پاڅون حقیقت تشکیلوي :

۱ – د پاڅون عوامل.

۲ – د پاڅون شعارونه ، مطالبې او څومره والی.

۳ – د پاڅون ګډونوال.

دا پاڅون هم د بل هر پاڅون په څېر خپل حقیقي عوامل در لودل، که څه هم چې اشغالګرو غربیانو او د هغوئ سیکولرو ملګرو او تنخوا خورو هڅه وکړه چې خلک د پاڅون له اصلي عواملو اغفال کړي، او د پاڅون لپاره څو نور غېر واقعي، نامعقول او له خپله ځانه جوړ کړل شوي عوامل وتراشي، تر څو وکولی شي چې د محکومو خلکو پام له حقائقو بل لوري ته واړوي.

د دې پاڅون اصلي عوامل په لاندې ډول ګڼلی شو:

**اول عامل** : افغان ولس یو مسلمان ولس دی چې د اسلامي تاریخ په اوږدو کې یې تل له خپل دین او خپلې آزادۍ دفاع کړې ده. د چنګېزیانو، انګریزانو او روسانوپه خلاف جهادونه او مبارزې یې د دفاع هغه تاریخي شواهد دي چې نه غرب پلوې (سیکولر) عناصر ورڅخه انکار کوي، نه (پردي پال نشنلستان) چې تل د مسلمانو پر ضد د دښمن په صف کې ولاړ

وي ورځخه سترګې پټولی شي، او نه يې هم تپل شوي نظامونه د ولس له تاريخ او ټولنيزي حافظې وپستلي شي.
د افغاني ټولني د همدغه اسلامي او غيور خصوصيت د تداوم په سلسله کې بيا افغانان په هغو کفارو پسې راپورته شوي ول چې ددوئ هېواد يې اشغال کړی، د دوئ د دين سپکاوی يې کړی او د ولس بچيان يې ورته وژلي، ترلي، شړلي او ذليل کړي دي.
**دويم عامل**: امريکايان او غربيان په تمامه معني د افغانانو لپاره داسې پردي دي چې هېڅ ډول پيوند ورسره نه لري. نه ورسره د دين او د مذهب پيوند لري، نه يې ژبه ورسره يوه ده، نه د قوم او وينې اشترک ورسره لري، نه پخوانی مشترک تاريخ ورسره لري، نه يې ګاونډيان دي، او نه هم ورسره په يوه (براعظم) کې اوسېږی. همدارنګه افغانان له امريکايانو سره نه ګډ فرهنګ لري، او نه هم ورسره متبادل اقتصادي او تجارتي روابط.
له همدغه ټول پرديتوب سره سره امريکايان او اروپايان دلته په زور راغلي، په زور يې د افغانانو هېواد نيولی او په زور په افغانانو خپل فرهنګ، اخلاق او د ژوند تېرولو اصول ورتحميلوي. يرغلګر غربيان دلته په زور د خلکو کورونو ته ورننوځي، په زور يې تورسرې بې عزته کوي او نارينه يې لاس او سترګې ترلي له ځان سره بيايې.
راغلي يرغلګر دلته په زور او تزوير زموږ له ټول ولس نه د دې اعتراف هم اخلي چې موږ بايد ووايو چې امريکايان او غربيان زموږ (دوستان) دي.
کوم ډول تعامل او ژوند چې اشغالګر غربيان له محکومو مسلمانانو غواړي حيوانات يې هم نشي زغملی.
دآزاد اوسېدلو او له ځانه د دفاع کولو حق يو فطري احساس دی چې د ځنګلي په حيواناتو، د هوا په مرغانو، دصحرا په ژوو او حشراتو کې هم وجود لري. اسان خو لا څه چې حيوانات هم (پردي) په خپله ډله او کور کې نه پرېږدي. او که په زور ورشي نو ټول ورپسې راپورته کېږي او ځان ترې خلاصوي.

له ظالم نه د ځان خلاصولو هڅه او کوښښ یوه فطري غریزه او استعداد دی چې الله تعالی په ټولو ژوندیو کې ایښی دی. افغانان هم د همدغې فطري تقاضا او دخپل دي د غوښتنو له امله غلي نه کښیني او د خپلې آزادۍ او له دین او ناموس څخه د دفاع لپاره د یر غلګرو په مقابل کې راپورته شول.

**دریم عامل** : افغانانو په تېرو څلورو لسیزو کې داسلامي نظام د جوړولواو د همدغه قرآن کریم دحاکمولو لپاره چې اوس یې امریکایان کله دلته او کله په امریکا کې سوځوي تر دوو میلیونو زیات شهیدان ورکړي. په میلیونونو یې مهاجرتونو ته اړ شوي. په میلیونو نور زخمي او معیوب شوي دي، هېواد یې کنډواله شوی، او بې شمېره سختۍ او ناخوالې یې ګاللي دي.

افغانانو دا هر څه د دې لپاره نه دي کړي چې رهبران، پیران، قاضیان او د جهاد قوماندانان دې یې د جهاد او اولس بیت المال خپل ملکیتونه وګڼي، د اسلام او قرآن لار دې پرېږدي، او له کمونستانو، نشنلستانو، دموکراتانو، ګمراه ډلو، مرتدانو او له غرب نه په را صادرو شویو بې دینه لیبرالانو سره د دیموکراسۍ په (وندر) ودرېږي. بلکې دا هر څه د دې لپاره کړي چې قرآن کریم دې د دوئ په ژوند او نظام کې حاکم شي.

افغان ولس وینې چې نه یوازې دا چې قرآن کریم حاکم ندی، بلکې په کورونو، جوماتونو، د نصاب په کتابونو او د زندانونو په تیارو کې د مسلمانو زندانیانو په لاسونو کې هم محفوظ ندی. افغانان وینې چې کله قرآن کریم کله د امریکایانو له لوري په ټوپکو ویشتل کېږي، کله ـ نعوذبالله ـ په ګنده ګیو کې غورځول کېږي، کله سوځول کېږي، کله له پاسه ورباندې د (صلیب) رسم جوړېږی، کله یې د سوځولو لپاره په امریکا کې څو میاشتې کمپاین کېږي او بیا د کلیسا د مشر په لاس د مېډیا په مخکې سوځول کېږي او سپینه ماڼۍ د هغه له مخنیوي څخه هلته خپل قانوني عجز ښکاره کوي، خو دلته بیا زموږ د ټول هېواد او ولس د

اشغالولو لپاره د ملګرو ملتونو او د امنیت له شورى څخه قانوني جواز له ځانه سره راوړي او بیا د خپل اشغال د قانوني کولو لپاره کله له تش په نامه ولسي جرګو، کله له مشورتي جرګو او کله هم د اوږدمهالي پوځي شتون په نامه له هغه حکومته چې دوئ خپله جوړ کړی اسناد او ضمانتونه اخلي.

دغه ډول وضعیت ښایي (سیاف) (کشاف) (مجددي) (ګیلاني) د اشغال اداري ته د ورتسلیم شویو (خدام الفرقانیانو) او نورو هغو غټو او وړو (پنډتانو) ته د زغملو وي چې دین یې په دنیا خرڅ کړی، خو افغان ولس ته هېڅکله د منلو نه دی. نو ځکه خو ملت د دغه ډول پاڅون لپاره همت کوي او د قربانۍ ډګر ته راوځي.

**څلورم عامل** : په تېرو لسو کلونو کې هېڅ‌چا د یرغلګرو د جنایاتو مخه ونه نیولی شوه. نه حکومت، نه پارلمان، نه هغه چا چې ځانته ولسمشر وایي، نه هغو خلکو چې له کفارو ته له ورتسلیمېدلو وروسته هم ځانته (مجاهدین) وایې، نه د ملګرو ملتونو اداري، نه هغو چې ځانته د بشري حقوقو ټولنې وایي، او نه بلې کومې مرجع او جهت. او دا ځکه چې موجوده اداره همدې یرغلګرو جوړه کړې ده، او د همدوئ لپاره کار کوي. پالمان همدې اشغالګرو رامنځته کړی، او د همدوئ په ګټه فیصلې کوي او قوانین تصویبوي. کرزی دوئ ته غلامي کوي خو ولس ته یوازې د مکر اوښکې تویوي او مداریتوب کوي.

د دوئ په اصطلاح پخواني مجاهدین چې اوس له یرغلګرو سره ملګري دي لګیا دي ځانته په دنیا کې جنتونه جوړوي. د ملګرو ملتو ټول غړي هېوادونه د اسلام د حاکمیت د مخنیوي لپاره سره ملګري شوي دي. د بشري حقوقو سازمانونه او ټولني د ( بشر ) له حقوقو څخه نه بلکې د ( شر) له حقوقو څخه دفاع کوي.

نو چې وضعیت دغه ډول وي،او د شکایت د اورېدلو هېڅ مرجع نه وي، ملت مجبوره دی چې خپلې سینې سپر کړي، د قربانۍ ډګر ته راووځي، هم د یرغلګرو او هم د هغوئ د ملګرو په خلاف پاڅون وکړي.

**پنځم عامل**: لس کاله وشول چې د هېواد ربښتینیو مجاهدینو د صلیبي اشغالګرو په خلاف جهاد روان کړی چې دغه مجاهدین د نړیوال صلیبي ائتلاف په وړاندې نه تسلیم شول، نه ستومانه شول، نه کمزروي شول، نه یې له دښمن سره په نظام او حکومت کې شراکت ومانه، نه سره و ویشل شول لکه څنګه یې چې دښمن توقع کوله. نه یې له مسلمان امت څخه پرته کوم کفري دولت او بلاک ملاتړ وکړ، نه له خپلو اهدافو او تګلارې منحرف شول، نه په قومي، سمتي، ژبنیو، سیاسي او نورو ناروا شخړو کې ښکیل شول، او نه هم واک ته د رسیدو لپاره له چا سره ایتلاف ته حاضر شول. بلکې په پوره صبر، مېړانه او درایت یې د دښمن په خلاف اسلامي جهاد رهبري کړ، او خپل اسلامي مصداقیت یې د ولس ټولو پرګنو ته په عمل کې وروښود. نو هماغه ؤ چې ولس غېږ ورته خلاصه کړه ، د جهاد غږ یې ورسره غبرک کړ، او د اشغالګرو په خلاف یې د عمومي پاڅون او له هغوئ څخه د قرآن او مسلمانانو د انتقام د اخیستلو اقدام وکړ.

دا سمه ده چې دغه پاڅون د مجاهدینو له لوري نه تنظیم شوی او نه هم رهبري شوی وو، خو په شعوري ډول په هماغه لاره روان شوی چې مجاهدین پرې روان دي. او هماغه اهداف تعقیبوي چې مجاهدین یې د تحقق لپاره راپورته شوي دي چې هغه د هېواد او هېوادوالو آزادي، د یرغلګرو شړل او د قرآن کریم حاکمول دي.

پاتې شوه دا خبره چې د دې لوی سرتاسري او د قربانیو د دې مبارک پاڅون تر شا دې د ایران شیعه دولت چې په خپل ځنګ کې هېڅکله دیو قوي (سُنّي) نظام د لیدلو حوصله نه لري ولاړ وي، او یا دې د پاکستان سیکولر نظام چې د قرآن د حاکمیت د غوښتلو په سزا کې یې د خپل ولس د یرش لکه خلک بې کوره او در په در کړل د افغانانو لپاره د قرآن نظام

وغواړي، او د هغوئ د قرآني پاڅون تر شا دې ودرېږي هېڅ معقولیت نه لري. بلکې دا په افغانستان کې د امریکا د ملګرو تشې ډنډورې وې چې د پاڅون له اصلي عواملو د خلک پام بل لوري ته اړول غواړي.

**د پاڅون شعارونه، مطالبې او څومره والی:**

د پاڅونونو او مظاهرو ماهیت د هغو له شعارونو، مطالبو او د هغو له پرخوالي معلومېږي. له قرآن کریم څخه د دفاع پدې پاڅون کې د خلکو شعار دا نه وو چې یوازې هغه یو یا څو تنه امریکایان دې محاکمه شي چې قرآن کریم یې سوځولی دی، بلکې شعارونه یې په لاندې ډول وو :

مرګ پر امریکا

مرګ د امریکا پر غلامانو

امریکایان دې زموږ خاوره پرېږدي

موږ په اسلام او قرآن سر ورکوو

ژوندی دی وي اسلام

موږ خپل هر څه له قرآنه قربانوو

موږ د امریکا غلامان نه منو

د افغانستان اوسني اداره غلامه ده

افغانان به دوینو په بیه له قرآنه دفاع کوي

او دېته ورته نور شعارونه چې عمده مطالبې ورکې له اسلام او قرآن څخه دفاع کول، امریکایان له خپلې خاورې شړل ، د کابل د بې واکې ادارې له شر او شرم څخه د ولس خلاصول، د قرآن کریم حاکمول او تر هرڅه یې محترم ګڼل، دیرغلګرو په مراکز هجوم وروړل او دهغوئ شتون نه زغمل وو.

د اندازې په لحاظ مظاهرې دومره پراخې وې چې له شیعه میشتو سیمو پرته نور په ټول افغانستنان کې ترسره شوې.

**د پاڅون ګډونوال:**

دا چې د دې پاڅون اسباب او عوامل داسې څه ول چې په ټول مسلمان ملت پوري یې اړه درلوده نو ځکه خو یې ګډونوال هم د ټولنې د ټولو اقشارو خلک ول.

د دې ترڅنګ چې پاڅون په ټول هېواد کې عام وو د ټولنې ټولو طبقاتو لکه کلیوالو، ښاریانو، باسوادو، بې سوادو، د پوهنتونونو محصلینو، د مکاتبو شاګردانو، په اردو او وزارتونو کې باغیرته مسلمانو مسنوبینو او حتی ډېرو هغو خلکو چې یو وخت یې د طالبانو مخالفت کاوه او دا ځکه چې هغوئ به کیدای شي په سیاسي لحاظ طالبان نه منل، خو د اسلام نه منل یې هېڅکله نه وو ویلي او نه یې په حق کې دغه خبره وارده ده. بلکې هغوئ د همدې مسلمان ولس یوه برخه ول چې یو وخت هغو د رواغجنو او مفسدو مشرانو تېرایستلي ول کوم چې اوس په خپله د امریکا په غلامۍ کې اخته او د دښمن په صف کې ولاړ دي.

د دې قرآنې پاڅون مظاهره کوونکي هغه ډول کرایې نعرې سورې وهونکي نه ول چې یا دې کوم نشنلست (والي) او یا هم کوم ناکام شوي (وکیل) د یو څو ساعتونو لپاره کوم سرک ته په کرایه شویو موټرو کې راوېستلي ول، چې د وخت په پوره کېدلو به بیا داسې غائب شول لکه د کوم ساختماني شرکت مزدوران چې له خپل ټاکلي وخت یوه لحظه هم چاته زیاته نه تېروي.

د دې پاڅون ګډون کوونکي د قربانۍ په عزم راوتلي مسلمانان ول چې په تشو لاسونو خو له ایمان څخه په ډکو زړونو د یرغلګرو پر پوځي بېسونو، د هغوئ پر استخباراتي مراکزو او د هغوئ د غلامانو پر قرار ګاوو وروختل،او د ښمنانو ته یې د خپل ایمان زور وروښود. دوئ شهیدان او زخمیان شول، خو په هېڅ ځاي کې پر شا نه شول، چې دا هر څه په ژوندي ډول برقي مېډیا ثبت کړي دي.نو په همدې اساس دا خبره کره او ثابته ده چې د دې پاڅون ګډون کوونکي په هېڅ ډول نه د چا لخوا لمسول شوي ول، او نه یې له بل ځایه پیغام تر لاسه کاوه، ځکه چې د بل چا د ګټو او

شعارونو لپاره خلک وژل کېدلو، زخميکېدلو، بندي کېدلو او په تش لاس د دښمن پرمراکزو ورخلتو ته نه حاضرېږي، بلکې دا هغه ډول قربانۍ دي چې يوازې د دين لپاره د قربانۍ ورکولو په روحيه تر سره کېږي.

**د پاڅون لاسته راوړنې:**

له قرآن کريم څخه د دفاع دغه افغاني پاڅون لاندې درې لاسته راوړنې لرلې چې په لاندي ډول دي :

١ – معنوي لاسته راوړنې
٢ – سياسي لاسته راوړنې
٣ – پوځي لاسته راوړنې

**اول ـ معنوي لاسته راوړنې:**

١ـ دې پاڅون ټولې دنيا ته يوځل بيا وروښوده چې افغانان د نړۍ تر ټولو مسلمانو ولسونو پر خپلو ديني ارزښتونو او مقدساتو ټينګ ولاړ خلک دي، او په هر ډول حالاتو او شرايطو کې له هغو څخه دفاع کوي او د دفاع په لار کې هر ډول قربانۍ ته حاضر دي. دغه پاڅون يو ځل بيا زموږ د ولس د دين دوستۍ او معنوي پوخوالي ګواهي ورکړه.

٢ـ پدې پراخ پاڅون کې د ولس لويانو او ځوانانو خپل راتلونکې نوي نسل ته د ايمان او له هغه څخه د دفاع په لاره کې د قربانۍ تلقين ورکړ، او دا يې ور وښوده چې افغانان کېداى شي چې په سياسي لحاظ کله يو له بله سره اختلاف ولري، خو له دين او معنوياتو څخه د دفاع په لاره کې ټول يو موټی او متحد دي.

٣ـ دې پاڅون ټول ولس ته هغه منافقان ور معرفي کړل چې د دې پر ځاى چې د قرآن په دفاع کې له خپل راپورته شوي ملت سره خپل غږ ملګرى کړي او د يرغلګرو په خلاف د کرکې او نفرت نعره پورته کړي، هغوئ په ډېرې بې شرمۍ دغه مظاهرې د پرديو په لمسون وبللې، د کفارو دغه سترجنايت او قصدي اقدام يې غير قصدي او يوازې ديو څو جاهلو

عسکرو کاروباله، او د امریکایانو په غوښتنه یې د ولس د غضب د سړلو هڅې وکړې، چې پدې کار کې تر ټولو لوی رول ( سیاف ) او دکابل په اداره کې نورو بې ضمیره مشرانو ولوباوه.
د دغو مظاهرو مشروعیت په یقیني ډول تر هغو خونړیو بې هدفه جګړو ډېر وو چې یو وخت (سیاف) او ملګرو یې د کابل ښار وربانديې وران کړ، او تقریباً تر شپېتو زرو انسانان یې ورکې ووژل. خو نن دا دی بیا له خپلو هماغو مخالفینو سره یو ځای د ډیموکراسۍ په صف کې ولاړ دی چې ده یې پرون سر او مال روا باله.
۴ـ امریکایانو او غربیانو ته ور معلومه شوه چې افغانانو ته قرآن کریم او د دوئ معنوي ارزښتونه تر هرڅه محترم دي.
۵ـ دې پاڅون د ټول ولس په زړونو کې له امریکایانو، د هغوئ له پوځونو، استخباراتو، جاسوسانواو د هغوئ له ګوډاګیو څخه وېره له منځه یوړه. اوس ټول خلک پدې پوه شول چې په هر ځای او هر وخت کې د خپلو دیني ارزښتونو د دفاع لپاره په خپله اقدام کولی شي، او هېڅ ضرور نده چې خپل شکایت دې د امریکایانو په لاس جوړې غلامې ادارې ته یوسي. بلکې نور باید ولس د اقدام ابتکار او واګې په خپل لاس کې ونیسي.
۶ـ همدې یوه پاڅون د عامو افغانانو، ښاري خلکو او د غربیانو تر تأثیر لاندې د ورغلیو خلکو ایمانونه دومره تازه کړل چې ښایې کلونو دعوت او موعظو به دومره نه وو تازه کړي. او همدارنګه دې پاڅون د امریکایانو او د هغوئ د فرهنګي ترجمان (مخدوم رهین) د افغانانو په زړونو کې د ایمان وژنې هغه ټولې هڅې په اوبو لاهو کړې چې تېر لس کاله یې د لسګونو ملیاردو ډالرو په مصرف د لسګونو تلویزوني، راډیویي او کلتوري فعالیتونو په مټ تر سره کړې وې، او د قرآن کریم پر ځای یې خلک په هندي سریالونو، امریکایي فلمونو، د F.M راډیوګانو په پوچو او سپکو ډیالوګونو، سندرو او موسیقۍ مشغول کړي ول.

۷ـ دې پاڅون ډېر خلک دېته وهڅول چې هغه قرآن خپلو اولادونو ته ورزده کړي چې دوئ دفاع ترې کوي، او پدې ډول د نوي نسل یو ځل بیا د قرآن کریم، مسجد، ملا او مجاهد په لوري مخه شوه.

**دویم ـ سیاسي لاسته لاوړنې:**

۱ـ د افغانانو دې قوي دریځ د تل لپاره د امریکا هغه خوب په اوبو لاهو کړ چې دلته به اوږد مهالی حضور لري، او د (استراتیژیک تړون) تر پردې لاندې به افغانستان د تل لپاره خپله یوه قانوني مستعمره ګرځوي.

پاڅون امریکایان او نور غربیان په جدي ډول پدې وپوهول چې عام افغانان هېڅکله دلته غربیان نه زغمي. او د غربیانو هم پردې سر خلاص شو چې نه یې دلته اوږد مهال حضور ممکن دی، نه په اردو کې له افغاني عسکرو سره یو ځای ګوزاره کولی شي، او نه یې تړونونه هغه بڼه خپلولی شي چې په (جاپان)، (جرمني)، ځیني عربي هېوادونو او ځیني نورو آسیایي او اروپایي هېوادونو کې یې خپله کړې ده. او دا ځکه چې هلته فیصلې سیاسي، اقتصادي او کلتوري ارزښتونو ته په پام سره کېږي او (دین) ورکې هېڅ نقش نه لري. خو په افغانستان کې (دین) د ټولو سیاسي، اقتصادي، اجتماعي، بین المللي او نورو فیصلو لپاره محک او معیار دی، او هره هغه فیصله او تصمیم چې د دین پر بنسټ نه وي ولاړ هغه په هېڅ ډول تر انجامه نه رسېږي، چې د (امان الله خان) د سیکولریزم نخرې، د ظاهرشاه د ډیموکراسۍ او غرب پالنې پروګرامونه، د کمونستانو د (ثور نه پرشاتلونکی انقلاب !!!؟)، د تنظیمي ښکرورو ملوک الطوائفۍ، د امریکایانو اشغال او دلته د دیموکراسۍ مرګ یې ښه روښانه مثالونه دي.

دا هر څه ځکه په افغانستان کې زرغون نه شول چې نه یې تخم د افغانستان وو، او نه یې د افغانستان له آب او هوا سره توافق درلود.

۲ـ دې پاڅون د یرغلګرو قواوو لوی مشر جنرال ( جان الن) له افغانانو څخه معذرت غوښتلو ته اړ کړ.

۳ـ دې پاڅون د دنیا د ترټولو زورور پوځي او سیاسي طاقت د دفاع وزارت (پینټاګان) له افغانانو څخه د ببنني غوښتلو ته اړ کړ.
۴ـ دې پاڅون (سپینه ماڼۍ) او د (سپرپاور) مشر ( اوباما) له مظلومو مؤمنو افغانانو څخه د ببنني غوښتني ته اړ کړ.
۵ـ دې پاڅون امریکا له ټولو مسلمانانو څخه د ببنني غوښتلو ته اړ کړه.
۶ـ دې پاڅون دکابل د ادارې د دفاع او داخله وزیرانو امریکا ته سفر لغو کړ.
۷ـ دې پاڅون د افغانستان په اړه د امریکا او ټول غرب په پالیسۍ او ستراتیژۍ کې داسې ژور بدلون راوست چې نور د هر سیاسي او نظامي تصمیم په نیولو کې د دې پاڅون او راتلونکو پاڅونو تأثیرات په حساب کې نیسي او هېڅکله به پدې سیمه کې د( بوش) د اقدام په څېر متهورانه اقدام ته زړه ښه نه کړي.
۸ـ د دې پاڅون په نتیجه کې امریکا خپل ملکي او سیاسي مشاورین له ټولو افغاني ادارو وویستل.
۹ـ د دې پاڅون په نتیجه کې فرانسې خپل ټول سیاسي او ملکي مشاورین له افغاني ادارو وویستل.
۱۰ـ دې پاڅون جرمني هم د خپلو مشاورینو وېستلو ته اړ کړ.
۱۱ـ د برطانیې هېواد هم اړ شو چې له ډاره خپل مامورین او مشاورین له افغاني ادارو وباسي.
۱۲ـ دې پاڅون د ملل متحد اداره هم دې ته اړه کړه چې له کندز څخه کابل ته وتښتي.
دا او نوري هغه سترې سیاسي لاسته راوړنې دي چې له قرآن کریم څخه د دفاع پاڅون کوونکو او مظاهرینو په یوې هفتې کې لاسته راوړې، پداسې حال کې چې په تېرو لسو کلونو کې د مسلح جدوجهد په ترڅ کې دومره نه وې حاصلې شوې. دا پدې معنی دې چې د یرغلګرو په خلاف د ولس پراخ

پاڅونونه هغوئ تر فشار لاندې راولي او د خپلو سیاستونو او تصامیمو بدلولو ته یې اړباسي.
**دریم- پوځي لاسته راوړنې**:
له قرآن څخه د دفاع پاڅون د معنوي او سیاسي لاسته راوړنو ترڅنګ لویې پوځي لاسته راونې هم درلودې چې په لاندې ډول یې یادوو.
۱- مظاهرینو او په اردو کې ځینې افغاني عسکرو د یرغلګرو پوځي مراکز تر برید لاندې ونیول. په ننګرهار، کندز، فاریاب او نورو ولایاتو کې بهرني پوځیان ووژل شول، او دا ورته ثابته شوه چې د امریکایانو او افغانانو تر منځ پوځي تعاون او په راتلونکي کې ملګرتیا په قطعي ډول ناممکنه ده. نن که څو تنه افغاني عسکر د دوئ تر څنګ ولاړ دي هغوئ د ناپوهۍ، غریبۍ او بې کارۍ له امله د دوئ د یو څو پیسو وږي دي، نه دا چې کفر دې یې له شوقه منلی وي او یا دې هم په شعوري ډول له امریکایي او اروپایي کفارو څخه ملاتړ کوي.
تر دې وروسته به هره ورځ افغاني عسکر پر یرغلګرو بریدونه کوي، اسلحې به ترې وړي، او له مجاهدینو سره به یوځای کېږي. ځکه چې هغوئ ته ورمعلوه ده چې امریکایان او اروپایان نور افغاني قواوي نه تمویلوي، او نه یې تمویلولی شي. نو ښه به دا وي چې د خپل ملت د سبا ورځې له محاسبې څخه د خلاصون لپاره همدا نن په عزتمن ډول د امریکایانو له ملګرتیا پداسې ډول ووځي چې هم د امریکایانو د وژلو له امله اتلان شي، او هم سبا په هسکه غاړه په خپل کور او کلي کې واوسېدلی شي.
۲- د دې پاڅون یوه ګډون کوونکي ( قاري عبدالصبور سالنګي) په داخله وزارت کې د امریکایي پوځي مشاورینو په وژلو امریکا او ټول غرب ته داسې پوځي ګوزار ورکړ چې د اوباما ټوله پوځي استراتیژي یې ورګډه وډه کړه. امریکا او ناټو مجبوره شوه چې د دغه خطرناک ګوزار په نتیجه کې له ټولو افغاني ادارو او وزراتونو خپل او د (ناټو) ټول پوځي مشاورین

وباسي، چې پدې ډول نور د امریکایانو او افغاني ادارو ترمنځ عملي همغږي ناممکنه شوه، او د امریکا لپاره خطرناک عواقب به یې لا وروسته نور هم را څرګند یږي.

۳ـ د پاڅون په جریان کې جرمني قواوې له تخاره د پاڅون له وېرې له خپل لوی مرکز څخه د کندزولایت ته وتښتېدې، چې بېرته تخار ته هېڅ د ورستنې نه شوې.

۴ـ نور په عملي لحاظ دا امکان له منځه ولاړ چې امریکایان او نور غربیان دې له افغاني عسکرو سره یوځای په عسکري روزنځایونو کې بېغمه و اوسېږي، او هغوئ دې د خپل دین او ولس په خلاف د جګړې لپاره وروزي.

۵ـ یوه بله لویه لاسته راوړنه دا وه چې له پاڅون سمدستي وروسته برتانیې د خپلو پوځي وسائلو د وېستلو لپاره د منځي آسیا له هېوادونو سره تړونونه لاسلیک کړل ترڅو د څلور ملیاردو ډالرو په قیمت خپل جنګي وسائل مخکې تر هغې له افغانستان څخه وباسې چې د افغانانو په لاس یا وسوځول شي او یا هم غنمیت شي.

۶ـ ددې پاڅون له پوځي لاسته راوړنو څخه یوه ستره لاسته راوړنه دا وه چې نور به د هېواد د ټولو سیمو او ښارونو خلک خپله غېږه هغو مجاهدینو ته لا نوره هم خلاصوي چې له قرآن کریم څخه د دفاع او د هغه د حاکمیت لپاره جنګېږي. او دا ځکه چې نور د مجاهدینو او ولسي خلکو سیاسي او فکري شعارونه په خپله سره یوشول، او نور ولسي خلک د هېڅ داخلي او بهرني جهت په منفي تبلیغاتو نه تېر ووځي. بلکې هر هغه چاته به د دښمن په سترګه ګوري چې د امریکایانو په صف کې وي، او یا د هغوئ د مصالحو لپاره کار کوي. دې پاڅون د جهاد ساحه نوره هم ډېره پراخه کړه او د خلکو او مجاهدینو د تعاون اندازه ډېره زیاته شوه.

## د پاڅون دلالتونه :

له قرآن کریم څخه د دفاع پاڅون د خپلو معنوي، سیاسي او پوځي لاسته راوړنو ترڅنګ خپل نور پراخ او ژور دلالتونه هم لرل چې په لاندې ډول یې خلاصه کولی شو:

**لومړی دلالت** : پدې سرتاسري پاڅون کې د افغانستان د لکونو خلکو ګډون پدې دلالت وکړ چې غرب ونه کولی شول د تېرې څه باندې یوه لسیزه کې د سلګونو ملیاردو ډالرو په مصرفولو د یوه غرب پلوي او غلام حکومت په رامنځته کولو او د زرګونو تعلیمي، فکري او فرهنګي مؤسسو په رامنځته کولو، او په لوبو او فیشن د ځوان نسل د مصروف ساتلو او نورو وسیلو په کار اچولو د افغانانو په زړونو کې د ایمان ډیوه مړه کړي، د حریت احساس ترې واخلي، او د قربانۍ له ډګره یې لرې وساتي.

دې پاڅون ثابته کړه چې د امریکا او غرب فکري او فرهنګي پانګوونې دلته ورته مطلوبه فائده نده کړې. نن بیا هم د افغانانو هغه نسل چې د اشغال په کلونو کې رالوی شوی او د غرب پلوو سیکولرو چارواکو او مفکرینو تر څارنې لاندې او د هغویٔ د سندرو او لوبډلو ادبیاتو په چاپېریال کې ځوانۍ ته رسیدلی خو بیا یې هم د ایمان او قرآن کریم لمن نده پرې ایښې، او د دې پر ځای چې د غرب په شرابو او سندرو کې ورک شي دا دي په هسکه غړۍ او په واز کومي په ټولو ښارونو او ولسوالیو کې نعرې پورته کړې چې:

مرګ پر امریکا.

ژوندي دې وي اسلام.

موږ په خپل هېواد کې یرغلګر نه غواړو.

زموږ هر څه دې تر قرآن ځار شي.

**دوهم دلالت** :د دې پاڅون پیل د بګرام له ولسوالۍ وشو چې په ټول افغانستان کې د امریکا تر ټولو قوي پوځي او سیاسي مرکز ورکي وجود

لري . یرغلګرو په پیل کې د کابل شمال، بګرام، کاپیسا، پنجشیر او پروان هغه سیمې بللې چې ځیني اوسېدونکي یې له طالبانو سره د سیاسي اختلاف له امله په جګړه کې ول.
امریکایانو دغه اختلاف ته نور هم پکی وواهه او په یادو سیمو کې یې د دې سیمو پر اوسیدونکو خپلې شیدې پدې نیت ورپرېښودې چې دغه سیمې د امریکایانو د دایمي شتون د تمرکز سیمې شي. او باید هڅه وکړي چې خلک یې خوشحاله وساتل شي. هماغه وو چې هم یې هلته د بیا ودانولو کارونو ته زور ورکړ، او هم یې خپل فرهنګي او استخباراتي فعالیتونه ورکې ډېر کړل.
خو دې پاڅون په ډاګه کړه چې نه د کابل د ښار خلک د یرغلګرو ملګري دي، او نه هم دکابل د شمال، بګرام، پنجشیر، کاپیسا او پروان خلک هغه خلک چې د نظار د شورى ډلګۍ د امریکایانو ملګري معرفي کړي ول. هغوئ په دې پاڅون کې تر نورو ټولو خلکو مخکې د امریکا د جنایت او د هغې د اشغال په خلاف خپل غږ پورته کړ.
دغه وضعیت ښه په ښکاره پدې دلالت کوي چې د دې سیمو خلک پرون هم مجاهدین ول، نن هم مجاهدین دي، او سبا به هم له قرآن کریم او اسلام څخه ځان قربانوي. دې خلکو ته دا هم ور معلومه شوه چې د شمال د ائتلاف خرڅ شوي مشران اصلاً نه د دوئ مشران دي او نه هم د اسلام او افغانستان څه غم ورسره دی. بلکې د دې مشرانو تر ټولو لویه هڅه دا ده چې څنګه امریکا ته د غلامۍ په بدل کې سرمایه ټوله کړي او بیا یې اماراتو، ترکیې، روسیې او نورو اروپایي هېوادونو ته انتقال کړي.
**دریم دلایت:** د دې پاڅون تر ټولو لویې مظاهرې په لویو ښارونو لکه کابل، هرات، ننګرهار، کندز، خوست، لغمان او نورو ښارونوکې وشوې. دغه ټول ښارونه دددې ترڅنګ چې د یرغلګرو تر مستقیم اشغال او څارنې لاندې دي، په هغو کې یې افغاني بې ضمیره نشنلستان، غرب پلوي مفکرین، بې بندوباره شاعران، سیکولرادیبان او کرایې ژورنالستان هم په

دولتي ادارو او نورو فکري مراکزو کې ځای پر ځای کړي دي ترڅو ولس ته د امریکا د اشغال مشروعیت ورتلقین کړي، او د ولس ځوانان له جهاد او مبارزې څخه د ساعت تېرۍ په محفلونو، ګډاګانو، تیاترونو، اجتماعي او مدني ټولنو، کرکټ او د F.M راډیوګانو په مبتذلو پروګرامونو مشغول وساتي، او پدې ډول ښارونه د اشغالګرو لپاره د فعالیت یوه مصؤونه سیمه وګرځوي. خو وروستي پاڅون وښودله چې د ښارونو د ځوانانو په زړونو کې هم د ایمان جذبه هماغسې څپانده ده لکه څنګه چې د غرونو په ځوانانو کې ده. او پر دې یې هم روښانه دلالت وکړ چې د هغو ځوانانو شعارونه چې د ښارونو په لېسو او پوهنتونو کې دي کټ مټ هماغه شعارونه دي چې مجاهدین یې د جهاد په ډګرونو کې د تکبیرونو له زمزمو او دراکټونو له کړنګهار سره یوځای پورته کوي. او دا خبره درواغ وختله چې د غربیانو په خلاف یوازې هغه ځوانان جنګېږي چې د زده کړې له بهیره لیرې پاتې شوي دي.
**پنځم دلالت:** پاڅون د هېواد په شمال کې هم په هماغه اندازه زورور او څپاند وو څومره چې د هېواد په مرکز، شرق، جنوب او غرب کې وو. دا پداسې حال کې وو چې په نږدې ماضي کې د (دوستم) په څېر ملیشه او کمونستو جنګ سالارانو د شمال د ازبک میشتو سیمو درانه خلک او ځوانان د اسلام او افغانستان په تاریخ کې تر ټولو د بدوخلکو، سړیخورو، تالاګرو او بې فرهنګه (ګلم جم ملیشو) په حیث وړاندې کړي اومعرفي کړي ول.
خو اوس نه یوازې دا چې هغوئ ملیشه او (ګلم جم) ندي، بلکې د قرآن کریم د ساتنې او حاکمیت لپاره تر ټولو لویې مظاهرې هم د همدوئ په سیمو کې ترسره شوې، او خلکو ئی په لوړ غږ نعرې پورته کړې چې (افغانستان را قبرستان امریکاییها میسازیم).
له اسلام او قرآن کریم سره د شمال د خلکو قوي پیوند دهغو خلکو غوږې او هڅې هم پوچې ثابتې کړې چې غوښتل یې د فدرالي سیستم او یا هم

ښکاره تجزیې تر شعار لاندې په شمال کې یو داسې سیکولر (پر دین نه ولاړ) حکومت جوړ کړي چې د غرب تر حمایې لاندې افغاني بې لارې ډلې ټپلې، پردي پالي نشنلستان او له دین څخه د تښتېدونکو لیبرالانو ژوند ورکې خوندي وي.

په شمال کې د پاڅون قوت پردې دلالت کاوه چې د شمال خلک هم ښه پاخه مسلمانان دي او هېڅکله د یرغلګرو پر شتون خوښ ندي. او هم دا چې د تجزیې او په شمال کې د سیکولر حکومت د جوړولو خبرې هسې بې حقیقته دعوی ده او ولس یې تر شا ندی ولاړ.

**د پاڅون په اړه درېځونه:**

د پاڅون په اړه دافغانستان په داخل او خارج کې د بېلابېلو جهتونو بېلابېل درېځونه رامخته شول چې څو مهم یې په لاندې ډول خلاصه ول:

**د امریکایانو درېځ:**

امریکایان چې د قرآن کریم د سپکاوي او سوځولو اصلي مجرمین ول د دوئ د جنایت په عکس العمل کې له راپورته شوو مظاهرو او پاڅون دومره په وېره کې شول چې په افغانستان کې د هغوئ د پوځ مشر (جان الن) د امریکا د دفاع وزارت، سپینې ماڼۍ او په خپله د امریکا جمهور رئیس (اوباما) دغه جنایت غیر قصدي وباله، او له افغانانو یې یوازې د څو ټکو په ویلو ښښنه وغوښته. خو وروسته چې په امریکا کې د کانګرس د غړو او نورو صلیبي حلقو تر فشار او ملامتۍ لاندې راغی نو همدې ۱۳۹۰هش د حوت په نهمه یې وویل چې:(ما له افغانانو د هغوئ د غوسې د سړولو او د امریکایې عسکرو د ژوند د ژغورلو په خاطر ښښنه غوښتې ده). یعنې هغه لدې امله ښښنه نه وه غوښتې چې پوځیانو یې کوم بد کار تر سره کړی دی.

د امريکا د راتلونکي رياست لپاره کانديد (ريک سنتهورم) وويل چې اوباما بايد له افغانانو ښېنه نه واى غوښتې، بلکي افغانانو بايد له امريکا ښېنه غوښتې واي چې امريکايې پوځيان او افسران يې وژلي دي.

د دې تر څنګ د امريکا د کانګرس ځينې غړو وويل چې دا کار د ښښنې په غوښتلو نه ارزېده، ځکه چې ښښنه په هغه وخت کې غوښتل کېږي چې چا کوم بد کار تر سره کړي وي.

**د حامد کرزي د ادارې دريځ:**

د کرزي د ادارې محلي چارواکو په شروع کې هڅه کړې وه چې موضوع پټه کړي، ځکه خو يې د هغو کاريګرو خبرې هم نه وې اورېدلې چې د قرآنکريم سوځيدلې نسخې يې د امريکايانو له کثافات دانيو څخه ورته وروړې وې.

کرزي د امريکايانو جنايت غير قصدي او د يو څو تنو جاهلانو کار وباله او بس، خو د حکومت عکس العمل يې د پاڅون کوونکو په وړاندې دا وو چې تر شپېتو زيات مظاهره کوونکي يې ووژل، تر دوو سوو زيات يې زخميان کړل، او نامعلوم شميرخلک يې زندانونو ته ورواچول، چې تر تعذيب لاندې شپې ورځې تېرې کړې.

تر ټولو بد لا دا وو چې په همدې ورځو کې د کرزی د اداري د پوځ لوی درستيز جنرال (شيرمحمد کريمي) د ننګرهار په خوږيانيو کې له (جان الن) سره د امريکايې پوځيانو اډې ته ورغی او هغوئ ته وويل چې ستاسي قربانې به بې ځايه نه ځي.

**د امريکايانو په لاس د رامنځته شويو ټولنو او تشکيلاتو (مدني ټولنې) دريځ:**

ټولو هغو ادارو، د بشري حقوقو په نامه ټولنو، د ژورنالستانو اتحاديو، د ښځو د حقوقو ټولنو، د لوبو او ځوانانو په نومونو ټولنو، ادبي او فرهنګي ټولنو، محلي نادولتي رسنيو او راډيوګانو او د غرب هغو کرايې ډنډورچيانو چې د سياسي او ټولنيزو چارو د کارپوهانو په نامه په رسنيو

کې د دښمن په ګټه تبیلغات کوي او پېښې داسې توجیه کوي چې د خپل ولس خلک ملامت او غربیان تبرئه کړي دغو ټولو امریکا پلوو جهتونو د دې پاڅون په اړه منفي موقف وښود، او هغه يې د پردیو د لمسون په نتیجه کې وباله، او د پاڅون کوونکو د حوصلو د ماتولو او د هغوئ د غضب د سړولو هڅه يې وکړه. او په دغه ډول دریځ يې ثابته کړه چې د دوئ ټول تشکیلات د یرغلګرو له لوري رامنځته شوي، د همهغوئ له لوري تمویلېږي او د همهغوئ لپاره کار کوي. د دوئ نه دافغانستان له آزادۍ سره کار شته، او نه هم په سخته ورځ د خپل ملت ترڅنګ درېږي.
دغه ټولنې به تر هغه دلته د دښمن اجنډا ته کار کوي چې تر څو يې د دښمن طیارې پر سر سیوري کوي. او کله يې چې دغه سیوري له سره لرې کېږي دوئ به هم یا بڼه بدلوي، او یا به غرب او ګاونډیو هېوادونو ته تښتي.

**د منحرفو تنظیمونو او د روحانیت د دروغجنو مدعیانو دریځ:**

د دې پاڅون په اړه د هغو منحرفو تنظیمونو چې یو وخت جهادي تنظیمونه بلل کېدل، او هم د هغو اشخاصو دریځونه چې په ټولنه کې چې په درواغو ځان د پیر، حضرت، قاضي، جهادي رهبر، حجة الاسلام او حجة الله په نومونو ځانونه مطرح کړي او د روحانیت د پاللو په نامه هم له خلکو او هم له راغلو یرغلګرو خپل (قلنګ) اخلي دریځ هم منفي وو. دوئ ټولوخاموشي اختیار کړي وه، او ځینې خو يې لا پدې هڅو کې ول چې څنګه دغه پاڅون سوړ کړي ترڅو د یرغلګرو په شتون کې د دوئ دربارونه، شخصي پوهنتونونه، تنظیمي تلویزونونه او تنظیمونه د پاڅون له څپو خوندي پاتې شي.

**د طالبانو دریځ:**

طالبانو نه یوازې دا چې پاڅون يې تأییدکړ او هغه يې د افغانستان د مؤمن ولس د غیرت او ارادې مظهر وګڼه، بلکې له پاڅون سره همزمان

یې خپلې حملې نورې هم د دښمن په خلاف زیاتې کړې، او پر ولس یې غږ وکړ چې دې پاڅون ته تر هغه دوام ورکړي چې دښمن لدې خاوې وتلو ته اړ شي.

**دګاونډیو هېوادونو دریځونه**:

دګاونډیو هېوادونو نظامونو چې په خپله په یو نه یو ډول د غربي ائتلاف غړي او یا ملاتړي دي کوښښ وکړ چې مظاهري او پاڅون په افغانستان پورې تړلې وګڼي، نه دا چې قرآن کریم د ټولو مسلمانانو کتاب دی او ټول دې یې باید په ننګ راپورته شي او د یوه امت په حیث دې د کفارو په وړاندې مشترک دریځ ونیسي.

**د پاڅون د راتلوکي لپاره ځینې توصیې**:

دا چې افغانانو د خپل پاڅون لویې لاسته راوړنې او ژور تاثیرات ولیدل نو پکار ده چې دغه پاڅون په یوه او بل شکل همداسې متداوم پاتې شي، ځکه چې د تداوم لپاره یې ټول هغه اسباب او علتونه پر ځای پاتې دي چې په پیل کې یې موجود ول. بلکې د تداوم د مشروعیت لپاره یې نور دلائل هم رامنځته شوي دي لکه:

۱ـ د اشغال له حکومت سره د وژل شویو مظاهر چیانو محاسبه.

۲ـ د زخمیانو درملنه، پوښتنه او هغوئ له دښمن څخه په امان ساتل.

۳ـ د نیول شویو ځوانانو راخوشي کول.

۴ـ د هغو پوځي او امنیتي افسرانو تعقیب چې په خالي لاسه مظاهره چیان یې وژلي دي او داسې نور.

که چېرې دغه ډول مظاهري د ښارونو ترڅنګ لیرې پرتو ولسوالیو ته هم خورې شي، او د ولس خلک د مفسدینو، مجرمینو، له یرغلګرو سره د کار کوونکو په خلاف په کلیو او ولسوالیو کې هم داسې راپورته شي لکه په لیبیا، تونس، یمن، سوریه او مصر کې چې راپورته شول چې ځینو یې مفسد او تپل شوي نظامونه رنګ کړل او ځینې نور یې د لړزیدو په حال

کې دي نو ډېر ژر به په ټول افغانستان کې هم وضعیت بدل شي. مفسد چارواکي او د يرغلګرو ملګري به ښارونو او د يرغلګو مراکزو ته وتښتي، او خلک به په يومخيز ډول د يرغلګرو او د هغوئ د ملګرو له شر څخه خلاص شي.

**څو ضروري کارونه**:

۱ـ د دې پاڅون ټولې پېښې صحنې، شهيدان، زخميان او بنديان بايد د هېواد د اصيلو او باضميره ځوانانو او مسلمانو فرهنګي ټولنو لخوا توثيق او راتلونکي ته وساتل شي.

۲ـ د شهيدانو بيوګرافي او د هغوئ د عکسونو البوم بايد انټرنټي سايټونو ته راوويستل شي ترڅو ولس د خپلو شهيدانو قدرداني وکړي.

۳ـ د هېواد علماء، مجاهدين، مخور مشران او د مکاتبو او پوهنتونونو استادان بايد ځوانان پوه کړي چې په مظاهرو کې د خلکو شخصي شتمنيو ته په هېڅ صورت ضرر رسول روا نه دي، او لدې کاره يوازې زمونږ خپل ولس ته تاوان رسېږي.

۴ـ د يرغلګرو په صفونو کې دننه شوي مسلمان ځوانان بايد دا خبره نوره هم ښه درک کړي چې د دوئ هر يو فرد د يوه ولس په اندازه دښمن ته تاوان رسولي شي. نو بايد چې فرصت له لاسه ورنکړي او پر دښمن خپل ګوزارونه نور هم کاری او تندکړي. دا وې د افغانانو د قرآني پاڅون په اړه څو خبرې چې له خپل مسلمان ولس سره مې شرکې کړې، هيله ده چې په دې کار مې د دغه سپېڅلي پاڅون يادګار تر يوه حده د دې ولس په تاريخ کې خوندي کړی وي.

# په افغانستان کې د امریکا ماتې نور په کنفرانسونو نه جبیره کېږي

د تېرو لسوکلونو جګړې، وژنې، دکورونو او کلیو ورانېدل، د خلکو بې کوره کېدل، زندانونه، د شتمنیو له منځه تلل، د لسګونه زره انسانانو وژل کېدل او پداسې حال کې د سلګونو ملیارده ډالرو ضائع کېدل چې هېڅوک ورڅخه خوښ ندي، دا هر څه د هغه کانفرانس نتائج دي چې په ۲۰۰۱ م کال کې امریکا د جرمني په (بن) کې په افغانستان کې د یوه تحمیلي حکومت د جوړولو په نیت جوړ کړ ترڅو د هغه له لارې د افغانستان اشغال ته د قانونیت بڼه ورکړي.
خو کله چې لس کاله وروسته د (بن) د لومړي کانفرانس چارج ختم شو او نور یې د دې جګړې اوږدولو ته برق نشو ورکولی نو امریکا او ورسره ملګرو یې یو ځل بیا په (۴ / ۱۲ / ۲۰۱۱ م) تاریخ په هماغه (بن) کې پدې اراده یو بل کانفرانس جوړ کړ چې هم د هغه له لارې د خپلو تېرو لسو کلونو ناکامۍ د بریالیتوبونو په بڼه کې معرفي کړي، او هم دغه جګړه په نوي شکل او نویو وسایلو تر نوي شعار او پلمې لاندې د سیمه ییزو لوبغاړو په وسیله روانه وساتي خو خپله د جګړې له میدانه پښې سپکې کړي.
امریکا د (بن) د دوهم کنفرانس له لارې هڅه وکړه چې د لسو نورو کلونو لپاره له اروپا او نورو ملګرو څخه یې د دې جګړې د تمویل ضمانت ترلاسه کړي، او هم د کابل اداري ته مشروط اطمینان ورکړي چې ټینګه شي، دا جګړه پر مخ بوځي، او پرې نږدي چې د امریکا د تېرو لسو کلونو لاسته راوړنې په اوبو لاهو شي.

خو حقيقت دا دي چې پدې سيمه کې د امريکا پلانونه نور له ماتې سره مخ دی، او د جهاد او مجاهدينو د بري مخه نور د شگو په بندونو نه نيوله کېږی.

**په سيمه کې د امريکا درې اهداف او هغو د تحقق په کار کې د امريکا ناکامي**

امريکا غوښتل پر افغانستان باندې د يرغل په ذريعه لاندې درې مهم او خطرناک هدفونو ته ورسېږي:

**اول هدف ـ د طالبانو اسلامي حکومت له منځه وړل**:

او دا ځکه چې طالبانو د سياست، حاکميت، ديپلوماسۍ او د بين المللي تعامل په ډگرونو کې پر ټولو هغو اصولو او قوانينو چې غرب وضع کړي،متعارف کړي او د نړۍ هېوادونه يې د هغو منلو ته اړ کړي وو اسلام او شرعي نظام ته ترجيح ورکړه.

غرب چې څو پېړۍ يې په مسلسل او هر اړخيز ډول د مسلمانانو پر فکرونو کار کړي وو او د زرگونو ملياردو ډالرو په مصرفولو يې حقيقي اسلام د سياست، قيادت او حاکميت د اسلامي نړۍ په هېوادونو کې له صحنې ايستلی وو او په اسلامي نړۍ کې يې داسې يو نسل روزلی و چې د غرب سياست، مفکورې او نظام ته يې پر اسلامي شريعت او اسلامي فکر او عقيدې ترجيح ورکوله او عملاً يې په اسلامي نړۍ کې د اسلامي نظام پر ځای غربي ډوله نظامونه حاکم کړي وو خو د طالبانو د اسلامي نظام په قيام نه يوازې په افغانستان کې د غرب فکري او سياسي پانگوونه په اوبو لاهو شوه بلکې د اسلامي نړۍ نور ولسونه هم دېته وهڅېدل چې اسلام اوس هم حاکمېدلی شي او شريعت اوس هم د نافذيدلودی او د بشر د هرې زمانې د ستونزو د حل صلاحيت لری نو بايد هغوئ هم د افغانانو په څېر په خپلو هېوادونو کې د طاغوتي نظامو په خلاف مبارزه وکړي او هلته هم اسلامي نظام حاکم کړي.

خو غرب ته دغه وضعيت په هېڅ صورت د منلو وړ نه وو، ځکه چې که چېرې د طالبانو اسلامي امارت يو ځل د يو کامياب ماډل په حيث تبارز کړی وای نو بيا به په ټوله اسلامي نړۍ کې غرب پلوي نظامونه يو په بل پسې پرځېدل او مسلمان ولسونه به د غرب له ډيموکراسۍ د اسلام غېږې ته راګرځېدل، چې دا به بيا په ټوله اسلامي نړۍ کې دغرب د سياستونو د ناکامۍ او دهغه دملګرو نظامونو د زوال سبب ګرځېده.

هماغه وو چې غرب له پيله د طالبانو په وړاندې د دښمنۍ موقف ونيو. له يوې خوا يې پر طالبانو بېلابېل بنديزونه ولګول، د هغوئ د نظام دکمزوري کولو ټول فرصتونه يې استعمال کړل. او له بل لوري يې د هغوئ مخالفه جبه په رسميت وپيژندله، ويې پالله، او د هغې جګړه يې تمويل کړه.

خو دا چې د طالبانو مخالفې جبهې د خپلې واکمنۍ په وخت کې د حکومت ، ادارې او سياست تر ټولو فاسد او بدرنګه تاريخ پرې ايښی وو نو عام ولس ورسره د طالبانو په مقابل کې ونه درېد چې په نتيجه کې ونشو کولای چې خپل مخالفت ولسي کړي او په ټول افغانستان کې د طالبانو په خلاف مقاومت ايجاد کړي. نو هماغه وو چې غرب په خپله لاس په کارشو او پر افغانستان يې خپل پوځي يرغل وکړ.

د دې لپاره چې غرب د طالبانو اسلامي تجربه په مکمل ډول له منځه يوسي نو د سيمې هېوادونه او خپل غربي ملګري يې له ځان سره په دې جګړه کې ورشامل کړل، او هم يې د اسلامي نړۍ مفسدو، مستبدو او غرب پلوو حاکمانو ته و ويل چې که په افغانستان کې د طالبانو د تجربې په له منځه وړلو کې له دوئ سره شريک نشي نو ډېر ژر به په خپلو هېوادونو کې هم همدې ته ورته تجربې او مثالونه و ويني.

**دویم هدف ـ په منځنۍ اسیا کې د امریکا د جیوستراتیژیکو مصالحو تامین او د سیمې د انرژۍ پر منابعو او د هغې د انتقال پر لار تسلط:**

دغه هدف امريکا او ټول غرب ته ځکه اهميت لري او په جګړې ورته ارزي چې په روانه او يا راتلونکې پېړۍ کې به د منځني ختيځ (عربې نړۍ) نفتي منابع وچېږي، او يا به په عربي نړۍ کې د جهادي او پوځي بدلونو له امله له داسې يوه وضعيت سره مخ کېږي چې هلته به د امريکا برلاسي نوره نه چلېږي. خو له بل لوري بيا په (منځنۍ آسيا) او د (کسپين) د بحيرې په حوزه کې دومره نفتي ذخاير کشف شوي چې ښايي د څو پېړيو لپاره به د نړۍ د خلکو ضرورت پوره کړي.

غرب د خپل پانګه وال نظاو او امپرياليستي روحيې د درلودلو له امله غواړي چې په هر ډول چې وي بايد د دغې سيمې نفتي منابع ددوئ په ولکه کې ورشي، تر څو يې پر ټولې نړۍ نفتي کنټرول او برلاسی ثابت شي، او په بين المللي ډول د نفتو مارکيټ داسې وچلوي چې نرخونه او شرائط يې غربيان وټاکې، او په دې ډګر کې يوازې هغو لويو کمپنيو ته د فعاليت زمينه برابره کړي چې يا خو د غربيانو دي، او يا يې هم ګټې غربيانو ته رسېږي.

غرب خپل دغه هدف ته يوازې هغه وخت رسېدلی شو چې يا يې افغانستان په مستقيم ډول اشغال کړی وای، او يا يې دلته هم يو غرب پلوی حکومت تأسيس کړی وای، ځکه چې غرب نه غواړي د (کسپين) د بحيرې او د منځنۍ آسيا د نفتو او ګازو ليکه دې د روسيې له لارې (بالتيک) او يا هم د ايران له لارې د هند سمندر ته تېره شي، چې پدې کار سره به يې خپله مرۍ د روسانو او اټومي کېدونکي ايران په لاس کې ورکړې وي. له همدې امله امريکا او غربي ملګرو يې لومړی افغانستان په پوځې ډول اشغال کړ، او بيا يې دلته خپل اشغال ته د مشروعيت د ورکولو په مقصد يو تپل شوی حکومت جوړ کړ.

**دريم هدف ـ په افغانستان کې مجاهدين او د جهاد نظريه له منځه وړل:**
غربيان د اوسني عصر په اسلامي نړۍ کې له هېڅ شي دومره وېره نه لري لکه له جهاد او جهادي فکر څخه يې چې لري. غربيان د اسلامي نړۍ له پوځونو نه وېرېږي، ځکه چې هغه ټول د همدوئ په خوښه او د همدوئ د مصالحو د تأمين لپاره جوړ شوي دي. هغوئ د اسلامي نړۍ له ځوانانو او نوي نسل څخه هم وېره نه لري، ځکه چې هغه يې هم په لوبو، تن پرورۍ، عشرتونو، فحاشۍ، بې حسۍ او پداسې ډول زده کړو مصروف کړي چې دين او معنويت ته ورکې هېڅ ځای نشته، يوازې مادي اهداف لري، او دنياوي مناصبوته رسول يې سترهدف دی.
غربيان د مسلمانانو له شتمنيو، معادنو، نفت او ګازو او اقتصادي فعاليتونو څخه هم په وېره کې نه دي، ځکه چې پر دې هر څه يې د خپلو قوانينو او ملټي نشنل (ګڼ ملتيزو) کمپنيو او ګوډاګيو حکومتونو له لارې کنټرول حاصل کړی، او هر څه يې په داسې شکل مهار کړي چې په هېڅ صورت د دوئ د مصالحو په خلاف نشي استعمالېدلی.
خو غربيان چې په اسلامي نړۍ کې له کوم شي وېره لري هغه د جهادي فکر او مجاهدينو شتون دی، ځکه چې جهاد او مجاهدين د مسلمانانو د خپلې عقيدې تمثيل کوي، او د اسلام د حاکميت لپاره لاره هواروي.
غربيان لدې امله هم په افغانستان کې له جهاد او د مجاهدينو له تجمع څخه په وېره کې دي چې لکه څنګه چې جهاد دکمونيزم ټغر ورټول او د هغه فلسفه يې ورباطله کړه، همداسې کولی شي د اسلامي نړۍ هېوادونه د غرب له تسلطه هم خلاص کړي.
دا هم غرب ته ور معلومه وه چې په اوس وخت کې افغانستان يوازينۍ هغه خاوره ده چې هم يې ټول ملت له جهاد سره بلد دی، او هم د اسلامي نړۍ د مظلومو او مقهورو مجاهدينو او مهاجرينو لپاره خوندي ځای دی.
د غرب د فکر تحقيقاتي مراکزو او د فيصلي د صادرولو مراجعو ته دا ورمعلومه شوې وه چې که افغانستان د طالبانو تر قيادت او حاکميت

لاندې همداسې پاتې شي نو لرې نه ده چې افغانان به د غرب لخوا د یرغمل شوي اسلامي نړۍ د ولسونو لپاره د آزادۍ یو قوي مثال او د الهام مصدر وګرځي.

نو ځکه یې لومړی جهاد ته د (تروریزم) نوم ورکړ، او بیا یې د جهاد او مجاهدینو په خلاف په ټوله نړۍ کې نړیواله جګړه اعلان کړه.

امریکا د پورتنیو دریو لویو هدفونو ترڅنګ نور سیمه ییز اهداف هم درلودل چې د هغو له جملې څخه د سیمې په هېوادونو کې تر خپلې څارنې او پالنې لاندې د اقلیتونو لپاره د ورو (دولت ګوټیو) جوړول او بیا هغوئ د میشتو اکثریتونو په خلاف جنګول هم وو.

خو آیا امریکا د خپلې لس کلنې جګړې او سلګونو ملیارده ډالرو په مصرفولو او د خپلو زرګونو پوځیانو او د لسګونه زره افغانانو په وژلو خپلو هدفونو ته ورسېده؟

آیا د طالبانو (سیاسي، نظامی) پدیده له منځه لاړه؟

آیا د غرب ډیموکراسي په افغانستان کې حاکمه شوه؟

آیا له غربه راصادر شوي لیبرال او له خپل ملته پردي شوي افغاني الأصله غربیان د افغانستان پر کلیو، ولسوالیو او ولسونو مسلط شول؟

آیا د دېرش کلن جنګ تغر یې ټول کړ؟ او که یې جګړه د نامعلوم وخت لپاره نوره هم وغزوله؟

آیا امریکایانو د منځنۍ آسیا او د (کسپین) د حوزې د تېلو منابعو ته لاره پیداکړه؟

آیا هغه د تېلو او ګازو نل لیکې په لنډو د افغانستان له لارې تېرې شوې چې غرب یې د خپل راتلونکی ماشیني ژوند لپاره د وینې شریان ګڼي؟

آیا امریکا په افغانستان او سیمه کې په پوځي او امنیتي لحاظ دومره مسلطه شوه چې د خپلو کمپنیو د پراخ فعالیت لپاره زمینه برابره کړي؟

آیا د انرژۍ په نړیوال مارکیټ د امریکا تسلط ټینګ شو؟

آيا په افغانستان کې يې جهاد او مجاهدين له منځه يوړل؟ او که يې د يو بل داسې مجاهد نسل د راټوکېدلو حالات برابر کړل چې په هېڅ صورت له غرب سره جوړې ته نه تيارېږي، او د جنګ لپاره يې داسې لارې چارې انتخاب کړي چې د غرب پوځي او معلوماتي ټکنالوژۍ ته يې ماتې ورکړه؟

آيا جهاد او مجاهدين يوازې په افغانستان پورې محدود پاتې شول او که په ټوله سيمه کې داسې خواره شول چې په هېڅ ځای کې ورځخه د غرب مصالح خوندي ندي؟

آيا د غرب ولسونه او حکومتونه په اقتصادي لحاظ پياوړي شول او که يو په بل پسې د افلاس پر لوري ور روان دي؟

آيا د امريکا اقتصاد وده وکړه؟ او که يې د بوديجې کسر تر ټولو لوړې اندازې ته ورسېد ؟

آيا د اروپا (يورو زون) غښتلی شو؟ او که د زوال او شړېدلو له تهديد سره مخ دی او روسان بيا ورته سترګې برګوي؟

که له حقايقو سترګې پټې نشي نو د دې ټولو پوښتنو ځواب منفي دی. او د غرب او امريکا ټول پلانونه دلته په افغانستان او سيمه کې له داسې ماتې سره مخ دي چې کنفرانسونه يې نشي جبيره کولی.

امريکا او ټول غرب پدې جګړه کې نه يوازې خپلو هدفونو ته ونه رسېدل، بلکې خپل ډېر څه يې داسې له لاسه ورکړل چې هېڅکله به يې بيا اعاده نه کړای شي.

پدې جګړه کې غرب هم خپل پوځيان له لاسه ورکړل، هم يې خپل اقتصاد زيانمن کړ، هم يې خپل نړيوال هيبت له لاسه ورکړ، او هم يې خپل د ډيموکراسۍ، بشري حقوقو، آزادۍ او نوي نړيوال نظام هغه غولوونکي شعارونه له لاسه ورکړل چې تر ډېرې مودې يې د هغو په پورته کولو خپل تفوق ساتلي وو.

**امریکا د قضیې ریښتني او واقعي حل ته نه حاضریږي:**

امریکا په خپلې رواني جګړې کې د غلبې ټولې لارې او وسائل تجربه کړل، هغې خپل پوځي قوت او د جنګي ټکنالوژي زور تجربه کړ، د پوځیانو ډېرول یې وازمایل، د خپل ځان لپاره له افغانانو جوړه کړې اردو او امنیتي قواوې یې وازمایلې، اربکیان، قومي ملیشې او د شخصي امنیتي کمپنیو بې مسؤولیته جنګیالي یې په کار واچول، تر دوو سوو د سیاسي احزابو تأسیس یې وازمایه، د قومونو پر اساس د حکومتي ونډو تقسیم یې وازمایه، د سولې لپاره تش په نامه ارګانونه او شوراګانې یې تجربه کړې، له اجیرو ملایانو او کمرشل سیکولرو پیرانو یې کار واخیست، تعلیمي نصاب یې څو څو ځله تبدیل کړ، او اسلامي او جهادي مفاهیم یې پدې نیت ورڅخه لرې کړل چې نوی نسل له جهاد سره نا آشنا شي او د آزادۍ او قربانۍ انګیزه وانخلي، د رسنیو، مطبوعاتو، تلویزیوني او راډیویي کانالونو سیلاب یې پر یوه کم سواده ولس راسپور کړ، د مقاومت د له منځه وړلو لپاره یې د ګاونډیو هېوادونو او په هغو هېوادونو کې د ځینو سیاسي او قومي احزابو مرسته حاصله کړه، پر سخت دریځو او معتدلو یې دمجاهدینو د وېشلو ډېرې هڅې وکړې، او پدې لاره کې ښه ډېر ډالر وشیندل، نړیوال کانفرانسونه یې جوړ کړل، خو نه یې مجاهدین مات کړل، او نه یې مقاومت له منځه یووړ، او نه یې هم پر ټول افغانستان خپل تسلط ټینګ کړای شو.

امریکا د قضیې د حل لپاره ټولې کږې لارې وازمایلې، خو د حل ریښتنې او واقعي لارې ته ځان نه وربرابروي. د حل یوازینۍ لار دا ده چې غرب باید خپلې قواوې له افغانستانه وباسي، خپل اشغال پای ته ورسوي، او پرېږدي چې افغانان د خپل دین، خپل فرهنګ او خپلو معتقداتو پر اساس د خپل ځان لپاره نظام جوړ کړي، او همدغه یوازینی حل دی او بس. او امریکا به آخر هم همدې حل ته رجوع کوي که څه هم چې ډېره موده وروسته وي.

خو امریکا د خپلو امپریالستي مقاصدو د تحقق په مقصد د حل له دې واقعي لارې مخ اړوي، او پدې جګړه کې یې مثال د هغه بایلونکي قمارباز دی چې خپل امیدونه یې په خپلې وروستۍ روپۍ پورې تړلي وي او فکر کوي چې ګوندې چانس به ورسره یاري وکړي او خپل ټول بایللی به مال د همدې وروستۍ روپۍ په (دَو) کولو راګرځوي. خو چې کله هغه وروستۍ روپۍ یې هم بایلي نو بیا غمجن پورته شي او پر خپلو هغو ملګرو لعنتونه وايي چې دی یې دې تاوان ته سوق کړي وو.

د روانې جګړې یواځینی حل د اشغال ختمول دي او بس، ځکه چې پدې خاوره کې پردي بوټي نه راشنه کېږي، او که راشنه هم شي ډېر ژر بېرته وچېږي. دلته د انګرېزانو بوټي وچ شول، دلته د روسانو بوټي هم وچ شول، او دا دی له ورایه ښکاري چې د امریکایانو بوټي هم ریښې ونه غزولې. نو ښکاره خبره ده چې د(بن) په څېر کنفرانسونه یوازې د وخت او ډالرو د ضائع کولو په معني دي او بس.

**د بن دویم کنفرانس خپل اهداف ترلاسه نه کړل:**

د بن دوهم کنفرانس د لاندې اهدافو د تحقق لپاره ترسره شوي وو:

۱ – مجاهدین د مذاکراتو مېز ته راکاږل او د کابل له ادارې سره یې په یوه نظام کې شریکول.

۲– د دې ضمانت حاصلول چې د امریکایې پوځونو تر وتلو وروسته دې د امریکایانو او اروپایانو لاسته وروړنې لکه د دوئ اساسي قانون، دیموکراسي، اجیره اردو، د ښځو غربي ډوله آزادي، سیاسي پلورالیزم، د ارتداد آزادي (دیني پلورالیزم) او د غرب نور تأثیرات له منځه نه وړل کېږي.

۳ – د ناټو هېوادونه او د امریکا نور ایتلافیان دې تر (۲۰۲۴م) پورې د افغانستان جګړه تمویل کړي.

۴ – د افغانستان ګاوندي هېوادونه دې په افغانستان کې د امریکایې پوځي اډو په شتون قانع کړل شي.

خو پورتني هدفونه یو هم حاصل نه شول، ځکه چې طالبانو چې د قضیې یو اړخ دی په کنفرانس کې مشارکت ونه کړ، او دا ځکه چې د کنفرانس په اجنډا کې د قضیې اساسي حل هېڅ ځای نه درلود.

امریکا د خپلو لاسته وروړنو دنه له منځه تللو ضمانت هم ځکه حاصل نه کړ چې نه په قضیه کې مخالف لوري شتون درلود، او نه ورته د امریکا مطالبې د منلو وې.

د جنګ تمویل هم په داسې شرایطو پورې وتړل شو چې پوره کول یې د کابل د ادارې له توانه وتلی کار دی. او د پوځي اډو په اړه د ګاونډیو د موافقې ارمان یې هم ځکه پوره نشو چې ټولو ګاونډیو منفي موقف وښود.

نو ویلای شو چې په افغانستان کې امریکا ماتې خوړلې، د سیمې او افغانستان لپاره یې ټول پلانونه ناکام شوي دي، او کنفرانسونه نور د امریکا مشکل نشي ورحل کولی. نو ښه به دا وي چې امریکا پر خپلې استراتیژۍ بیا له سره غور وکړي، او د قضیې پر اساسي او واقعي حل تمرکز وکړي.

## د ستراتيژيک تړون خطرناک امريکايي اهداف

له تېرو څو کلونو راهيسې د امريکا او په افغانستان کې د هغې په لاس د جوړ شوي حکومت تر منځ د (ستراتيژيک مشارکت د تړون) خبره کېږي، او د همدغه تړون د رامنځته کولو لپاره هم امريکايي رسنۍ او هم په افغانستان کې د امريکا په لاس د جوړې شوې ادارې مطبوعات د عامه ذهنيت د تيارولو په مقصد مسلسل کار کوي.
دا چې د دې تړون حقيقت څه شی دی ؟ اهداف يې څه دي؟ او اغېزې به يې د افغانانو او افغانستان په راتلونکي کې څه وي؟ پدې هکله د خپلو مسلمانو هېوادوالو په خدمت کې دا لاندې څو کرښې ليکم :
امريکا هغه زورواکی امپرياليست هېواد دی چې غواړي پر ټولې نړۍ يې واک وچلېږي. له همدې امله په ټوله نړۍ کې ښکيل دی او د ټولې نړۍ په سياسي، حقوقي، اقتصادي، کلتوري، تعليمي، پوځي او اجتماعي قضاياوو کې مستقيم او غير مستقيم دخالت لري.
امريکا ته دا دزغملو نه ده چې د نړۍ هېوادونه دې د هغې له مستقيم او يا غير مستقيم تاثيره ليرې پاتې شي. د همدې مقصد لپاره يې يوازې له امريکا څخه د باندې (۸۶۵) لويې پوځې اډې جوړې کړې دي، او په لکونو پوځيان يې ورکې ځای پر ځای کړي چې هر کال په سلګونو ملیارده ډالر ورباندې مصرفوي.
 امريکا نه يوازې دا چې د خپلو پوځونو، جنګې بېړيو او په فضا کې د سټيلايټونو په وسيله پر ټولې نړۍ د مسلط کېدلو هڅه کوي، بلکې په زرګونو ناپوځي دولتي او نادولتي موسسې يې هم په ټوله نړۍ کې په کار اچولي دي تر څو په هره وسيله چې کېدای شي پر ټولې نړۍ د امريکا د پوځي، اقتصادي او سياسي برلاسۍ لپاره کار وکړي.

دا چې افغانستان په نړۍ کې په تېره یوه پېړۍ کې ډېره مهمه سیمه ګرځېدلې او د ټولې نړۍ په سطحه د لویو سیاسي تحولاتو پیل له همدې ځایه شوی، لکه د انګریزي امپراطورۍ د زوال پیل، د شوروي اتحاد او د هغه د نورو ملګرو د زوال پیل، په اسلامي هېوادونو کې د اسلام د حاکمیت لپاره د مسلح جهاد پیل، او د لومړي ځل لپاره د ټول غرب د پوځي ماتې او د ناټو د متلاشي کېدلو او نورو لویو حادثو پیل ټول له همدې ځایه وشو.

په (جیو ستراتیژیک) لحاظ هم افغانستان ډېر مهم دی، او دا اهمیت به یې په راتلونکې کې لا نور هم ډېرېږي. همدغو ټولو اهمیتونو ته په پام سره امریکا نه غوښتل او نه اوس غواړي چې افغانستان دې د امریکا له تاثیر او تسلط څخه لیرې پاتې شي، نو ځکه خو یې دلته خپل په لکونو پوځیان راوستل، او تر زرو ملیاردو ډېر ډالر یې مصرف کړل.

امریکا دلته د خپلو ګټو د خوندي کولو او د خپلو پروګرامونو د اوږدمهالي عملي کولو لپاره په سلګونو سیاسي او اجتماعي تشکیلات، احزاب او ټولنې رامنځته کړې، او دلته یې یوه داسې جګړه روانه کړه چې خپل مقابل لوری یې ورکې ښه نه وو درک کړی.

پدې جګړه کې که څه هم چې امریکا په پوځي لحاظ له ماتې سره مخ ده، خو هغه هڅه کوي چې د خپلو اوږدمهاله اهدافو د تحقق لپاره د جګړې شکل او شعار بدل کړي او په یوه بله مناسبه بڼه دلته خپل حضورته دوام ورکړي، او خپل دغه پوځي او ملکي شتون ته دلته د (ستراتیژیک مشارکت) د تړون په چوکاټ کې مشروعیت ورکړي.

# د ستراتيژيک تړون اصلي هدفونه

**اول هدف - د منځنۍ اسيا او د کسپين د حوزې نفتي منابعو ته دلارې تامين:**
په امريکا کې د ستراتيژيکو څېړنو مراکز دې نتيجې ته رسېدلي دي چې امريکا او ټول غرب بايد د انرژۍ د ضرورت د پوره کولو لپاره له عربي نړۍ پرته د نورو منابعو په لټه کې شي، او له همدا اوسه بايد ورته ځان ورورسوي، ځکه چې له يوې خوا د عربي نړۍ د تېلو زېرمې مخ پر وچېدلو دي، او له بلل لوري د عربي نړۍ سياسي، پوځي، امنيتي او اجتماعي وضعيت داسې لورته روان دی چې ښايې نور به د امريکا د سياستونو د پلي کولو لپاره يو خلاص ميدان پاتې نشي.
نو له همدې امله بايد غرب هڅه وکړي چې د نفتو پر عربي منابعو خپله تکيه کمه کړي، او د منځنۍ آسيا او د(کسپين) د حوزې بډايو نفتي منابعو ته چې ښايي د راتلونکو څو پېړيو لپاره کار ورکړي لاره پيدا کړي.
دغه سيمه د امريکا د پانګوونې لپاره ځکه په زړه پورې ده چې له يوه لوري يې هېوادونه غواړي د خپلو منابعو لپاره مارکيټ پيداکړي، او له بل لوري لا تر اوسه په دې سيمه کې د امريکا او غرب په خلاف هغه ډول اجتماعي کرکه او نفرت نشته لکه په نوره اسلامي او عربي نړۍ کې چې وجود لري.
خو دا چې دې سيمې ته تر ټولو لنډه او آسانه لار له افغانستانه تېرېږي، او دا لار بايد دومره خوندي وي چې د غرب ډېره لويه سرمايه او د نفتي ضرورت پوره کېدل په خطر کې ونه لوېږي، نو ځکه خو امريکا او ټول غرب لومړی افغانستان اشغال کړ، او بيا يې دلته خپل اشغال ته د مشروعيت ورکولو په مقصد يو کمزوری حکومت جوړ کړ، او بيا يې له دې تپل شوي حکومت سره د خپل دايمي او يا اوږمهالي پوځي شتون

خبري پيل کړې، ترڅو دلته خپل پوځي حضور دومره قوي وساتي چې د خپلو اقتصادي او سياسي ګټو ساتنه وکولی شي،او د خپل پوځي حضور په قوت دلته پر هر ډول نظام دا خبره ومني چې د منځنۍ آسيا او د (کسپين) حوزې ته دې ددوئ لار په هغه کيفيت او هغو شرائطو پرانستې پاتې وي چې دوئ يې غواړي. او که هر وخت دغه مصالح له کوم خطر سره مخ کېږي نو دغه پوځي اډې بايد د دې خطر دمخنيوي توان ولري.

امريکا ته د دې لارې تأمين په دومره درنو مصاريفو او د خطرونو په زغملو ځکه ارزي چې غرب تر اوسه پورې د انرژۍ لپاره د نفتو بل بديل نه لري، او د دې لپاره چې حرکت يې په ټپه ونه درېږي نو غرب دا ګڼي چې په هره وسيله او هر قيمت چې وي بايد د انرژۍ پر منابعو خيټه واچوي، او يا ورته پراخ لاس رسی ولري. او که پدې لاره کې دي ته ضرورت پيښ شي چې پردي هېوادونه اشغال او ولسونه يې يرغمال کړي، نو هغه دې هم وکړي.

**دويم هدف ـ په افغانستان کې د يوه ريښتني اسلامي حکومت د قيام مخنيوی:**

ټول غرب او امريکا دې نتيجې ته رسېدلې چې په راتلونکي کې يې جګړه يوازې له اسلام سره ده. ځکه چې کمونيزم د يوې حاکمې او فعالې نظريې په حيث له منځه تللی، نور دولتونه او نظريات لدې امله له غرب سره ټکر نه غواړي چې له غرب سره ديني، فرهنګي، اجتماعي مشترکات او متبادلې ګټې لري.

خو اسلام يوازينی هغه دين دی چې نه غرب ته تابع کېږي، او نه هم له غرب سره فکري،کلتوری او اجتماعي پيوندونه لری. او د دې لپاره چې مسلمانان د غرب په خلاف د پوځي، فکري، سياسي او اقتصادي مقاومت وړتيا ولري نو بايد داسې آزاد هېواد او يا هېوادونه ولري چې ريښتنی اسلام ورکې حاکم وي. هغه اسلام چې د معاصر کفر له هېڅ ډول

لکه ډیموکراسۍ، لیبرالیزم، نړیوالتوب، هیومنیزم، د دینونو تر منځ یو والي او نورو هغو نظریاتو سره چې د معاصر غربي او یا شرقي جاهلیت زېږنده دي هېڅ پیوند نه اخلي.

د دغه ډول یوه ریښتني اسلامي حکومت د رامنځته کېدلو امکان تر بل هر ځایه په افغانستان کې ډېر دی، او دا ځکه چې افغانان د غرب د معاصر جاهلیت له زهرجنو تأثیراتو تر ډېره ځایه لیرې پاتې دي، ریښتني اسلام یې د ژوند طبیعي بڼه تشکیلوي، او له دین او آزادۍ څخه د دفاع په لاره کې د جهاد، هجرت، قربانیو، شهادتونو او هر ډول تکلیفونو د ګاللوله مفاهیمو سره په عملي ډول آشنا دي.

کله چې طالبانو د ځینې مشکلاتو او نیمګړتیاوو سره سره اسلامي شریعت پلی کړ، نو پدې کار یې د اسلامي نړۍ ټولو ولسونو ته دا خبره ور تلقین کړه چې په نظام او سیاست کې د شریعت تطبیقول د مسلمانانو د ستونزو یواځینی حل دی. د نړۍ مسلمانان هم دي ته متوجه شول چې هغوئ هم باید خپل هېوادونه د غرب له سیاسي، فرهنګي او فکري تسلط څخه خلاص او اسلامي شریعت ورکې پلی کړي.

هماغه وو چې غرب په افغانستان کې دیوه ریښتني اسلامي حکومت له قیام څخه په سخته وېره کې شو، او د هغه په خلاف یې یوه بې رحمه پراخه نړیواله جګړه پیل کړه چې لا تر اوسه روانه ده، او د هرې نوې مرحلې په رارسېدلو د خپلې جګړې بڼه او شرائط بدلوي تر څو د خپلې جګړې مؤثریت وساتي، چې پدې لړ کې د امریکا او د کابل د ادارې ترمنځ د(استراتیژیک مشارکت تړون) هم د جګړې د شکل د بدلولو د سلسلې یوه نوې کړۍ ده او اصلي هدف یې دا دی چې مجاهدین باید په هېڅ ډول پرېښنبودل شي چې یو داسې ریښتنی اسلامي حکومت جوړ کړي چې د غرب له تسلطه آزاد او د معاصر جاهلیت له تأثیراتو دې پاک وي.

په معاصر تاریخ کې دا خبره تجربو ثابته کړې چې د اسلامي حکومت قیام یوازې د (في سبیل الله) جهاد له لارې ممکن دی او بس. او دا هم په هغه

وخت کې چې د باطل حکومت وپرځول شي، او پر ځای یې اسلامي حکومت راوستل شي. نه دا چې د باطل له نظام او نظریاتو سره د (پیوند کارۍ) له لارې دې وشي لکه چې ځینې ډیموکراسي پلوه اسلامي احزاب او حرکتونه یې غواړي.

تجاربو دا هم وښودله چې په ډیموکراسۍ کې د مشارکت، انتخاباتو، سیاسي فعالیت او له سیکولرو احزابو سره د ایتلافونو او یوازې د دعوت له لارې اسلامي نظام هېڅکله نشي راتلای.

همدغه تجربه څو څو ځله په اسلامي نړۍ کې په ډېرو هېوادونو کې ناکامه شوه، او په قطعي ډول یې په اسلامي نړۍ کې کامیابیدل ناممکن دي. او دا ځکه چې په اسلام کې باید دین پر مسلمانانو حاکم وي، خو سیکولر، دیموکرات، نشنلستان، لیبرالان او نور له اسلامه په تېښته احزاب او عناصر په هېڅ ډول دا نه مني چې اسلام دې د مسلمانان د ژوند په هر اړخ باندې حاکم وي.

غرب هم په خپل ټول قوت د همدغو اسلام مخالفو ډلو ټپلو او عناصرو تر شا ولاړ دی او نه پرېږدي چې افغانان دې د اسلام تر حاکمیت لاندې ژوند وکړي. بلکې غرب د ریښتني اسلام پر ځای چې (وحیه) یې مصدر او مسجد او محراب یې تر شا ولاړ دی مسلمانان د هغه غربي ډوله بې حاکمیته اسلام خپلولو ته تشویقوي چې سیکولر (ترکیه) او نور د غرب په لاره روان هېوادونه یې مثالونه وړاندې کوي.

**درېیم هدف : د سیکولریزم، لیبرالیزم او تنصیرحمایت او پالل:**

امریکا له خپل یرغل سره سم په تېرو لسو کلونو کې دلته د خپلې اوږدمهالې اجنډا د عملي کولو په مقصد په لسګونو سیکولر، غرب پلوي، له دین څخه آزاد لیبرال او نشنلست ګوندونه، ټولنې او سیاسي تشکیلات ایجاد کړل. او د هغو تر څنګ یې په سلګونو دولتي او نا دولتي مؤسسې چې په سیاسي، اجتماعي، تعلیمي، فرهنګي او نورو ډګرونو کې فعالیت کوي په کار وګومارلې تر څو په شریکه د افغاني

ټولنې د سیکولر (بې دینه) کولو او د غرب پر لاره د هغې د روانولو لپاره کار وکړي.
امریکا د دغو تشکیلاتو او بنسټونو پر ایجاد او فعالولو په سلګونو ملیارده ډالر په پوځي او ملکي ساحو کې مصرف کړل، خو دا چې دغو سیکولرو احزابو، ټولنو او عناصرو لاتر اوسه په افغاني ټولنه کې خپلې ریښې ندي غځولې، او نه هم افغاني ټولنې هغو ته خپله غېږه خلاصه کړې ده، ځکه چې دغه ټول تشکیلات او بنسټونه د یرغلګرو په لاس او د هغوئ تر څارنې، پالنې او حمایت لاندې رامنځته شوي دي، نو امریکا او ملګري یې لدې ویره لري چې دغه احزاب به (شنډ) شي، او د یرغلګرو تر وتلو وروسته به له منځه ولاړ شي او هغه په سلګونو ملیارده ډالر یې چې د دوئ د ایجادولو او پاللو په لاره کې مصرف کړي دي خوشې هدر لاړ شي نو ځکه خو امریکا د (ستراتیژیک تړون) په نوې بڼه کې د خپل اشغال او پوځي وجود پر دوام اصرار کوي، تر څو د غرب په لاس د رامنځته شویو سیاسي، تعلیمي، اجتماعي او فکري بنسټونو او تشکیلاتو د قوي کېدلو او هغو ته د ودې کولو لپاره مناسب ماحول تضمین کړي، او هم خپلې ټولې هغه لاسته راوړنې له زوال څخه خوندي وساتي چې د خپلو اوږدمهالو مصالحو د تأمین لپاره یې دلته حاصلې کړې دي.
امریکا پدې پوهېږي چې په اسلامي نړۍ کې افغانان یوازینی هغه ولس دی چې د غرب (رنګ) یې ندی اخیستی، او لا تر اوسه پر خپل دین، اخلاقو او خپلو اسلامي دودونو ټینګ پاتې دي، چې دغه خصوصیت په دوئ کې د هر یرغلګر په مقابل کې د مقاومت وړتیا پیدا کوي. او همدا وجه ده چې امریکا د مذاکراتو لپاره افغانانو ته د خپل رامنځته کړي اساسي قانون او د ښځو د غربي ډوله حقوقو او وضعیت پر منل کېدلو ټینګار کوي، او غواړي د هغو لاسته راوړنو د نه له منځه تللو تضمین دې وشي چې د اشغال په تېرو یوولسو کلونو کې رامنځته شوي دي. او دا ځکه

چې اوسنی اساسي قانون چې کفر او اسلام دواړه ورکې خلط شوي دي د غرب د ټولو لنډمهالو او اوږدمهالو اهدافو د تحقق ضمانت ورکوي.
تر دې هر څه ورهاخوا امریکایانو د لومړي ځل لپاره په افغانانو کې (مسیحي اقلیت) هم ایجاد کړ، او یوه برخه پخواني کمونستان او ځیني نور اقلیتي ډلې یې مسیحیت ته ورواړولې، هغوئ ته یې د خپل نوي دین (مسیحیت) د اظهار جرأت ورکړ، په میلیونونو ډالره مصاریف یې پرې وکړل، د هغوئ د حمایت په مقصد یې د استراتیژیک تړون، په متن کې افغانستان یو (کثرت ګرا) د (ډېرو دینونو لرونکی) هېواد معرفي کړ. د هغوئ لپاره یې تبلیغاتي وسایل مهیا کړل، راډیوګانې یې ورته جوړې کړې، په خپلو پوځي اډو کې ورته ښکاره او په ښارونو کې پټې کلیساګانې جوړې کړې، او د نړۍ د کلیساګانو اتحادې او ټولنې یې د هغوئ د مرستو لپاره راوبللې، چې په بېلابېلو نومونو د غربي پوځونو تر حمایې لاندې فعالیت کوي.
پدې خاطر چې د (مسیحیت) لپاره نور هم په افغانستان کې په ډاډه زړه فعالیت وشي، امریکا د(ستراتیژیک تړون) او اوږدمهالو پوځي اډو پر شتون اصرار کوي، او د کابل بې واکه اداره د هغه پر منلو مجبوروي.

**څلورم هدف ـ د داسې یوه اسلام دښمنه پوځ رامنځته کول چې د غرب ګټې وساتي:**

په اسلامي نړۍ کې د ریښتني اسلام د له منځه وړلو، له ژوند او نظام څخه د شریعت د لیرې کولو، او د (بی دینه) نظامونو د رامنځته کولو په لاره کې د غرب تر ټولو کامیابه او خطرناکه پروژه د (سیکولر) او (دین دښمنو) پوځونو ایجادول، روزل، واک ته رسول او بیا هغوئ په نړیوالو پوځي تړونونو کې ورګډول دي.
په اسلامي نړۍ کې (دین دښمنو) پوځونو او په هغو کې بې رحمه او بې عاطفې پردیپالو سیکولرو جنرالانو او منسوبینو مسلمان ولسونه د

شریعت له حاکمیته محروم کړي، او د غرب غلامۍ ته یې مجبوره کړي دي.
دا چې افغانستان پدې ورستۍ لسیزه کې د دغه ډول یو غلام او پردي پال پوځ له وجوده پاک شوي وو او ځای یې په لکونو هغو مؤمنو مجاهدینو ډک شوی وو چې د اسلام او آزادۍ په لاره کې هر ډول قربانۍ ته حاضر دي، نو دغه وضعیت د غرب او امریکا لپاره د زغملو نه وو. نو ځکه خو یې له خپل یرغل سره سم دلته د یو اجیر، غلام، بې سواده او داسې پوځ پر جوړولو چې د مجاهدینو په خلاف وجنګېږي کار پیل کړ. او د همدغه پوځ جوړولو ته یې د خپلو کارونو په اولویاتوکې ځای ورکړ، او سلګونه ملیارده ډالر یې ورباندې له خپلې پوځي بودیجې څخه مصرف کړل.
امریکا دغه اجیر او بې هویته پوځ ته د (ملی اردو) نوم انتخاب کړی تر څو د ولس ځوانان ورکې د څو ډالرو په بدل کې د اسلام او مجاهدینو په مقابل کې ودروي.
خو پوښتنه دا ده چې هغه اردو به څنګه (ملي اردو) وي چې :
د یرغلګرو لخوا تأسیس شوې وي،
دیرغلګرو لخوا ورته افسران او منسوبین غوره کېږي،
د یرغلګرو لخوا روزل کېږي،
د یرغلګرو لخوا ورته وسله ورکول کېږي،
د یرغلګرو لخوا ورته اهداف تعینېږي،
د یرغلګرو تر پوځي او هوایي حمایې لاندې د خپل ولس او هېوادالو پر ضد جنګېږي،
د یرغلګرو لخوا ورته تنخوا ورکول کېږي،
له یرغلګرو سره یوځای په پوځي اډو کې دهغوئ تر قوماندې لاندې اوسېږي،
او دیرغلګرو لخوا تل تر دې تعقیب لاندې وي چې دخپل ولس له مجاهدینو سره خو به خواخوږي او ارتباط نه لري؟

یوه اردو چې تر دې حده پردۍ او مزدوره وي، څنګه يې (ملي اردو) بللی شو؟ بلکې دا خو د صليبي ايتلاف افغاني برخه ده چې دغربيانو د اهدافو دتحقق پخاطر دخپل دين اوولس په خلاف جنګېږي.

دا چې دغه پوځ لاتر اوسه هغومره ندی قوي شوي چې ديرغلګرو له مرستې پرته دې هم د مؤمنو مجاهدينو او خپل ولس په خلاف وجنګېږي، نوځکه خو امريکا غواړي پر افغانانو (ستراتيژيک تړون) تحميل کړي، او دلته دهمدغې (پردۍ) اردو دتقويې لپاره دوامداره کار وکړي.

**پنځم هدف ـ د سيمې د مسلمانو هېوادونو دائمي تهديد او د هغوئ ترمنځ د سياسي او پوځي نږدېوالي مخنيوی:**

امريکا پدې هم پوهېږي چې د سيمې دهېوادونو اوسېدونکي ټول مسلمان ولسونه دي او تر منځ يې ددين، فرهنګ، ژبې، اقتصادي متبادلومصالحواو لهد دوئ ټولو تر منځ د (غرب دښمنۍ) مشترک د وحدت عوامل شته چې دوئ پخپلو کې سره نږدې کوې. او همدغه مسلمان ولسونه کولای شي چې داسې حکومتونه او قوانين رامنځته کړي چې ددغو اسلامي هېوادونو ترمنځ د سياسي او پوځي يووالي سبب شي، چې دمناسبو شرائطو د رامنځته کېدلو په صورت کې ورځخه يواسلامي پوځي، سياسي او اقتصادي بلاک جوړ شي.

امريکا پدې سيمه کې ددغه ډول يو وضعيت له رامنځته کېدلو سخته وېره لري، او دغه وېره يې هغه وخت نوره هم زياته شوه چې په عربي نړۍ کې ولسونو خپل استبدادي رژيمونه او دغرب ملګري ګوډاګي مشران رانسکور کړل. له همدې امله امريکا افغانانو ته له خپل مسلمانانو ګاونډيانو څخه (بَبَو) جوړ کړی، او له غربه راغلي سړي خواره صليبي پوځيان ورته د نجات د پرېښتو په حيث معرفي کوي، پداسې حال کې چې غربيانو زمونږ هېواد اشغال کړی، ولس مو وژني، ددين سپکاوی مو کوي، او اداره مو له خپله واکه محروموي.

خو ددې په مقابل کې افغانانو ته دګاونډیو له لوري هېڅ کوم واقعي خطر متوجه ندی، بلکې همدغه اشغالګر غربیان او دهغوئ خرڅ شوي غلامان دي چې زموږ مسلمان ګاونډي ولسونه او پر هغوئ حاکم نظامونه راته ددې لپاره د دښمن په حیث معرفي کوي چې دسیمې ولسونه او هېوادونه یو د بل پرضد ودرووي.
له همدې امله خو امریکا اجازه نه ورکوي چې د سیمې هېوادونه په خپلو کې سره قوي اقتصادي پروژې عملي کړي، چې ښکاره نمونه یې د امریکا له لوري د ایران او پاکستان ترمنځ دګازو د نل لیکي د عملي کېدلو مخالفت دی.
د دې ترڅنګ امریکا په دغو هېوادونو کې غرب پلوي اقلیتونه او د هغوئ کینه ګر مشران د هېوادونو تجزیه کولو او د مسلمانانو ترمنځ د یوالي له منځه وړلو ته هم هڅوي، له هغوئ سره مادي او معنوي مرستې کوي، او غوښتنې یې په نړیواله سطحه مطرح کوي.
نو د دې لپاره چې امریکا د دغو اسلامي هېوادونو تر منځ د سیاسي، پوځي او اقتصادي نړدیوالي مخه نیولي وي غواړی په افغانستان کې خپل پوځي حضور او دائمي یا اوږدمهاله پوځي اډوته د(ستراتیژیک تړون) تر نامه لاندې مشروعیت ورکړي، تر څو لدې لارې وکولی شي د هر وخت لپاره دغه هېوادونه تر مستقیم تهدید لاندې وساتي.
دا هغه څو مهم هدفونه دې چې امریکا یې د تحقق لپاره په افغانستان کې پر خپل پوځي حضور اصرار کوي، او د (ستراتیژیک تړون) په وسیله ورته د مشروعیت ورکولو هڅه کوي. خو حقیقت دا دی چې افغانان په هېڅ ډول او هېڅ صورت کې پر خپله خاوره پردي پوځونه نه مني، او د وروستي پوځي تر وتلو به یې په خلاف جنګېږي، او پر همدې خبره د دوئ تاریخ هم ګواهي ورکوي.

## صلیبي اروپا له منارو څخه په وېره کې ده

اروپا پرون هم صلیبي وه، نن هم صلیبي ده، او لاتر ډېره وخته به صلیبي وي. دا هغه حقیقت چې اروپا ډېره موده د (آزادۍ)،(ډیموکراسۍ)،(دیني زغم)،(بشري حقوقو) او (انسانیت) تر درواغجنو شعارونو لاندې پټ ساتلی وو، خو آخر رابرسېره شو.

داروپا (صلیبیت) په تېره یوه نیمه پېړۍ کې تر هغه وخته له مسلمانانو پټ وو چې ترڅو په اسلامي نړۍ کې د غرب د عسکري او فکري استعمار په مقابل کې مسلمانانو پاڅونونه نه وو کړي، او اسلامي هېوادونه مستقیما د غربیانو په لاس او یا هم د هغوئ له لوري د مسلطو شوو حکامو په لاس اداره کېدل، خو کله چې د اروپایانو په خلاف د اسلامي نړۍ په هېوادونو کې د آزادۍ غوښتنې او جهادونو حرکتونه رامنځته شول، اروپا هم خپله رویه بدله کړه او خپله اصلي صلیبي څېره یې د مسلمانانو په مقال کې بیا ښکاره کړه، او د (آزادۍ)، (زغم)، (مساوات)، (ډیموکراسۍ) او (بشري حقوقو) خپل ټول معاصر غولوونکي شعارونه یې هېر کړل، او بیا یې د اسلام په خلاف د (صلیب) تر بیرغ لاندې هراړخیزه جګړې پیل کړې.

اروپا په تاریخي لحاظ تل د اسلامي نړۍ په خلاف صلیبي موقف لرلی. د رسول الله ﷺ په زمانه کې د(مؤته)، (تبوك) او بیا ور پسې د ابوبکر صدیق رضي الله عنه په زمانه کې د(یرموك) له تاریخي جګړو رانیولې او بیا تر ننه یې د اسلام په خلاف د جګړې لپاره لښکرې را روانې کړې دي. د اسلام او غرب په تاریخ کې څو سوه کاله مسلسلې صلیبي جګړې د همدغې سلسلې سره نښتې کړۍ وې چې وروستۍ جګړه یې په (۲۰۰۱م) کال کې د امریکا جمهور رئیس (جورج ډبلیو بوش) هم د صلیبي جګړې (crusade war) په نامه اعلان کړه چې په افغانستان کې یې تر سلو زرو زیات انسانان ووژل.

د صلیبي جګړو ترخنګ اروپا په پرله پسې ډول د اسلامي فکر او اسلامي مفاهیمو په خلاف خپله بله جګړه د(استشراق) او (مسیحي تبلیغ) په شکل کې هم روانه کړې ده چې په لکونو ختیځپوهان (مستشرقین) او (مسیحي کلیسایي مبلغین) یې ورکښې په اسلامي دولتونو، اروپا او امریکا کې په کار ګومارلي دي، او په مسلسل ډول په فکري لحاظ د مسلمانانو د منحرفولو او د اسلامي مفاهیمو د تحریفولو چارې پر مخ بیایي.

صلیبي غرب له مسلمانانو څخه په ویره کې نه ده، بلکه له اسلام، د شریعت له مصادرو او له اسلامي شعایرو څخه په وېره کې ده، ځکه چې مسلمانانو اوړي را اوړي، او دریځونه یې په بېلابېلو وختونو کې تبدیلېږي، خو اسلام به په خپل ځای ثابت او تلپاتې وي، او د اسلام دغه ثبات هر ځل یو داسې نوی نسل رامنځته کوي چې په پوره مېړانه له اسلام څخه دفاع کوي، او د اسلامي مفاهیمو د تحریف مخه نیسي.

غرب تل هڅه کوي چې اسلامي مفاهیم تحریف او اسلامي شعائر توهین کړي، ترڅو د هغو په اړه خلك شکمن کړي، او د هغو مؤثریت د مسلمانانو په زړونو کې کم کړي، چې په دې لړ کې یې په نیږدې ماضي کې لاندې اقدامات ترسره کړي دي:

د اروپا (استشراقي) مراکزو په تېرو اتو پېړیو کې نه ستړې کېدونکې هڅې کړي چې قرآن کریم یو مشکوك کتاب وښیي، او د دې پرځای چې هغه د الله ﷻ له لوري نازل شوی کتاب وګڼي تل یې کوښښ کړی چې هغه د محمد ﷺ له لوري یو تألیف شوی کتاب معرفي کړي، چې په دې ترتیب قرآن کریم دالله تعالی له لوري ( وحې) نه، بلکې د بشر په لاس جوړ شوی کتاب معرفي کړي.

صلیبي غرب د قرآن کریم په خلاف یوازې په منفي تبلیغاتو بسنه نه ده کړې، بلکې د(حقیقي قرآن) په نامه یې له کفر، فسق، ګمراهیو او شر څخه ډك کتاب هم ولیکه،او په ټوله دنیا کې یې د انټرنیټ له لارې خپور کړ.

صليبي غرب د اسلام د ستر پیغمبرﷺ د شخصیت او رسالت په خلاف هم پراخ تألیفات او تبلیغات وکړل، چې وروستۍ کړۍ یې د ډنمارك دمطبوعاتو او بیا وروسته د نورو اروپایي هېوادونو له لوري د رسول الله ﷺ په خلاف د کارټونونو د جوړولو عمل وو چې ټولې اروپایي ټولنې هغه خپله مشترك عمل وباله، او په شریکه یې له هغه څخه د بیان د آزادۍ تر عنوان لاندې دفاع وکړه. نه یې له اسلامي نړۍ بښنه وغوښته، او نه یې له دغه ګرغېړن کار څخه لاس واخیست.

صليبي اروپا له اسلام سره د خپلې دښمنۍ په لړ کې د اسلامي حجاب د قضیې په اړه هم سخت دریځ غوره کړ، او د خپلو ټولو ډیموکراټیکو دعوو له لرلو سره سره یې په ټوله اروپا کې یوازې د مسلمانې مېرمنې پړونی (حجاب) ونه زغملی شو، بلکې له هغه څخه یې دومره وېره وښوده چې د فرانسې او جرمني په څېر دولتونو په دولتي سطحه د پړوني په خلاف موقف ونیوه، او هغه یې د اروپا د اسلامي کولو استازی وباله.

همدارنګه امریکایانو هم نه یوازې د اسلام په خلاف خپلې جګړې ته د (صليبي جګړې) نوم ورکړ، بلکې د نیویارك په ښار کې یې د (کعبې شریفې) په ډول او رنګ یوه لویه شرابخانه هم جوړه کړه، او د (مکه ) نوم یې ورباندې کېښود، تر څو په دې ډول د مسلمانانو د قبلې او د زمکې پرمخ د تر ټولو سپیڅلي ځای سپکاوی هم وکړي.

د صليبي اروپا د اسلام دښمنه اقداماتو په لړ کې تر ټولو وروستی اقدام په اروپا کې د مساجدو پر (منارو) د بندیز د لګولو غوښتنه ده چې په ۲۰۰۹ / ۱۱ / ۲۹ تاریخ د (سویس) د هېواد د مسیحي ښي اړخي ګوند په غوښتنه د دغه هېواد حکومت په ټول (سویس) کې یوه ټولپوښتنه (ریفرنډم) اجرا کړه، چې په نتیجه کې یې د دغه هېواد اکثریت خلکو په مساجدو کې د (منارونو) پر جوړولو د بندیز ملاتړ وکړ. د (سویس) خلکو (منارې) د (سویس) د اسلامي کولو هڅه او د مسلمانانو د قدرت نښې وبللې.

په (سويس) کې د ټولپوښتنې په تعقیب يوه ورځ وروسته د(هالنډ) د هېواد د مسیحي ښي لاسي د آزادۍ د ګوند له لوري په دغه هېواد کې هم پر (منارو) د بنديز غوښتنه وشوه.

دغه اقدامات ټول د دې څرګندونه کوي چې د غرب په رګونو کې همدا اوس هم د (صليبيت) وينه چلېږي، او د دې زغم نه لري چې په خپلو هېوادونو کې د اسلام نښې ووينې. غرب هلته له میشتو په لکونو مسخه شوو مسلمانانو وېره نه لري، ځکه چې هغوئ يې په خپل رنګ کې رنګ کړي دي، خو د مساجدو له څو (منارونو) چې د اسلام د عظمت او لوړوالي نښې دي سخته وېره لري.

صليبي غرب که له يوې خوا له اسلامي شعايرو او نښو وېره لري او مخنيوی يې کوي نو له بلې خوا بيا هڅه کوي چې د (صليب) او (صليبيت) نښې په ټوله دنيا کې خپرې کړي. د (صليب) نښې ته د معاصرې اروپا لوی درناوی له دې هم معلومېږي چې د ډېرو اروپايي هېوادونو پر ملي بيرغ د (صليب) نښه په بېلابېلو شکلونو لګېدلې ده. په عراق او افغانستان کې غربي فوځيان په خپلو مراکزو او کمپونو د (صليب) نښې پورته کړې،او د عراق د(فلوجه) دښار د تسخيرولو لپاره چې کوم امريکايي ټانګونه ورروان ول د ډېرو ټانګونو په ميلونو پورې يې غټ غټ صليبونه ځوړند وو.

د دې لپاره چې په اسلامي نړۍ کې هم صليبيانو د (صليب) نښه په پراخه پيمانه خپره کړې وي صليبي جهتونه او صليبي کمپنۍ د اسلامي نړۍ په بېلابېلو هېوادونو کې د ټوکرانو د اوبدلو فابريکو ته درانه رشوتونه ورکوي چې د صليب نښه (✝) مختلفو شکلونو کې په ټوکرانو، بنيانونو او جاکټونو کې په بېلابېل ډول ډيزاين کړي ترڅو هر مسلمان د (صليب) له نښو ډکې جامې واغوندي. دغه کار مخکې په ځينې عربي هېوادونو کې ترسره کېده، او اوس په پاکستان کې چې افغانستان ته هم ټوکران جوړوي ترسره کېږي.

د پام وړ بله خبره دا ده چې د (صليب) نښې اکثره په هغو ټوکرانو او رنګونو کې ډيزاينوي چې ځوانان يې ډېر خوښوي،او دا کار د دې لپاره کېږي چې د ځوانانو او تنکيو زلميانو په منځ کې د (صليب) نښې په پراخه پيمانه خپرې شي او له ليدلو سره يې د هغوئ په زړونو کې هيڅ حساسيت پاتې نه شي.

په اروپا کې د مساجدو له (منارو) سره په لويه پيمانه د اروپايانو مخالفت او د هغو نه زغمل په اسلامي نړۍ کې د (مسلمان ډوله) سيکولرو مرتدانو پر مخ يوه بله څپېړه ده. هغه سيکولر چې په ډېرې سپين سترګۍ مسلمانان د اروپايانو پيروۍ او له هغوئ سره د ژوند لپاره د يو ډول معيارونو خپلولو ته وربولې.او دا په داسې حال کې چې اروپايان په ټوله اروپا کې د اسلامي شعايرو د ليدلو زغم نه لري خو د هغوئ (سيکولر) ملګري په اسلامي نړۍ کې مسلمانان د اروپايانو د ژوندښې او فلسفې خپلولو ته تشويقوي.

اوس خبره دا ده چې ريښتني مسلمانان بايد د صليبي غرب او په اسلامي نړۍ کې د غرب پلوو سيکولرو مرتدو حکامو په مقابل کې څه ډول دريځ غوره کړي؟آيا نور هم د هغوئ په مقابل کې چوپه خوله پاتې شي، او آرام کښيني؟ او که د صليبي غرب له حاکميت، سياسي، فکري، اقتصادي او پوځي تأثيراتو څخه د خلاصون لپاره په ټوله اسلامي نړۍ کې د صليبيانو او د هغوئ د ملګرو په خلاف د يوه انقلابي جهادي پاڅون لاره غوره کړي ترڅو اسلامي هېوادونه د هغوئ له ناروا او ظالمانه تسلط څخه خلاص کړي؟

له ۲۰۰۱ م کال څخه را پديخوا په نړيواله سطحه د پېښو بهير دا ښيي چې د اسلامي نړۍ او صليبي غرب لارې په ټوليز ډول يو له بله په جلا کېدو دي. غربيان او په اسلامي نړۍ کې د هغوئ مرتد ملګري به يوه لاره نيسي، او مسلمان ولسونه به د انقلابي جهادي قيادتونو تر مشرۍ لاندې يوه بله لاره نيسي.

مسلمان ولسونه نور پدې پوهېدلي دي چې غرب پلوي (سيکولر) حکّام نور نه د دوئ د قيادت حق لري او نه يې هم وړتيا. نور بايد هغوئ په زور د قيادت او حاکميت له منصبه لرې کړای شي، او پرځای يې داسې ځوک د مسلمانو ولسونو د اداره کولو چارې سمبال کړي چې هم په اسلام پوهېږي، هم اسلام مني، هم ورڅخه دفاع کوي، هم يې د دښمنانو سياسي، فکري، عقيدوي او عسکري هويت پيژني، او هم په نړيواله سطحه د دې وړتيا لري چې د نړۍ له نورو ولسونو سره د بالمثل معاملې لاره خپله کړي.

مسلمانانو ته په دې لړ کې په کار ده چې په اسلامي نړۍ کې د (صليب) او (صليبيت) په خلاف هماغه ډول متقابل دريځ غوره کړي کوم چې صليبي غرب د اسلام په مقابل کې غوره کړی دی.

او که داسې نه شي نو بيا به صليبي غرب په هر ځای کې د اسلام شعائر تر پښنو لاندې کوي، خو مونږ به يې په مقابل کې هغوئ ته خپلې غېږې خلاصې کړې وي،او هغوئ به راباندې خپل افکار، نظريات او نظامونه تحميلوي.

## غولوونکي اصطلاحات

کفار د تل لپاره کوښښ کوي چې د اسلام په خلاف په جګړه کې د تورې او ټوپك تر څنګ په خپل سياسي او فکري فرهنګ کې يو څه داسې غولوونکي اصطلاحات هم رائج کړي چې د هغو تر شا خپل د اسلام دښمنۍ اهداف پټ کړي او هغو ته په رواج ورکولو د کفارو په خلاف د مسلمانانو د کرکې او نفرت څپاند عواطف ساړه کړې، او په دغو درواغجنو او غولوونکو اصطلاحاتو مسلمانان د جهاد او مبارزې له لارې منحرف او فکري قناعتونه يې وربدل کړي.
پدې لړ کې د (نړيوالې ټولنې)(International Community ) د (نړيوالو قواوو) (International Forces) او (نړيوال قانون)، (International Law) اصطلاح ګانې هم دي.
د نړيوال ټکی په لغوي لحاظ دا مفهوم افاده کوي چې هر څه او يا هر تصميم او تړون چې نړيوال ګڼلی کېږي په هغو کې بايد د نړۍ ټول ملتونه شريك وي، رأيه دې يې په هغو کې دخيله وي، حقوق دې يې ورکې په اصولي شکل مساوي وي، او د نړۍ ټول ملتونه دې په هغه کې برابر حيثيت ولري. هېڅ اقدام دې هم داسې نه کېږي چې تر څو د هغه په هلکه د ټولو هېوادونو او ملتونو نظر نه وي پوښتل شوی. د مثال په ډول د کوم تصميم په نيولو او يا د کوم اقدام په کولو کې چې امريکا، روسيه، چين، برتانيا او فرانسې ته کوم حق ورکول کېږی هماغه حق دې مالديف، مالي، روندا، يمن، لبنان، موريتانيا او افغانستان ته هم حاصل وي.
همدارنګه د قوانينو، لوائحو، او دستاتيرو په وضع کې چې څنګه د غرب لپاره د صليبيت، صهيونيزيم، ډيموکراسۍ او لبراليزم نظريات مراعات

کېږي، همداسې باید د اسلامي نړۍ لپاره د اسلام دین او شریعت هم د هغو په وضع او تصویب کې مراعات شي.

خو په عمل کې دغه د (نړیوال) اصطلاح یوه درواغجنه او غولوونکې اصطلاح ده چې کفري زورو هېوادونه یې د خپلو مقاصدو د تحقق او خپلو اقداماتو ته د جواز ورکولو لپاره کاروي.

افغانستان ته راغلي بهرني یرغلګر او استعماري مؤسسې هم ځان ته (نړیواله ټولنه) وایي، او دلته یې خپل وجود چې د بمونو او مسلحو پوځونو په زور تثبیت کړی د (نړیوالې ټولنې) په وجود تعبیروي، او هم غربي صلیبي قواوو ته چې په زور، تهدید، تطمیع او کرایه یې د ځو نورو کمزورو هېوادونو خلك هم له ځانه سره ملګري کړي دی د (نړیوالو قواوو) نوم ورکوي، پداسې حال کې چې د امریکا جمهور رئېس (جورج ډبلیو بوش) د افغانستان د نیولو په پیل کې ټولې نړۍ ته د تهدید دا اعلان کړ ی وو چې یا به د ده ملګرتیا کوي، او یا به یې له دښمنو سره یو ځای کېږي. دریمې نظریې او موقف ته ورکې هېڅ ځای نه لیدل کېده.

د (نړیوالو قواو) معنی خو دا ده چې په هغو کې به د نړۍ د ټولو هېوادونو قواوې د متساوي صلاحیت پر بنسټ د داسې یوې ادارې تر قیادت لاندې راټولې شوې وي چې د یو خاص هېواد تر تاثیر او کنټرول لاندې به نه وي، او دغه قواوي به د نړۍ د هېوادونو تر منځ سوله ییزې چارې پرمخ بیایي، نه دا چې کمزوري هېوادونه دې د عسکری قوت په واسطه اشغال کړي، پر هغوئ دې جنګ مسلط کړي، په لکونو خلك دې یې ور ووژني، ولسونه دې له خپل واك او اختیار څخه محروم کړي، د هیواد د سیاسي، نظامي، امنیتي، اقتصادي، فرهنګي او تعلیمي چارو واك او اختیار دې یې په خپل انحصار کې ونیسي، هېڅ قانون دې نه مني، او هېڅ جهت دې که هغه ملي وي او که بین المللي هغوئ نشي محاکمه کولی، او له دې هر څه سره دې یې بیا هم نوم (د امنیت ساتنې نړیوالې قواوې) وي.

همدارنګه (نړیوال قانون) هم د هغو لوائحو، ضوابطو او طرزالعملونو مجموعه ده چې د نړۍ د زورورو هېوادونو د فرمایشاتو پر اساس د هغوئ د بین المللي مصالحو د تحقق لپاره جوړه شوې ده. د دغو قوانینو په وضع کې نه مسلمانان پوښتل شوي، او نه هم د اسلام دین ته ورکښې پاملرنه شوې ده. بلکې ټول احکام او لوائح یې د لبرالیزم، غربي پانګه وال نظام او یا له دین څخه د منکر کمونیزم له فلسفې څخه راخیستل شوي دي، او د دنیا د نورو کمزورو هېوادونو تر څنګ په نړۍ کې تقریبا یو نیم ملیارد مسلمانان د هغو پر منلو مجور کړل شوي دي، پرته له دې چې د دوئ د دین او عقیدې څه رعایت دې ورکې شوی وي.

دا چې مخکې غربي هېوادونو او روسیې اسلامي هېوادونه په یوازې یوازې ځان اشغال کړی ول او په لسګونو کلونه یې هغه تر خپل پوځي استعمار لاندې ساتلي ول، خو بیا هم خلك د اشغالګرو په خلاف په هر ځای کې راپورته شول او هغوئ یې له اسلامي هېوادونو څخه تېښتې ته اړ کړل. دا ځل د دې پر ځای چې استعماري هېوادونه بیا په یوازې یوازې ډول بېلابېل مسلمان هېوادونه اشغال کړي او پر ملتونو یې خپله اراده په زوره ورتحمیل کړي او بیا د خلکو د کرکې وړ وګرځي نو دا ځل یې په اجتماعی ډول د کمزورو هېوادونو او مسلمانانو په خلاف اقدامات پیل کړی دي، او پر هغو ادارو مؤسساتو، پوځونو او قوانینو چې دوئ یې د خپلو اهدافو د ترلاسه کولو لپاره ایجاد وي د (نړیوالو ادارو، نړیوالو مؤسساتو، نړیوالو قواوو، او نړیوالو قوانینو) نومونه ږدي. پداسې حال کې چې نړیوال له دغو بې رحمه او ظالمانه اقداماتو څخه بېزاره دي، او د خپلې تباهۍ اصلي عوامل یې بولي.

دې هر څه ته د (نړیوال) نوم د دې لپاره ورکول کېږي تر څو خلك تېرباسي، او دا قناعت ورکړي چې دغه ډول ادارې او اقدامات یوازې په زورواکو هېوادونو پورې اړه نه لري، بلکې دا د ټولې نړۍ د ولسونو، هېوادونو او دینونو غوښتنه ده، او خلك یې باید په سره سینه ومني، او په مقابل کې

یې هېڅ حساسیت ونه ښیي. خو حقیقت دا دی چې (نړیواله ټولنه) د کفري هېوادونو د ټولنې او (نړیوالې قواوې) د کفري اشغالګرو قواو او (نړیوال قوانین) د کفري قوانینو نومونه دي که څه هم چې دوئ یې په درواغو ټولې نړۍ ته منسوبوي.

## امریکا له افغانستانه وځي که د خپلې جګړې شکل بدلوي؟

پدې کې نور شك ندی پاتې چې امریکا په افغانستان کې په پوځي ډګر کې ماتې خوړلې او له دې خاورې به خپل پوځونه باسي. خو یو بل حقیقت هم د هېرولو ندی، او هغه دا چې په تېره یوه پېړۍ کې چې د غربیانو لخوا ځومره اسلامي هېوادونه اشغال شوي او بیا په ظاهره بېرته ترې آزادشوي دي د هغو په یوه کې هم بیا اسلامي نظام ندی قائم شوی. او دا ځکه چې غربیانو هلته داسې خلك پر ځای پرې ایښي وي چې هغوئ تر اصلي غربیانو ډېر (غربیان) او د اسلامي شریعت د پلي کېدلو سرسخته مخالفین وي، او په هېڅ ډول نه پرېږدي چې اسلام دې بیا په دغو هېوادونو کې حاکم شي.
د دغو هېوادونو اوسنی سیاسي، اجتماعي او نظامي وضعیت دا ښیي چې غربیانو دغه هېوادونه پرې ایښي نه دي، بلکې یوازې یې هلته د خپل حضور شکل بدل کړی او لنډمهالې پوځي جګړې یې په دائمي سیاسي، فکري او بالواسطه نظامي تسخیر اړولې دي.
غرب په افغانستان کې هم د همدې تجربې تکرارول غواړي، او د همدې کار لپاره یې پراخه تیاری نیولی دی. خو د افغاني مجاهدینو مشکل دا وي چې له دښمن سره یې په مقابله کې توجه یوازې د پوځي جګړې لوري ته وي، او له پوځي جګړې د وروسته مرحلې او د دښمن د ناپوځي جګړې د مقابلې لپاره یې تیاری او تدابیر نه وي. نو ځکه خو تقریبا هر ځل تر آزادۍ وروسته داسې یو دولت او نظام منځته راشي چې د جهاد اهداف او د ملت ارمانونه ورکې نه وي تمثیل شوي.
داسې ښکاري چې اوس امریکا هم د لاندې عواملو له امله له افغانستانه خپل پوځیان وباسي، خو خپله جګړه دلته په پوځي او ناپوځي دواړو

شکلونو کې دوامداره پرېښودل غواړي چې د امریکا ملګري به یې پرمخ بیایي، او قوماندې او تمویل به غرب یې پر غاړه اخلي. او دا کار به ځکه کوي چې امریکا پدې سیمه کې د اوږدې مودې اهداف لري، او هغه اهداف یې د مستقیم اشغال په شکل کې حاصل نه شول.

**امریکا ولې خپل پوځونه باسي؟**

امریکا د لاندې دلائلو له امله خپل پوځونه د جګړې له میدانه وباسي:

١- امریکایي پوځ دلته خپله جګړه بایللې ده، او د جګړې په ډګر کې یې نور پاتې کېدل د دې سبب ګرځي چې امریکایي پوځ او امریکایي جنګي ټکنالوژي په نړۍ کې خپل ګټلی هیبت او برلاسی له لاسه ورکړي، چې پدې کار سره به امریکا په نړۍ کې د خپل پوځي تفوق له امیتاز څخه د تل لپاره محرومېږي.

٢- امریکا غوښتل د جنګ له لارې افغانستان او عراق تسخیر کړي، او بیا دمنځنۍ آسیا او منځني ختیځ د نفتو پر دولت داسې صنعتي او تجارتي کنټرول حاصل کړي چې د ټولې نړۍ خلك د تېلو په اخیستلو کې امریکا ته محتاج او د هغې د شرطونو منونکي وي، او د تېلو پر منابعو د تسلط له لارې روسیه، چین، اروپا او نوره نړۍ تر خپل فشار لاندې ونیسي.

امریکا د افغانستان او عراق او بیا وروسته د ایران نیول ځکه شوني ګڼلي ول چې د امریکا په مقابل کې هېڅوك له دغو دولتونو سره نه درېدل، او نه یې د دوئ لپاره د یوازیني زبرځواك (امریکا) دښمني پرغاړه اخیستله.

خو اوس چې په افغانستان او عراق دواړو کې د امریکا دغه ستر پلان د یوې نامتوقع جګړې او د مجاهدینو د نه ستومانه کېدونکي جهاد په نتیجه کې له ماتې سره مخ شو نو امریکا نور پر دې پلان اضافي مصرف نه کوي، او همدا علت ؤ چې عراق یې پرېښود، د افغانستان د حکومت پوځ ته یې درنې وسلې، ټانګونه، هوایي قواوې او هوایې مدافع وسلې او

وسائل ورنه کړل. بلکې د دې نظام د بقا لپاره يې هېڅ مالي تضمين ته هم زړه ښه نه کړ.
دا چې امريکا نور خپلو اقتصادي اهدافو ته د اوس لپاره د جګړې له لارې نه رسېږي نو ځکه خو نور په افغانستان کې نه پوځي او نه هم ملکي ادارې تقويه کوي.
۳ – د امريکا دواړو ګوندونو جمهوريت پلوو او ديموکراتانو دواړو په افغانستان کې د امريکا جګړه روانه وساتله او د امريکايي ولس له ماليات‌و څخه يې ښه ډېر ډالر پر دې جګړه ولګول خو اوس دغه دواړه ګوندونه له دې جګړې څخه داسې څه په لاس کې نه لري چې امريکايي ولس ته يې د ديارلس کلنې جګړې د درنو مصاريفو د لاسته راوړنې په حيث وړاندې کړي.
هغه مقاصد او مبررات چې دې دواړو ګوندونو د دې جګړې لپاره لرل يو يې هم تر سره نه شول، د مثال په ډول :
نه په افغانستان کې غربي ډيموکراسي حاکمه شوه.
نه په دې وطن کې يو مستحکم غرب پلوی حکومت جوړ شو.
نه د افغانستان له لارې له منځنۍ آسيا څخه د هند سمندر ته هغه د تېلو پايپ لاين تېر شو چې ټول غرب ورته په بې صبرۍ انتظار باسي.
نه طالبان له منځه لاړل، نه يې نظريه ختمه شوه، او نه يې پوځي او بشري ځواك کمزوری شو.
القاعده هم ختمه نه شوه، بلکې د رهبر له شهادته وروسته يې په عراق، يمن، مصر، تونس، ليبيا ، الجزائر، صومال، مالي، سوريه، پاکستان او نورو هېوادونو کې نوره هم زوروره شوه، او د مجاهدينو شمېر يې له سلګونو څخه سلګونو زرو ته ورسېد، پراخې سيمې او ښه ډېر پوځي وسائل او مادي امکانيات په لاس ورغلل.

همدارنګه د چین، روسيې او ايران د مهارولو ارمان يې هم ترسره نشو. نو ځکه خو اوس امريکايي رهبران خپل ولس ته د دې جګړې د دوادم لپاره هېڅ دليل نه لري.

۴ – امريکا که په تېرې پېړۍ کې پر خپلو او د خپلو ملګرو پر جګړو درانه مصاريف کول نو په هغه وخت کې يې يوستر هدف درلود، او هغه د شوروي اتحاد د پراختيا غوښتنې مخنيوی وو چې بايد په هر قيمت تر سره شوی وای. خو نن امريکا د داسې چا په مقابل کې پر جګړه درانه مصارف کوي چې اصلاً نه د پراختيا غوښتنې اجنډا لري، او نه هم د دې کار لپاره د شوروي اتحاد په څېر پوځي او مالي توانايي لري. نو ځکه خو امريکا نور نه غواړي خپل پوځ او ولس د داسې چا په خلاف په اوږدې جګړې کې مصروف وساتي چې د اروپا او امريکا لپاره کوم خطر نشي پېښولی.

۵– د افغانستان هغه اداره چې امريکا ورباندې مصرف کوي په فساد کې دومره غرقه ده چې په هېڅ صورت نشي کولی د اوږدې مودې لپاره خپله بقا تضمين کړي. هغه حکومت چې پخپله هره ورځ د ويجاړېدلو او داخلي اختلافاتو پر لور روان وي او خپل ځان نشي ساتلی نو امريکا ته به څه اقتصادي، سياسي او پوځي خدمت ترسره کړي؟

د همدغو او نورو عواملو له امله امريکا غواړي خپل پوځونه له افغانستان څخه وباسي، او نور پر يوې لاحاصله او بايللې جګړې د خپل هغه ولس مال ونه لګوي چې لا له وړاندې له اقتصادی رکود او مالي بحران سره مخ دی. نو ځکه خو امريکايان فکر کوي چې د دې جګړې دوام به امريکا د شوروي اتحاد له سرنوشت سره مخ کړي.

امريکا نور د دې جګړې اقتصادي توان نه لري، که طالبان جګړه وکړي او که يې ونه کړي امريکا به خپل پوځونه له دې خاورې وباسي.

خو ديوې مودې لپاره ښايي امريکا دکابل د ادارې پر اردو يو څه نور مصرف هم وکړي، خو دا چې امريکايان دې نتيجې رسېدلي چې دغه اردو يوه بيسواده، بې تخصصه، بې انګېزې او تر ډېره حده پر قومي ګرايشاتو

ولاړه اردو ده، او د ملیاردونو ډالرو په مصرف هم د مسلکي توب پر لاره روانه نشوه، نو ځکه خو هغوئ اوس پر دې اردو د ډېرو مصاریفو کول د خپل مال ضائع کېدل بولي، او هځه کوي د اردو په نسبت هغو ملیشو او اربکیو ته خپل پام ورواړوي چې د ډېرو لږو پیسو په بدل کې په آني ډول د دوئ د مقاصدو د تحقق لپاره د هر ډول جنایاتو ترسره کولو ته زړه ښه کوي.

دغه ملیشې نه باسواده کولو ته ضرورت لري، نه ټکنالوژي کاروي، نه د پوځي دسپلین په مراعات کولو مکلف دي، او نه هم د اردو په څېر درنو مصاریفو او پوځي تسهیلاتو ته ضرورت لري.

له بل لوري همدغه اربکیان په بېلابېلو ځایونو کې د سیاسي، تنظیمي او قومي جهتونو له لوري د امریکایانو په اختیار کې ورکول کېږي چې هم ورباندې سمدستي د امریکایانو توجه ځانته وراړوي، او هم به له دغو ملېشو څخه د سبا ورځې لپاره د خپل محلي مسلح ځواك په حیث استفاده وکړي، او خپل مصالح به وربانديې حمایه کړي.

امریکایان بنایي د کابل په اداره کې د مطرحو جهتونو په ملاتړ د اربکیو پروژه په راتلونکي کې نوره هم د یوې مودې لپاره په تېزۍ وغځوي، ترڅو دهغوئ د وحشیانه فعالیتونو او له هغوئ څخه د مقابل لوري د انتقام اخیستونکو د عکس العملونو له لارې جنګ په افغاني ټولنه کې ښه خپور کړي، او پدې ډول له خپلو وتلو وروسته افغاني ټولنه له استقرار څخه نوره هم محرومه او په داخلي جګړو کې ښکېل پرېږدي.

## امریکا ولې په افغانستان کې په محلي ډول جګړه دوامداره ساتي؟

امریکا د لاندې دلائلو له مخې په افغانستان کې د طالبانو په مقابل کې د افغانانو په لاس جګړه دوامداره ساتل غواړي:

۱ – د دې لپاره چې په افغانستان کې بيا يو اسلامي حکومت جوړ او شريعت تطبيق نشي:

د طالبانو د حکومت په وخت کې افغانستان د زمکې پرمخ يوازينی دولت وو چې شريعت ورکې تطبيق شوی وو، او په سياسي او تقنيني لحاظ د غرب پر معيارونو روان نه وو.

همدا اوس هم په ټوله دنيا کې يو دولت او نظام داسې نشته چې په سياسي، نظامي، اقتصادي او تقنيني لحاظ دې د غرب پر معيارونو نه چلېږي.

طالبان چې خپل سياست، نظام، اقتصاد، قوانين او د ټولنې د تنظيمولو لپاره هر څه د اسلام مطابق غواړي، او پدې لاره کې له چا سره جوړ جاړی نه کوي، نو طبيعي ده چې غرب به يې په خلاف جګړه روانه ساتي، تر څو ونه کولی شي استقرار پيدا کړي، او داسې يو نظام جوړ کړي چې د نړيوالو پر کفري معيارونو نه بلکې د اسلام پر معيارونو ولاړ وي.

که چېري دغه ډول يو نظام رامنځته کېږي، نو هغه به په اسلامي نړۍ کې د نورو مسلمانانو لپاره چې همدا اوس هم له خپلو سيکولرو حکومتونو په تنګ دي د يوې نمونې او ماډل حيثيت ولري، او دا به هم خلکو ته ورتلقين کړي چې د ريښتني بدلون يوازينۍ لار رښتيا هم يوازې جهاد دی او بس. غرب په هېڅ ډول نه پرېږدي چې دغه ډول يو مثال او ماډل دې په نړۍ کې قائم شي.

۲ – د دې لپاره چې د امريکا لخوا رامنځته شوی وضعيت او د هغې لاسته راوړنې دلته دوام وکړي:

امريکا په تېرو دريو لسيزيو کې او په خاص ډول د افغانستان تر اشغالولو وروسته پر ځينې افغانانو ډېر مصاريف کړي چې په نتيجه کې اوسنی سياسي، نظامي او فکري وضعيت رامنځته شوی دی. امريکا او ملګرو يې دلته په لسګونو سياسي احزاب جوړ کړي او داسي يو اساسي قانون يې جوړ کړی چې د غرب لپاره تر هر څه مهم دی، او د هر ډول مذاکراتو

لپاره د هغه منل او په هغه کې تغییر نه راوستل اساسي شرط ګڼي، ځکه چې په هغه کې د غرب ټولې غوښتنې او ارمانونه نغښتل شوي دي.
امریکا دلته سیاسي او پوځي جوړښتونه جوړ کړي دي او په زرګونو خپل پلویان یې په هغو کې ځای پرځای کړي دي. همدارنګه یې په سلګونو سیاسي او مدني ټولنې، مؤسسې او تشکیلات رامنځته کړي دي. په لسګونو راډیویي او تلویزوني سټیشنونه یې جوړ کړي، او په سلګونو چاپي مطبوعات یې رامنځته کړي دي چې د غرب او د هغه د ملګرو په ګټه د خلکو ذهن سازۍ او د غرب د لنډمهالو او اوږدمهالو پلانو د تطبیق لپاره زمینه سازۍ کوي.
همدارنګه امریکا دلته داسې تعلیمي نصاب او نظام جوړ کړی چې راتلونکی نسل په هغه ډول تربیه کړي چې غرب یې غواړي.
امریکا او نورو غربي هېوادونو دلته د پوځي، مسلکي او عمومي زده کړو لپاره په لسګونو د لوړو زده کړو مؤسسې، پوهنتونونه، اکاډمۍ او نورې ادارې جوړې کړې دي چې دوئ یې فارغان په افغانستان کې خپل ملګري ګڼي.
امریکاپه تېرو دیارلسو کلونو کې د زرګونو مؤسسو له لارې هڅه وکړه د افغاني ټولنې دیني، فکري، اخلاقي او اجتماعي جوړښتونه تبدیل کړي، او افغاني ټولنه د غربي اجتماعي او اخلاقي معیارونو مطابق تنظیم کړي.
امریکا د افغانستان د اقتصادي چارو یوه زیاته برخه د خصوصي سکتور په نامه داسې اشخاصو او کمپنیو ته ورسپارلې چې هغوئ د غربیانو خپل خلك دي، اوغواړي چې افغانستان په داسې یو اقتصادي حالت کې وساتي چې په هرڅه کې غرب ته محتاج او د هغه په بانکي او تجارتي لومو کې راګیر وي.
۳ – د دې لپاره چې افغانستان له غرب سره په امنیتي، استراتیژیکو، سیاسي، تعلیمي او فرهنګي تړونونو پورې تړلی وي:

او په راتلونکې کې يې له هر چا سره هر ډول تعامل د دوئ ترکنټرول لاندې پاتې شي.

۴ـ د دې لپاره چې طالبان له نامنظمو چريکي مجاهدينو څخه په يو منظم ايډيالوژيك عسكري ځواك بدل نشي.

چې بيا به دغرب مصالحو ته په سيمه کې لوی تهديد وي.

**امريكا په افغانستان کې د خپلې جګړې شکل ته تغيير ورکوي**

که له يوې خوا امريكايان په خپله له افغانستانه وځي او جګړه افغاني کوي نو له بلې خوا له افغانستانه د دوئ د پوځونو وتل قطعاً پدې معنی ندي چې امريكا به د افغانانو او مجاهدينو په خلاف خپله جګړه دروي. بلکې امريكا په افغانستان کې د خپلې عسكري جګړې د نامؤثريت له امله له هغې تېرېږي او د افغانستان او افغانانو د تسخيرولو لپاره به له سياسي، استخباراتي، اقتصادي فكري، فرهنګي او تعليمي وسائلو څخه د كار په اخيستلو بلې اوږدمهالې جګړې ته دوام ورکوي ترڅو خپل پوځي شكست له ناپوځي لارو جبيره كړي او خپلو هغو اهدافو ته په لږو مصارفو ور ورسېږي چې په پوځي جګړه کې د سلګونو ملياردو ډالرو په مصرف ور ونه رسېدلی شول.

د دې لپاره چې امريكا په راتلونکې کې افغانستان هم د نورو اسلامي هېوادو په څېر په ځان پسې روان كړي، او پدې سيمه کې خپلو سياسي، عسكري او اقتصادي اهدافو ته د بې مقاومته رسېدلو لپاره زمينه سازي وكړي امريكا د پوځي جنګ پر ځای سياسي فكري، رواني او اقتصادي جنګ ته دوام ورکوي، چې پدې لاره له لاندې وسائلو او اساليبو كار اخلي:

## د ناپوځي جګړې شکل او وسائل

**١- د غرب ملګري په واک کې ساتل**:

امریکا داسې خلك، سیاسي جهتونه، احزاب او ټولنې واك ته رسوي چې امریکا ته به د اوسني حاکم وضعیت د نه بدلولو ضمانت ورکوي، سیکولرزم به د فکر او (عقیدې) او ډیموکراسي به د نظام په حیث مني، او واك ته د رسېدلو یوازینۍ لار به د امریکا په خوښه انتخابات او سیاسي جوړ جاړی ګڼي.

دغه خلك به د (ډیموکرات اسلام) یا(امریکایي اسلام) پلویان وي، د جهاد ، ولاء او براء او د امت د عملي وحدت پر مفاهیمو او نظریاتو به باور نه لري. په سیاسي پلورالیزم، وطنیت او د نړۍ له کفارو سره د یوه مشترك نړیوال نظام په چوکاټ کې ګوزاره کوي. د اسلام د اقتصادي نظام پر ځای به د کاپیټالیزم پر اقتصادي نظام چلېږي، او د (ګلوبلایزیشن) په نامه د امریکا د نړیوال برلاسي په مقابل کې به د اسلام پر فکر او عقیده ولاړ موقف نه لري.

دغه خلك به غرب ته دا ضمانت ورکوي چې اسلامي شریعت به نه تطبیقوي، بلکې یوازې په یو څو ظاهري شکلیاتو به د خلکو د تېر اېستلو هڅې کوي. له امریکا ، ملګرو ملتو، ناټو، نړیوال بانك او په مجموع کې د دوئ په اصطلاح له نړیوالې ټولنې سره به خپلو التزاماتو ته وفادار وي، ترڅو یې هغوئ په رسمیت وپېژني او ملاتړ او مرسته یې وکړي.

امریکا به هڅه وکړی دغو خلکو ته د چارو واګې د دې لپاره وروسپاري چې دلته د امریکا د خوښې مطابق حکمرانې وکړي، له امریکا سره امنیتي تړون امضاء کړي، د مجاهدینو په خلاف جګړې ته ژمن پاتې شي، د امریکا د اشغال د تېرو دیارلسو کلونو سیاسي او فکري لاسته راوړنې لکه ډیموکراسي، سیکولریزم، د ښځو لپاره غربي ډوله آزادي، غربي

بشري حقوق، د شريعت پر ځای د وضعي قوانينو تنفيذ او د غرب لپاره د افغانستان تابعيت وساتي.
دغه خلك بايد ديته هم ذهني او عملي تياری ولري چې که د افغانستان غرب، جنوب او شرق په اوله مرحله کې د مجاهدينو په لاس سقوط وکړي نو دوئ بايد دافغانستان په شمال کې د غرب تر حمايې لاندې بله داسې يوه اداره جوړه کړي چې تر ډېره حده به د نشنلزم او سيکولريزم پر بنسټ ولاړه وي، او په منځنۍ اسيا کې به حکومتونه پدې وېروي چې که د دوئ حمايت ونه کړي نو د افغانستان لخوا به هغوئ ته د اسلامي فعاليت د ورغځېدلو خطر ورپېښ شي.

**٢- له ناپوځي لارو د طالبانو د کمزوري کولو هڅې:**

امريکا له سياسي او استخباراتي لارو نوره هم هڅه کوي چې هغه خلك او کړۍ د منځلارو طالبانو په حيث رامنځته کړي چې يو وخت يې د خپلو شخصي او يا تنظيمي مصالحو د خوندي کولو لپاره د طالبانو په تحريك کې ځان ځای کړی وو خو وروسته چې د طالبانو قيادت په ټينګه د جهاد او د اسلامي شريعت پر سر له چا سره د نه جوړجاړي لاره ونيوه نو دغو په طالبانو کې ورننوتلو فرصت طلبه سياسي لوبغاړو خپلې لارې بېلې کړې، او په يوه او بل نامه يې ديرغلګرو تر وزرو لاندې ځانته ځالې جوړې کړې، او يو په بل پسې يې د پرديو له ګريوانونو سرونه راووتل.
امريکا، متحدين يې، د سيمې هېوادونه او ګاونډيان هېڅکله نه غواړي چې په افغانستان کې يو واقعي اسلامي حکومت قائم او په رښتنې معنی شريعت ورکې پلی شي، ځکه چې دا به بيادسيمې د نورو مسلمانانو لپاره چې د غربي ډوله فاسدو سيکولرو نظامونو له فساد او استبداد څخه کړېدلي دي يو ماډل جوړ شي، چې هغوئ به يې هم په خپلو هېوادونو کې د پلي کولو مطالبې او هڅې شروع کړي. نو دوئ ټول به هڅې کوي چې يا ريښتني طالبان د اسلامي حکومت او د شريعت د نافذولو له دعوی څخه تېر او په داسې يوه نظام يې قانع کړي چې يوازې نوم يې اسلامي وي او

نور هر څه ورکې د غرب په خوښه ترسره کېږي. او که رېښتني طالبان پر خپلې تګلارې او (جهادي حل) ټینګار کوي نو په مقابل کې به یې له ښوېېدلو او خرڅو شویو اشخاصو د معتدلو طالبانو په نامه بله سیاسي جبهه تشکیلوي چې پخواني (جهادي) او نني (دیموکرات) تنظیمونه، د روحانیت درواغجن مدّعیان، یو څه معتدل سیکولران او د نړۍ او سیمې استخباراتي کړۍ به یې تر څنګ درېږي، او د اوږدې مودې لپاره به هڅه کوي چې رېښتني طالبان او د(جهادی حل) پلویان کمزوري، بدنامه کړي او د جهادي مقاومت په افادیت باندې یې شکمن کړي، ترڅو له دې لارې په افغانستان کې د غربپالنې، سیکولریزم او نیمه مسلمانۍ په مقابل کې مقاوم ځواك کمزوري کړي او له غرب سره یې جوړجاړي ته اړ کړي.

**۳- د جهادي فکر او عقیدې په خلاف منفي تبلیغات:**

امریکا او ملګرو یې په افغانستان کې خپلو پلویانو ته وظیفه ورکړې چې د جهاد او مقاوم فکر په خلاف دومره ډېرې لیکنې او تبلیغات وکړي چې د اسلام ستره فریضه (جهاد) خلکو ته د وحشت، جنایت، وراني، اقتصادي ببرته پاتې والي او د تمدن د نه خپلولو په معنی ور معرفی کړي.
د همدې مقصد د حاصلولو لپاره امریکا او ملګري یې په افغانستان کې هغه فکري او فرهنګي اشخاص او جهتونه تمویلوي او وسائل په لاس ورکوي چې په فکري او عملي لحاظ د فساد د مخنیوي په منظور د مسلح جهاد مخالفت کوي.
امریکا د دغو خلکو پراخ مالي او تخنیکي ملاتړ کوي، هغوئ ته مطبوعاتي ادارې، مؤسسات، پوهنتونونه او نورې تعلیمي ادارې ورجوړوي ترڅو په پراخه پیمانه په ټولنه کې د غربي افکارو او مفاهیمو د خپرولو لپاره کار وکړي.

**۴- په افغانانو کې د مقاومت روحیه له منځه وړل:**

امریکا او محلي ملګري یې هڅه کوي په افغانانو کې د مقاومت روحیه له منځه یوسي، ځکه چې ترڅو د مقاومت روحیه په افغانانو کې موجوده وي نو د پردیو په مقابل کې به مقاومت هم موجود وي. د مقاومت د روحیې د له منځه وړلولپاره امریکایان، اروپایان او د هغوئ محلي ملګري له هرې لارې کوښښ کوي چې ځوان نسل په لوبو، فیشن، موسیقۍ، اخلاقي فساد او د غربي افکارو پر خپلولو مصروف کړي. همدا اوس یې لوبو ته دومره زورور کړی چې د(کرکټ) او (فوټبال) د مسابقو په ورځو کې یې تقریباً ټول افغانستان د مېډیا له لارې د هغو په کتلو مشغول کړی وي. او که په کومه لوبه کې یو څو بیسواده لنډغر، له زده کړو تښتېدلي کوڅه ډبي چې دوئ ورته د ملي اتلانو نوم ورکوي له کومې بلې ډلې لوبه وګټي نو په هغه ورځ یې بیا نیم افغانستان په ګډاوو، ډول او سورنیو، بې بندوباریو او مسرفانه لمانځنو مصروف کړی وي، او ولس ته داسې روحیه ورکوي لکه افغانانو چې له دین او وطن څخه د دفاع کومه ستره معرکه ګټلې وي.

دا هر څه د دې لپاره تر سره کېږي چې ځوانان او نوی نسل له تعلیم، جهاد، کار او د اولویاتو له پېژندلو او مراعاتولو څخه په داسې څه مصروف وساتي چې ګټه یې یوازې دښمن ته رسېږي.

د لوبو، موسیقۍاو د ځوانانو او پیغلو ترمنځ د فساد د خپرولو ترڅنګ امریکایان او په افغانستان کې د هغوئ ملګرو ملیونونو ځوانانو ته په مخدراتو(شرابو، چرسو، پوډرو) د اخته کېدلو زمینه هم برابره کړې ده. او دا هرڅه داسې په سیستماتیك ډول تر سره کېږي چې په نتیجه کې یې په ملیونونو ځوانان د کار او جهاد لپاره د فکري استعداد د له لاسه ورکولو ترڅنګ بدني توانایي هم له لاسه ورکوي.

د افغانانو د تاریخ په هېڅ دور کې دومره ځوانان او نجونې په مخدراتو او له اخلاقي فساد او فحشاوو څخه په راپیدا شویو جسمي او رواني

مرضونو نه ؤ اخته شوي لکه څومره چې د امریکایانو د اشغال په تېرو دیارلسو کلونو کې اخته شول.
د کابل ښار په خپل ټول تاریخ کې دومره پوډریان نه وو لیدلي لکه اوس چې یوازې د کابل د سیند پر غاړو هر چېري پراته وي.
د غرب پلوې مېډیا له لارې د موډ او فیشن خپلولو ته د خلکو او نوي نسل تشویقول د جهاد او مقاومت د روحیي د له منځه وړلو بله وسیله ده چې د رواني لالهاندۍ ترڅنګ یې افغاني ټولنې ته خورا دروند اقتصادي تاوان هم وراړولی دی، او په لکونو خلك یی پدې کار کې یو له بل سره په سیالۍ اچولي دي.
د موډ او فیشن دغه مصرف که په تعلیم او د تخنیك په زده کړه کېدای نو اوس به نوي نسل ډېر څه زده کړي وای.

**٥- د تعلیم نظام او نصاب د ټولنې د غربي کولو لپاره د وسیلې په ډول استعمالول:**

د هغو ناپوځي وسائلو له جملې څخه چې امریکایې د جګړې په راتلونکې مرحلې کې کاروي یوه هم تعلیم ده. امریکا د افغانانو او افغانستان د تسخیر لپاره په لاندې شکلونو کې له تعلیم څخه کار اخلي:
( **الف**) امریکا په تېرو دیارلسو کلونو کې درې ځلې د افغانستان په تعلیمي نصاب کې بدلون راووست او له نصاب څخه یې د جهاد، دفاع، شهادت، غیرت، ازادۍ، اسلامي نظام، له کفارو څخه د کرکې، د اسلامي امت د یووالي او د دیني تعلیماتو او ساینسي اکتشافاتو تر منځ د ارتباط مفاهیم حذف کړل او پر ځای یې د سولې، دېموکراسۍ، د غربیانو له نظره د بشر د حقوقو، د ښځو د آزادۍ، د ښځو او نارینه وو ترمنځ اختلاط، موسیقۍ، ګډا، د فرهنګ په نامه د زړو افغاني خرافاتي انګېرنو او رواجونو د راژوندي کولو، د غربي ډوله مدني ټولنو د معرفي کولو او رائجولو، د هیومنیزم د فلسفې له مخې ټولو انسانانو ته په یوه

سترګه د کتلو، له کفارو سره ديو ډول سياسي، فرهنګي، اخلاقي او ټولنيزو ارزښتونو د خپلولو او د غربي او يا غرب پلوو شخصيتونو د معرفي کولو مفاهيم او مضامين ورځاى کړل.
د تأسف ځاى لا دا دى چې دا هرڅه يې د داسې خلکو په لاس وکړل چې ځانونه يې د اسلامي فکر مدافعين بلل، او د جهاد او هجرت په محيط کې يې د مهاجرينو او مجاهدينو په خيراتي پيسو ماسټرۍ او دوکتوراوې واخيستې خو په آخر کې له خپل ټول علم او تجربې سره د اشغال د حکومت په ادارو کې د يرغلګرو تر څنګ ودرېدل.
امريکايانو د خپلې خوښې مفاهيم اکثره په ادبي، اجتماعي، تاريخي، فرهنګي او د مدني زده کړو په مضامينو کې ځاى پرځاى کړي دي، ترڅو په پراخه پيمانه د نوي نسل په ذهن کې ځاى ونيسي.
(ب) د امريکايانو له راتللو سره د افغانستان د تعليمي حريم دروازه د هر چا پر مخ خلاصه شوه او هر چا دلته د خپلې خوښې تعليمي ادارې، شخصي مکتبونه، پوهنتونونه، لنډمهالي او اوږدمهالي کورسونه جوړ کړل، او په هغه کې يې خپل خپل نصابونه عملي کړل.
غربي هېوادونه او مؤسسات چې د دغو تعليمي ادارو تر شا ولاړ ول له يوې خوا يې د افغانستان تعليمي نصاب له اسلامي ارزښتونو محروم کړ، او لکه چې د اشغال د ادارې د پوهنې وزير (فاروق وردګ) وايي په نصاب کې يې د شاملو ديني کتابونو د چاپ لپاره پيسې هم ورنه کړې، تر څو نوى نسل د مکتب په نصاب کې هم د ديني کتابونو له شتون څخه محروم شي. او له بلې خوا يې د ټولنې د شتمنې طبقې اولادونه د خپلو افغاني ملګرو په توسط په شخصي تعلميي ادارو کې احتوا کړل، او هلته يې په واردو شويو پرديو نصابونو روزي.
دغه په پرديو نصابونو روزل شوى نسل به هماغه ډول افغانستان هم په راتلونکي کې د پرديو پر لار روانوي لکه څنګه يې چې د اسلامي نړۍ نور هېوادونه روان کړي دي.

(ج) امریکایانو د یوې سنجول شوې توطیې په ترځ کې د افغانستان په خلکو داسې یو تعلیمي نصاب ور تحمیل کړ چې د اسلوب، تعلیمي مېتود او د معلوماتو د سویې په لحاظ د افغانستان د اوسني جنګ ځپلي معارف د معلیمنو او متعلمینو له سویې او وضعیت سره مطابقت نه لري.
د دې کار نتیجه دا شوه چې نه موجوده معلمین دغه د پردیو له لوري فرمایشي نصاب په سم ډول تدریسولی شي، او نه هم زده کوونکي له هغه څخه سمه استفاده کولی شي چې پدې ډول یې معارف، معلم، شاګرد او د هغوئ د سرپرستان ټول له یوه ذهني اضطراب سره مخ کړل. او چې د لوړو زده کړو په وزارتونو او نظام کې اداري او اخلاقي فساد هم وسره ملګري شي نو نتیجه یې د( تعلیم) پر ځای (تجهیل) راوځي، چې همدغه د غرب اوږد مهاله هدف هم دی. ځکه چې غرب او د اسلام نور دښمنان نه غواړي چې افغانان دې پرمختګ وکړي، بلکې هڅه کوي چې د تل لپاره افغانان ځانته محتاج او له لاس لاندې وساتي.

**۶– د معتدل اسلام او منحرف روحانیت له پیروانو کار اخیستل:**

معتدل اسلام او غرب پلوي روحانیت دوه نورې هغه خطرناکې وسیلې دي چې امریکا او د هغې متحدین یې په افغانستان کې د ربښتنیو مسلمانانو او د غرب په خلاف د جنګېدونکو مجاهدینو په خلاف په سیستماتیك ډول په لاندې شکلونو کاروي:
(الف) غرب د خپلو تحقیقاتي مراکز د څېړنو او د خپلې زوروړې مېډیا له لارې هڅه کوي مسلمانان هغه اسلام ته ور وبولي چې غربیانو په خپله ډیزاین کړی او (معتدل اسلام) یې بولي.
غرب د خپل معتدل اسلام لپاره د ځیني سیکولرو هېوادونو لکه ( ترکیې)، (اردن)، (مصر)، (تونس) او ځینې نورو غرب پلوه او له حقیقي اسلام څخه د پردیو شویو هېوادونو او تعلیمي مراکزو مثالونه وړاندې کوي چې د (الازهر) پوهنتون یې په سرکې دی.

امريکا همدا اوس په افغانستان کې د بېلابېلو سياسي او ديني مؤسسو له لارې د يوه (بې جهاده)، (بې وسلې)، (بې ځانګړې هويته) او (بې شريعته) اسلام د خپرولو لپاره کار کوي، او د همدې مقصد لپاره يې پدې وروستيو کې د اوقافو وزارت د ۲۰۰۰۰ ملايانو روزنه او په کابل کې د (اعتدال) په نامه د ديني مرکز افتتاح تر سره کړل.

امريکا د دغه ډول لنډمهالو او اوږد مهالو پروژو له لارې غواړي په افغانستان کې د اسلام هغه فهم له منځه يوسي چې د هغه پر اساس افغانان په افغانستان کې د اسلامي نظام قائمول او د غرب په خلاف مقاومت کول غواړي.

(ب) امريکا او نور غربي هېوادونه او مشهور اشخاص په افغانستان کې له هغو تنظيمونو، ديني مراکزو، اصلاحي ټولنو، اسلامي ډوله راډيوګانو او ملايانو سره مرستې کوي چې د جهادي فکر مخالف دي، د( ولاء او براء) پر عقيده باور نه لري، او په افغاني ټولنه کې د (ارجائي فکر) د خپرولو لپاره کار کوي. غرب دغه جهتونه دېته هڅوي چې د غرب په خلاف جنګېدونکو مجاهدينو ته (خوارج)او(تکفيريان) ووايي، او په ډول ډول نورو هغو نومونو يې ياد کړي چې دافغاني ټولنې خلك ورڅخه کرکه کوي.

همدغه خلك چې مجاهدينو ته (تکفيريان) او (خوارج) وايي دوئ بيا له غرب څخه د راواردو شويو فکري فتنو لکه ډيموکراسۍ، سيکولريزم، لبراليزم، هيومنيزم، نشنلزم، وضعي قوانيونو او فکري ارتداد په هکله نه څه ليکي او نه يې وايي. او دا ځکه چې دوئ په بېلابېلو مجالاتو کې له غرب سره فکري او عملي مشترکات او متبادل مصالح لري. امريکا غواړي د همدوئ په واسطه د افغانانو له زړونو او ذهنونو د (جهاد) او (ولاء او براء) د عقيدې مفاهيم وباسي، او کرار کرار يې د سياسي پلوراليزم ترڅنګ د ديني پلوراليزم پر لار هم روان کړي.

روحانيت، معنويت ته توجه، زهد، حسن خلق او ديني ارشاد ټول په اسلام کې مطلوب او مرغوب کارونه دي چې د اسلام علماؤ او مصلحينو تل ترسره کړي دي، او بايد ترسره يې کړي، خو يو څه خلکو بيا دغه صفات او حيثيتونه د اسلامي تاريخ په اوږدو کې په درواغو او په ټولنه کی د دنياوي وجاهت د ترلاسه کولو پخاطر کارولي دي، او پدې ډول يې پر (بې علمه) او (ساده لوحه) سپين زړو خلکو خپل تسلط ساتلی، او د هغوئ شتمنۍ يې د نذرونو، شکرانو او قلنګونو په نامه ورڅخه تروړلي دي، او خپله يې ورباندې مست شاهانه ژوند تېرکړی دی.
دا چې دغه ډول خلکو تل د خوندونو ژوند تېرکړی، نو د خوندونو د نور تداوم لپاره يې له مشبوهو جهتونو، ګمراه حکومتونو، غربي استعمارګرو او په اسلامي هېوادونو کې له سيکولرو احزابو سره هم روابط او ايتلافونه جوړ کړي دي، او استعماري قوتونو هم د بېلابېلو سياسي او مالي هداياوو او رشوتونو په ورکولو د دوئ خدمات حاصل کړي، او د دوئ له نفوذ څخه يې د مسلمانانو په تسخيرولو او له جهاده د هغوئ په منصرف کولو کې کار اخيستی چې مثالونه يې په عربي هېوادونو، شمالي افريقا، سوډان، د هند نيمې وچې او افغانستان کی ډېر ډېر وليدل شول.
همدا اوس چې امريکا د اسلام او مسلمانانو په خلاف يوه لويه جګړه روانه کړې ده، او د مسلمانو هېوادونو رښتيني روحانيين، مجاهدين، علماء، طالبان او با احساسه مسلمان ځوانان د غربي يرغلګرو په خلاف په ټوله اسلامي نړۍ کې په جهاد بوخت دي، په همدغه ډول حالت کې دغه د (کمرشل روحانيت) مدعيان او (سيکولر ډوله پيران) د غرب له صليبي ايتلاف سره ملګري دي، او د غربي لښکرو د صليبي جګړې په تبليغاتي او معنوي ډګر کې د مجاهدينو په خلاف د ديني مليشو په رول کې لوبېږي.
امريکا په تېرو دېرشو کلونو کې ډېر دغه ډول درواغجن او سيکولر روحانيين په افغانستان او سيمه کې د خپلو توطيو د عملي کولو لپاره

وپالل او ویې کارول، او لا نور یې هم د ربښتینیو علماؤ، طالبانو مصلحینو او مسلحو مجاهدینو په خلاف کاروي.
په راتلونکی کې د طالبانو تحریك او د دوئ جهادي فکر ته ریښتنی خطر هم د همدغو دوه مخو خلکو له لوري متوجه دی. همدوئ به خلك د طالب پر جهادي مصداقیت شکمن کوي. همدوئ به امریکا او غرب ته د طالب د نرمولو او سولې ته د آماده کولو تمې ورکوي، همدوئ به د نوئ نسل ځوانان د جهاد او جدّیت له افکارو او ژوند څخه خرافاتي عقائدو او له غرب سره پیوند اخیستلو ته تشویقوي، او همدوئ به د جهاد نظریه تحریفوي او ځوانان به د جهاد له جبهاتو او د علم له مدارسو څخه خپلو خرافاتي مراکزو ته وربولي.
که د غربي تحقیقاتي مراکزو لکه د (رنډکارپورېشن) او نور توصیو ته چې امریکا او غرب یې کړي وکتل شي نو وبه لیدل شي چې غربي یرغلګر دغو خلکو ته د خپلو دوستانو او ستراتیژیکو ملګرو په سترګه ګوري، او کوښښ کوي چې د دوئ په وسیله د ریښتیني روحانیت او جهاد د لارې لارویان له خپلې حقې لارې منصرف او منحرف کړي.
دغه خلك په هېڅ وخت کې د طالبانو د تحریك ریښتیني ملګري او خیرخواهان ندي. دوئ پرون هم د خوندونو او منصبونو پخاطر له طالبانو سره ولاړ ول، خو کله چې خوندونه او منصبونه له لاسه و وتل نو سمدستي یې په بېلابېلو نومونو او حیثیتونو د دښمن صف ته ورټوپ کړل. امریکا غواړي یو ځل بیا له همدغې دروازې د طالب په جهادي صف کې رخنه وکړي او له خپلې تګلارې یې واړوي.

**۷– د مېډیا له لارې د فکرونو تسخیرول:**

امریکا پدې پوهېږي چې د خپلو پوځي وسائلو او جنګي لښکرو له لارې د هر افغان کور ته نشي ورسېدلی چې هلته د هغوئ په فکرونو، عقائدو او د ژوند په بڼه کې تبدیلي راولي، او هغه فطري کرکه او کینه یې له زړونو وباسي چې د غرب په خلاف یې لري. خو دغه کار بیا په ډېرې اسانۍ د

مېډیا له لارې کولی شي، ځکه چې تقریبا ټول خلك راډیو اوري، تلویزونونه ګوري، د موبایل ټلفونو په واسطه فلمونه او نور تصویري معلوماتویني، او یوه زیاته برخه خلك کمپیوټر او انټرنټ هم استعمالوي، او په راتلونکي کې به د دغو وسائلو استعمال نور هم ډېر شي.

همدې اهمیت ته په پام سره امریکا او ټول غرب کوښښ کوي چې خپل افکار او نظریات افغانانو ته د برقي وسائلو له لارې ور ورسوي. که د نوري فایبر (کېبلي انټرنټ) پروژه رښتیا هم په ټول افغانستان کې تطبیق شي نو امریکا به له یوې خوا ټول افغانستان په ډېرې آسانۍ تر خپل فکري او فرهنګي تهاجم لاندې ونیسي او نوی نسل به له دیني ارزښتونو ځخه پردی کړي، او له بلې خوا به د ټول افغانستان معلومات د همدې نوري فایبر (کیبل) له لارې د دوئ لاس ته ورلوېږي چې دا بیا د لوی خطر خبره ده، ځکه چې افغانستنان دا ظرفیت او ټکنالوژي نه لري چې خپله سایبر سیکورټي (انټرنټي امنیت) تأمین کړي.

امریکا همدا اوس د ۸۱ تلوېزوني او ۱۷۰ راډیویي سټېشنونو په ذریعه د افغاني ټولنې په اجتماعي او اخلاقي ژوند کې دومره منفي بدلون راوستلی چې په تېره یوه پېړۍ کې یې ساری نه لیدل کېږي.

**۸ – د اقلیتونو پالل او نشنلستي افکار تقویه کول:**

امریکا د خپل دیارلس کلن اشغال په دور کې په افغانستان کې شیعه او اسماعیلي اقلیتونو ته ډېره توجه وکړه، هغوئ یې منظم کړل، مؤسسات او د ښه ژوند وسائل یې ورته مهیا کړل، د افغانستان په اقتصادي او دولتي ادارو یې مسلط کړل، په سیاست کې یې د هغوئ تر اصلي حجم زیاته برخه او ځای ورته ورکړ، او په فکري لحاظ یې د سیکولریزم او غربپالنې په فکر او په لوړو تحصیلاتو وروزل. امریکا دا هرڅه د دې په بدل کې ورته وکړل چې هغوئ په مطلق ډول د یرغلګرو ترڅنګ ودرېدل، او په قطعي ډول یې د اشغالګرو په خلاف مقاومت ونه کړ.

همدارنګه امریکایانو په افغاني ټولنه کې نشنلستي افکارو ته وده ورکړه، او په تیوریك لحاظ یې د افغانستان د بېلابېلو قومونو باسواده ځوانان او د فکر او قلم خاوندان پدې مصروف کړل چې تر هرڅه زیات باید نشنلزم (قوم پرستۍ) ته ارزښت ورکړي، که څه هم چې د اسلامي عقیدې او احکامو سره په تصادم کې هم واقع شي.

دا چې نشنلزم یوه غربي مفکوره او نشنلستان په شعوري ډول غرب پلوي خلك دي نو امریکا همدوئ د مجاهدینو په خلاف استعمالوي، او د همدوئ په توسط د اسلامي نظام د قائمیدلو مخنیوی کوي. او همدا اوس هم ټول نشنلستان چې په هر قوم پورې اړه لري د یرغلګرو په صف کې ولاړ دي.

**۹- حکومتي نقش ناحکومتي مؤسساتو ته سپارل:**

د امریکا او غرب حکومتونه د افغانستان په اشغالولو کې د مستقیمې ښکېلتیا له امله د مجاهدینو لپاره مشروع اهداف ګرځېدلي دي. د هغوئ پوځیان، جاسوسان، د هغوئ محلي ملګري، د هغوئ دفاتر او هر ډول پرسونل یې په افغانستان کې په خلاص مټ فعالیت نشي کولی. ځینې هېوادونو یې خپل پوځیان وېستلي، خو ناپوځي سیاسي، استخباراتي، روزنیز او د فکرونو د بدلولو ادارې یې لا تر اوسه پټ او ښکاره فعالیت کوي چې هره ورځ یې د تأثیر او فعالیت ساحه نوره هم تنګېږي. په ولسوالیو، ولایاتو او لویو ښارونو کې د مجاهدینو پراخ او مؤثر حضور د غربي او غرب پلوو ادارو لاسونه ورتړلي دي او کارکوونکي یې د سر د ساتلو په هڅه کې دي. دې وضعیت غرب دېته اړکړی چې د افغانستان د لاندې کولو او دلته د خپل تأثیر د ساتلو لپاره د خپله ښکاره حضور استراتیژي د پټ او بالواسطه حضور په استراتیژۍ بدله کړي.

امریکا او ملګرویې په تېرو دیارلسو کلونوکې په افغانستان کې تر ۴۰۰۰ زیاتی نادولتي مؤسسې ایجاد کړی وې. دغه مؤسسې دومره ډېرې او خپلسرې وې چې د کرزي د پخوانۍ کابینې د پلان وزیر رمضان

بشردوست ورځخه تقريباً دوه زره مؤسسې په يوه ورځ لغوه کړې. خو دا چې افغانستان د غرب لخوا اشغال شوی، او د غرب لخوا افغانستان ته تخصيص شوې ٪۸۰ فيصده پيسې د همدې مؤسساتو له لارې د هغو اهدافو د حاصلولو لپاره مصرفېدلې چې غرب يې غواړي، نو ځکه خو د دې پر ځای چې د وزير په امر مؤسسې له فعاليته منع شي، بالعکس وزير د مؤسساتو په امر له وزارته برطرف کړای شو.

غربي نادولتي مؤسسې په حقيقت کې د غرب هغه لښکر دی چې پرته له جګړې د غرب لپاره د اسلامي نړۍ حکومتونه او ولسونه تسخيروي، او په سړه سينه او دوامدار فعاليت ټول هغه مقاصد حاصلوي چې پوځونه يې له حاصلولو عاجز پاتې کېږي. او دا ځکه چې پوځي فعاليت او اشغال خاوره نيسي، خو د مؤسساتو فعاليت ولسونه، عقلونه، فکرونه او اقتصادونه اشغالوي. نو ځکه خو همدې اهميت ته په پام سره غرب په افغانستان کې د خپل پوځي عقب نشينۍ تشه په نادولتي مؤسساتو ډکول غواړي.

د مؤسساتو د پټ او خطرناك رول د وضاحت لپاره يوازې دا مثال هم کافي دی چې کله طالبانو د خپل حکومت په وخت کې په کابل کې له ميشتو مؤسساتو وغوښتل چې د ښار له ګڼې ګوڼې او د خلکو له منځه دې دکابل د ښار په غرب کې د قرغې پر سړك ښکلې سياحتي او د تازه هوا لرونکې ساحې ته ټول په يو ځای کې راجمع شي، او د دې کار هدف دا وو چې له يوې خوا ښار د دوئ له فشار څخه خلاص شي، او له بل لوري يې طالبانو ته نظارت آسانه شي، خو مؤسساتو د خپلو دفاترو بندولو ته پر هغه ځای ته په ورمنتقل کېدلو ترجيح ورکړه، ځکه چې هلته يې بيا پټ رازونه او پټ ملګري رسوا کېدل.

په افغاني ټولنه کې د غربي نادولتي مؤسساتو د خطرناك تأثير تر ټولو لويه نمونه همدا د اوسني نظام منځته راتلل دي، ځکه چې د اوسني حکومت ډېرو وزيرانو، رئيسانو، سفيرانو، لوړپوړو چارواکو، واليانو،

ویاندانو، د مطبوعاتو او میډیا چلوونکو، د سنا او ولسي جرګې استازو، د تعلیمي ادارو مشرانو او د سیاسي احزابو رهبرانو او مشهورو ځېرو د غرب په پروني‌و نادولتي مؤسساتو کې کارونه کول، او همدغو غربي نادولتي مؤسساتو په تېرو څلورو لسیزو کې په افغاني ټولنه کې دومره کار او تأثیر کذاري کړې وه چې کله امریکا پر افغانستان د یرغل ارده وکړه نو په سلګونه زره افغانانو ورته په یوه او بل شکل د راتلو لاره هواره کړه. چا ورته د پیاده عسکرو وظیفه اجراء کړه، چا ورته جاسوسي وکړه، چا ورته د مېډیا له لارې د هغوئ په ګټه ذهن سازي وکړه، چا ورته دولتي او نا دولتي ادارې وچلولې، او چا ورته د هغوئ لپاره جنګېدونکی پوځ، پولیس، استخبارات، ملیشې او اربکیان جوړ کړل، او ښه په خوند یې د غربي یرغلګرو خدمت وکړ.

غربي نادولتي مؤسساتو د کمونستانو اوروسانو په خلاف د افغانانو له جهاد سره هم یوه خطرناکه لوبه وکړه، او هغه لوبه داسې چې غربي مؤسساتو په ډېر مهارت د مجاهدینو او مهاجرین له منځه پوه، باتجربه، د لوړوتحصیلاتو لرونکي، د قومونو مخور او با نفوذه خلك، مشهور قومندانان، لیکوالان، فرهنګي او تأثیر ګذاره خلك، د پوهنتونونو استادان او نور هغه با استعداده خلك چې باید د جهاد صف ورباندې قوي شوی وای یو یو ټول کړل، او په خپلو ادارو کې یې په کار وګومارل. دې کار د جهاد او هجرت صف ته دوه ستر نه جبیره کېدونکي زیانونه ور واړول، او هغه دا وو چې یو خو یې د جهاد صفوف او مهاجرین د کار او سرپرستۍ له خلکو محروم کړل، چې د دوئ ځای بیاپه جبهاتو کې نا اهلو خلکو، چرسیانو، لوچکانو، بې هدفه او خرڅېدونکو جنګیالیو او پاټکیانو ونیوه چې هم یې جهاد بدنام کړ او هم یې ولس وکړاوه. او بل زیان یې دا وو چې دکار خلك مو څه په آګاهانه او څه هم په نا آګاهانه ډول دغرب په خدمت کې واقع شول.

امریکا اوس بیا غواړي خپل نا تکمیل شوی پوځي اشغال د همدغو نادولتي مؤسساتو په لاس تکمیل کړي، که څه هم چې دا کار به لس پنځه لس کاله نور هم واخلي. او په همدې مقصد خو امریکا د ۲۰۱۵م کال لپاره په افغانستان کې د جنګ بودیجه یوازې ۷۹ ملیونه ډالره ټاکلې، خو د ناپوځي فعالیتو د جارې ساتلو لپاره یې دوه ملیارده او شپږ سوه میلیونه ډالره تخصیص کړې او کانګرس ته یې د منظورولو په مقصد ورلیږلې ده.

په افغانستان کې د غربي نادولتي مؤسساتو په اړه به دا یو ډېر ساده تصور وي چې یوازې هغه مؤسسې دې تر څارنې لاندې ونیول شي (نصرانیت، یهودیت او نورو باطلو نظریو ته خلك وربولي). او دا ځکه چې غرب اوس دینونو ته پر دعوت ترکیز نه کوي، هغوئ اوس په خپله عملاً نصرانیت پرې ایښی دی، یهودیت یوازې د یهودانو دین دی، او هغوئ نه غواړي چې بل څوك دې ورکې داخل شي، او نورو باطلو عقائدو ته هم غربیان په ښکاره مسلمانان نه وربولي.

نن د غرب لپاره تر ټولو مقدس دین او مقدس ارزښتونه چې تر نصرانیته هم ورته ډېر ارزښتمن دي هغه(**ډیموکراسي، د بشر حقوق، د ښځو آزادي او له نارینه وو سره په هر څه کې د هغوئ مساوات، د وضعي قوانینو حاکمیت، سیکولریزم، لیبرال تعلیم او د کاپیټالزم اقتصادي نظام**) دي.

او په اسلامي نړۍ کې یې خپل ټول مؤسسات او د مدني ټولنو منظومه هم د همدغو اهدافو د تحقق لپاره په کار اچولي دي، او دا ځکه چې هغوئ د همدغو ارزښتونو له لارې پر اسلامي نړۍ خپل تسلط ټینګ کړی دی. نو هره هغه مؤسسه چې په هر پټ اوښکاره ډول د دغو اهدافو لپاره کار او فعالیت کوي هغه خطرناکې مؤسسې دي چې مسلمانان باید د دښمن په سترګه ورته وګوري، او پداسې ډول استفاده ورڅخه وکړي لکه له اور څخه چې څوك استفاده کوي.

امریکا له تېرو دوو کلونو راهیسې د داسې پلانونو پر جوړولو کارکوي چې څنګه خپلې پروژې او پروګرامونه دمحلي قراردادیانو، ملکانو، روحاني ډوله مشرانو او د خصوصي تعلیمي ادارو د چلوونکو له لارې عملي کړي.

د غربي هېوادونو او امريکا پټو او ښکاره توطيو او د اسلامي نړۍ د هېوادونو د ما بعد الاستعمار پېچلي او په غرب پورې تړلي وضعيت ته په کتلو او په افغانستان او سيمه کې د امريکا اقتصادي او ستراتېژيکو اهدافو ته په پام سره سړی په زغرده دا ويلی شي چې امريکا په آسانه د افغانستان په يو مخيز ډول پرېښودلو ته زړه نه ښه کوي، او له افغانستانه د قواوو وېستل يې په پوځي جګړه کې د شکست حقيقت ته د تسليمېدلو او د خپل جګړه ځپلي اقتصاد له رګونو د نورې ويني د درولو د عملي هڅې په معنی دي.
پدې کار سره امريکا يوازې د جګړې له له اور او ستومانۍ ځان هوسا کوي، خو له افغانانو څخه د خپلې ماتې د انتقام د اخيستلولپاره به خپلې ناپوځي جګړې او په افغانستان کې د اسلامي نظام د مخنيوي هڅو ته نور هم زور ورکوي.
غرب د اسلامي هېوادونو د نيولو او د مسلمانانو د تسخيرولو اوږده تجربه لري چې له صليبي جګړو شروع شوې او د اندلس د سقوط، استعماري جګړو، استشراقي څېړنو، پر اسلامي نړۍ د سيکولرو او مستبدو نظامونو د تحميل، د نوي نړيوال نظام د تسليط، او د نړۍ د نيونې په مقصد دګلوبلايزشن د نظريې د جبري تنفيذ په څېر مراحل يې طې کړي دي، او لا نور هم د غرب فکري او څېړنيز مراکز د مسلمانانو د تسخيرولو په مقصد د پلانونو او دسيسو په جوړولو شپه او ورځ کار کوي.
د غرب په اړه زموږ درك ډېر ساده دی، موږ مقابله او بری يوازې د جګړې په ډګر کې ګڼو، او لدې ناخبره يو چې غرب څنګه په خپل سياسي او اسخباراتي استعداد او مهارت زموږ د پخواني جهاد تنظيمونه، په لکونو مسلح مقاومت کوونکي، جهادي رهبران او د تېر جهاد قهرمانان په خپل صف کې ودرول، خپل ټوپك يې د هغوئ پر اوږه کښېښود، او د غرب په خلاف جنګېدونکي رېښتيني مجاهدين يې هدف وګرځول؟
د اوسني روان جهاد رهبرانو ته په کار ده چې د غربي يرغلګرو او د هغوئ د پاليسيو په اړه کافي مطالعه ولري، او ټولې هغه لارې وپېژني چې دښمن له هغو څخه راداخلېږي. ترڅو داسې نشي چې دښمن د دروازې له لارې ووځي خو د کړکۍ له لارې بېرته راننوځي.

## ملي وحدت د چا له لید لوري؟

د ټولنو اصلاح او فساد د افکارو زیږنده ده، که د ټولنې فکر فاسد شو نو ټولنه ورسره فاسدیږي، او که د ټولنې فکر سالم وو نو بیا ټولنه، د ټولنې افراد، راکړه ورکړه او معاملات یې ورسره سمیږي. د ټولنې اصلاح او فساد په فکرونو پورې تړاو لري، او فکرونه داسې ندی چې په کوم ځای کې را وټوکیږي نو په همدغه ځای کې دې منحصر پاتې شي.
کله په یوه ځای کې کوم د خیر فکر را وټوکیږي هغه بیا نورو ټولنو ته ور خپور شي نو د ډېرو نورو ځایونو خلك ورسره سم شي، او کله بیا د خیر فکر بل چېرته راپیدا شي او هغه دلته راورسیږي او زموږ ټولنه ورسره سمه او افراد مو صالح شي، او کله بیا – الله دې نه کړي– زموږ په ټولنه کې بد او خراب مفاهیم راپیدا شي او بیا نورو خلکو او ټولنو ته خپاره شي ، او کله د نورو خلکو فاسد او خراب افکار زموږ ټولنې ته راشي او زموږ خلك او ټولنه ورسره مفسده شي. نو د ټولنو اصلاح او فساد د فکرونو په اصلاح او فساد پورې اړه لري.
افکار او مفاهیم راوارد یږي او صادریږي، زموږ ټولنې ته په تېرو سلو کلونو کې ډېر پردي افکار او مفاهیم راصادر شول، او یا د دې ځای پردي پالو راوارد کړل، او د هغو لپاره یې په مېډیا ، پوهنتونونو، تعلیم او تربیه، نصاب او د ټولنې په عمومي ذهنیت کې دومره کار وکړ چې پردي مفاهیم موږ ته خپل ښکاره شول، او د هغو پر بنا مو پالیسۍ جوړې کړې او لوی تصامیم مو ونیول.
حکومتونو او سیاسي اشخاصو او احزابو افغانستان ته پردي مفاهیم، پردي عقاید او حتی پردي دینونه را وارد کړل، پرافغانانو یې وروتپل، د

هغوئ نويو نسلونو ته يې ورتلقين کړل او په قوانينو او نصاب کې يې ور داخل کړل، چې په دې کار يې ټولنه د فساد او پردي پالنې خواته بوتله.

**د مفاهيمو جګړه:**

کفار د تل لپاره کوشش کوي چې په مختلفو بڼو او قالبونو کې خپل افکار اسلامي ټولنې ته ورداخل کړي، او بيا دومره د هغو لپاره تبليغات کوي چې بالآخره مسلمانی ټولنې دغه وارد شوی افکار خپل ګڼي، له هغو څخه دفاع کوي، او د هغو پر بنا خپله ټولنه تنظيموي، په تقاضا يې له خلکو سره تعامل کوي، او وګړو ته د هغو له مخې مجازات او مکافات ورکوي، چې د دې ټولې سلسلې شروع له فکرونو کېږي.

که نن په نړۍ کې جګړو ته وګورو نو وينو چې اتيا فيصده جنګ فکري او يوازې شل فيصده يې د توپ، ټانګ او بم جنګ دی. نړيوال پر فکري جګړو په ملياردونو ډالرمصرفوي.

کله چې امريکا افغانستان اشغال کړ نو دلته يې تر اتيا زيات تلويزوني چېنلونه او تر يو سل او پنځه اويا پورې راډيو يې ستېشنونه پداسې يو هېواد کې چې يوائې لس فيصده خلك يې برېښنا لري جوړ کړل. افغانان تر هرڅه زيات ډوډۍ، پله، مکتب، سړك، معلم او کتاب ته ضرورت لري، خو دوئ ورته راډيويي او تلوېزوني ستېښنونه جوړ کړل، دا څه معنا لري؟ د دې معنا دا ده چې کافران وايي چې زه به خپل افکار، نظريات او پروګرامونه په هره وسيله باندې چې وي هر کور او هر فرد ته رسوم.

افغانانو وليدل چې د امريکا له راتګه مخکې د بي بي سي راډيو خپرونه نيم ساعت وه، خو وروسته يې بيا شپه او ورځ خپرونې شروع کړې. همداسې د امريکا غږ راډيو نيم ساعت سهار، نيم ساعت ماښام، او پنځلس دقيقې په غرمه کې خپرونی لرلې، خو اوس شپه او ورځ خپرونې لري. د دې مقصد دا دی چې غرب غواړي خپل نظريات،افکار او د خپل ژوند بڼه زموږ ټولنې ته د تبصرې، خبر، مضمون، ډرامې، سندرې، بحث او مرکې په اشکالو ورتلقين کړي، تر څو يې د ټولنې هر فرد واوري.

غربي راډيو ګانې د خپلو مفاهيمو د بيان او رسولو لپاره ډمان، ملايان، د پوهنتون استادان، سياست پوهان، لوبغاړي، او د ټولنې د ټولو طبقو خلك د دې لپاره ورغواړي او په لسګونه ساعته وخت په اختيار كې وركوي چې د بيلابيلو خلكو په ژبه خپل افكار خلكو ته ور ورسوي.
د مفاهيمو جګړه خطرناكه جګړه ده، او موږ د تل لپاره د توري جګړه ګټلې، خو د مفاهيمو په جګړه كې پاتې راغلی يو. او پاتې ځكه راغلی يو چې موږ د فكر جګړې تياری نه لرو.
كه نن وګورو نو وينو چې د اوه پنځوسو په شاوخوا كې اسلامي مملكتونه په دنيا كې وجود لري چې تقريبا يو نيم مليارد مسلمانان وركې اوسېږي، خو په دوئ كې نوي فيصده يې په غرب پسې روان دي. پدی معنا چې چا د دوئ قانون منلی، چا يې نظام منلی ، چا يې مكتب منلی، چا يې يونيفارم او موډ او فيشن منلی، چا يې عسكري نظام منلی، چا يې نصاب منلی، چا يې ادبيات او موسيقي منلې، چا يې رسم او رواج منلی، او چا يې د ژوند بڼه منلې ده او ټول په دوئ پسې روان دي. او كه څوك پدی پاتې خلكو كې په اسلام باندې په عمل كې كلك ولاړ دي نو هغوئ بيا وروسته پاتې، ناپوه، تنګ نظري او ترهګر ګڼل كېږي.
موږ به تر هغه د مفاهيمو په جګړه كې له ماتې سره مخ يو چې تر څو مو د مفاهيمو په جګړه كې بريا ثابته كړې نه وي.

## ملي وحدت يوه پردۍ اصطلاح

د هغو پرديو مفاهيمو له جملې څخه چې د افغانانو په سياسي ادبياتو كې ډېر كارول كېږي يو هم د (ملي وحدت )اصطلاح ده. ډېر ځله موږ اورو چې بايد (ملي وحدت) ټينګ كړو، له (ملي وحدته) دفاع وكړو...د (ملي وحدت) لپاره دا كار وكړو.. او يا داسې او هغسې بايد ونه وايو او يا ونه كړو چې (ملي وحدت) مو پرې خرابېږي. ډېر ځلې ځينې خلك نو خلك لدې امله دځينې اسلامي مفاهيمو له بيانولو منع كوي چې ملي وحدت پرې خرابيږي، او يا له جهاده خلك منع كوي چې ملي وحدت وربانـدي

خرابیږي. راځئ پدې ځان پوه کړو چې (ملي وحدت) څه ته ویل کیږي او څه مفهوم افاده کوي؟

راځئ چې د ملي وحدت مفهوم لږ تجزیه کړو چې لـه څه شي جوړ دی، څه معنا لري؟ اسلام پدې اړه څه نظر لري؟ او موږ د مسلمانانو په حیث او بیـا د یو داسې ولس په حیث چې جهاد یې کړی، د اسلام په لاره کې یې تـر دوه میلیونه زیات شـهیدان ورکـړي او هجرتونـه یـې منلـي دي ددغـه مفهـوم پـه تړاو څه موقف ولرو؟ آیا ملي وحدت ومنو که یې ونـه منـو؟ و یـې سـتایو او که و یې غندو؟ دفاع ترې وکړو او که یې ردکړو؟

**د ملي وحدت تعریف:**

د (ملي وحدت) اصطلاح له دوو لفظونو جوړ ه شوې ده چې یـو یـې (ملـي)، او بل یې (وحدت) دی. د (ملي) کلمه له ملت نه اشتقاق شوې ده، او یـا یـې ملـت تـه نسـبت شـوی دی، او د (وحـدت) معنـی یـووالی دی، چـې د دواړو ترکیبي معنې هغه وحدت دی چې اساس یې ملت دی. یعنې هغـه شـی چـې خلك یې سره یـو کـړي دي هغـه ملت دی. پـدې معنـی چـې دا اقتصـادي یـا نظریاتي دیني وحدت نـه دی، بلکـې هغـه وحـدت دی چـې بنیـاد یـې ملت دی.

**ملت څه ته وایي؟**

دا چې ملت څه ته ویل کیږي؟ اصلي خبره هم پـه همـدې کـې ده، ځکـه چـې کله موږ ملت وپېژنو نـو بیـا (ملـي وحـدت) هـم پیـژنـو. خـو د ملـت د پېژنـدلو لپاره باید دا خبره واضح کړو چې د ملت تعریـف د چـا لـه لیـدلوري وکـوو؟ ځکـه چـې ملـت پـه اسـلام کـې یـو مفهـوم لـري، او پـه نـورو نظـامونو یـا پـه اروپایي تعریفونو کې بل مفهوم لري. نو مونږ د کوم تعریف پر اسـاس ملت جوړوو؟ د اروپایي تعریف مطابق ملت منو او پر اسـاس یـې وحـدت راولـو، او که د اسلام د تعریف مطابق ملت جوړوو او پر اساس یې وحدت راولو؟

**د ملت لغوي معنی**:

ملت يو عربي لفظ دي او لغوي معنا يې طريقه ، قانون او لاره ده. په عربي کې وايي:(طريق ممل) يعني هغه لاره چې خلك وربانديې ډېر تللي راغلي وي. د انبياوو عليهم السلام ملت ته به هم ځکه ملت ويل کېدل چې انبياء عليهم السلام په عين تګلاره ډېر ډېر تللي راغلي دي. نو د ملت لغوي معنې طريقه او قانون ده.

**د ملت شرعي معنی**:

په شريعت کې ملت (دين) ته ويل کېږي، هغه دين چې الله را ليږلی دی او انبياوو عليهم السلام خپلو امتونو ته رسولی دی.امام قرطبي د ملت په اړه داسې وايي: (اسم لما شرعه الله فی کتبه علی ألسنة رسله) يعنې ملت هغه څه ته ويلی کېږي چې الله تعالی د شريعت په توګه د خپلو پيغمبرانو په ژبه راليږلي وي.

راځئ چې د ښه وضاحت لپاره د قران کريم څو آيتونو ته ځير شو:

١- الله تعالی فرمايي:

﴿ وَمَن يَرۡغَبُ عَن مِّلَّةِ إِبۡرَٰهِـۧمَ إِلَّا مَن سَفِهَ نَفۡسَهُۥ ﴾البقرة: ١٣٠

(څوك به وي چې د ابراهيم له ملته مخ اړوي مګر هغه چې خپل ځان يې بېعقل کړی وي).

دلته د ابراهيم عليه السلام له طريقې، منهج او دين نه په (ملة) سره تعبير شوی دی. امام ابن کثير رحمه الله د دې أيت په تفسير کې وايي:(عن ملة إبراهيم أي عن طريقته و منهجه) يعني د ابراهيم عليه السلام له ملت نه د هغه عليه السلام تګلاره او منهج مطلب دی.

۲- په بل آيت کې الله تعالی د ملت او دين کلمې سره مترادفې ګڼلي، لکه چې فرمايي: ﴿ قُلۡ إِنَّنِي هَدَىٰنِي رَبِّيٓ إِلَىٰ صِرَٰطٖ مُّسۡتَقِيمٖ دِينٗا قِيَمٗا مِّلَّةَ إِبۡرَٰهِيمَ حَنِيفٗاۚ وَمَا كَانَ مِنَ ٱلۡمُشۡرِكِينَ ﴾الأنعام: ۱۶۱.

په قرآن کريم کې ملت يوازې د اسلام دين ته نه دی ويل شوی، بلکې د کفر دين هم د ملت په نوم ياد شوی لکه چې الله تعالی د يوسف عليه السلام په ژبه د هغې زمانې د کفارو دين د ملت په نامه يادوي: ﴿ إِنِّي تَرَكۡتُ مِلَّةَ قَوۡمٖ لَّا يُؤۡمِنُونَ بِٱللَّهِ وَهُم بِٱلۡأٓخِرَةِ هُمۡ كَٰفِرُونَ ﴾يوسف: ۳۷.

(بې شکه ما د هغو خلکو (ملت) پرې ايښی چې پر الله ايمان نه راوړي او همدوی له آخرت نه هم منکر دي).

دلته يې د کافرانو له دين څخه په (ملت) سره تعبير کړی.

همدارنګه الله تعالی د مشرکانو د قول حکايت کوي چې هغوئ هم دين ته ملت ويل، الله تعالی فرمايي: ﴿ مَا سَمِعۡنَا بِهَٰذَا فِي ٱلۡمِلَّةِ ٱلۡأٓخِرَةِ إِنۡ هَٰذَآ إِلَّا ٱخۡتِلَٰقٌ ﴾ص: ۷.

د قريشو مشرکانو به رسول الله صلی الله عليه والسلام ته ويل چې: (دا ستا خبرې او طريقه خو په بل دين کې موږ نه وه اورېدلې، دا خو تا له ځانه جوړه کړې).

لوی مفسر امام مجاهد او امام قتاده وايي چې له (الملةالآخرة) څخه يې مقصدد قريشو شرکي دين وو، او ځينې نورو علماوو ويلې چې مراد يې ورڅخه (نصرانيت) وو. يعنی ای محمده! (صلی الله عليه والسلام) دا کومې خبرې چې ته کوې دا خو د قريشو په پخواني ملت يا دين کې نه وې، او نه د نصرانيت په دين کې موجودې وې، دا خو تا له ځانه جوړې کړې دي.

همدارنګه الله تعالی د يهودو او نصاراوو دينونو ته هم ملت ويلي دي، الله تعالی فرمايي:

﴿ وَلَن تَرۡضَىٰ عَنكَ ٱلۡيَهُودُ وَلَا ٱلنَّصَٰرَىٰ حَتَّىٰ تَتَّبِعَ مِلَّتَهُمۡۗ ﴾البقرة: ١٢٠.

(او يهود او نصارى به ﷺپخکله هم له تا نه راضي نشي تر هغه چې د دوئ ملت ونه منې). يعنی د دوی تګلاره، نظريات او دين ونه منې.

د اصحاب کهف په کيسه کې چې الله تعالی بيان کړې ده د هغوئ له خولې هم حکايت کوي چې هغه يو بل ته وايي چې کفار به مو خپل دين ته ور وګرځوي:﴿ إِنَّهُمۡ إِن يَظۡهَرُواْ عَلَيۡكُمۡ يَرۡجُمُوكُمۡ أَوۡ يُعِيدُوكُمۡ فِي مِلَّتِهِمۡ وَلَن تُفۡلِحُوٓاْ إِذًا أَبَدٗا ﴾الكهف: ٢٠.

(که دغه خلك په تاسو باندې خبر شي نو تاسې به سنګسار کړي او يا به تاسو بېرته ور وګرځوي خپل دين ته، بيا به نو کله هم کامياب نشئ).

د شعيب عليه السلام مشرك قوم به هم خپل شرکي دين ته (ملت) وايه لکه چې الله تعالی فرمايي :﴿ قَالَ ٱلۡمَلَأُ ٱلَّذِينَ ٱسۡتَكۡبَرُواْ مِن قَوۡمِهِۦ لَنُخۡرِجَنَّكَ يَٰشُعَيۡبُ وَٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ مَعَكَ مِن قَرۡيَتِنَآ أَوۡ لَتَعُودُنَّ فِي مِلَّتِنَاۚ ﴾ الأعراف: ٨٨

(دوئ شعيب (عليه السلام) ته وويل چې يا به تا او ستا ملګري له دې کلي شړو او يا به بېرته زمونږ ملت ته راګرځئ).

نو په دې ټولو آيتونوکې د (ملت) اطلاق په دين باندې شوی دی، او دا مفهوم ورکې په صراحت سره ښکاري چې د (اسلام دين) د مسلمانانو (ملت) دی، او د (کافرانو دينونه) د کافرانو (ملتونه) دي.

**د (ملي وحدت) مفهوم د شريعت له نظره:**

دا چې د ملت معنی هم د لغت په لحاظ او هم د قرآن کريم او احاديثو په رڼا کې (دين)ده، نو پر همدې اساس د (ملي وحدت) معنی هم (ديني وحدت) دی. نو له همدې امله د (ملي وحدت) شرعي معنی داده چې ټول هغه خلك چې د يوه دين پيروان وي هغوئ په خپلو کې سره (ملي وحدت) لري.

نو د دې اسلامي تعريف له مخې هر مسلمان شخص که هغه پښتون دی، که تاجك، که امريکايی، که چينايی او يا که له کوم بل قوم څخه وي او د نړۍ په هر ګوټ کې وي خو چې (لا إله إلا الله، محمد رسول الله) وايي، باور ور باندې لري، او شرائط يې پر ځای کوي، هغه د دې ملت جزء دی او موږ له هغه سره (ملي وحدت) لرو، او هر مسلمان د دې (ملت) فرد دی.

خو پوښتنه دا ده چې آياموجود سيکولر نظامونه او اشخاص دغه ډول د (ملي وحدت) تعريف او حکم له مسلمانانو سره منې؟ معلومه خبره ده چې هغوئ کله هم د (ملت) لپاره دغه اسلامي تعريف او مصداق نه مني.

د (ملي وحدت) پورتنی تعريف د کوم شخص د فکر زېږنګنده نه دی، بلکې د قرآن کريم واضح مفهوم دی، خو د سيکولريزم (بې دينۍ) پيروان يې ځکه نه مني چې هغوئ د ملت تعريف د اسلام له نظره نه بلکې د معاصرو سيکولرو اروپايانو له ليدلوري کوي چې په لاندې ډول دی:

**(ملي وحدت) د سيکولرانو له نظره:**

سيکولران د (ملت) لپاره د اسلامي تعريف پر ځای د اروپايانو تعريف مني او دهمغه تعريف له مخې له خلکو او ټولنو سره تعامل کوي.

اروپايان (ملت) داسې تعريفوي:

د اکسفورډ قاموس چې په ټول غرب کې يو منل شوی او معتمد قاموس دی ملت په دې ډول تعريفوي:

Nation: a large community of people usually sharing a common history, culture, and language and living in a particular territory and under one government.

د دې تعريف حاصل دادی چې : (ملت د خلکو له هغې لويې ټولنې څخه عبارت دی چې په يوه محدوده سيمه کې تر يوه سياسي نظام لاندی اوسيږي او په خپلو منځونو کې مشترکه ژبه، مشترك تاريخ او مشترك فرهنگ لري).

په پورتني تعريف کې په قطعي ډول د (دين) ذکر نشته. که د پورتني تعريف لپاره په افغاني ټولنه کې مصداق جوړوو نو: د افغانستان مسلمان، هندو، مرتد شوی نصراني، کمونست او نور نا مسلمان اقليتونه بايد ټول يو (ملت)وګڼو. او دا هغه څه دي چې په ښکاره له اسلام سره ټکر کې دي.

قران خو کمونيستان، سيکولران، مرتدين، او نور کافران د مسلمانانو دښمنان ګڼي. نو موږ ولې بايد له هغوئ سره (ملي وحدت) ولرو؟

خو پورتني تعريف ته په کتلو سره هر کافر چې د افغانستان تبعه دی زموږ د ملت فرد ګڼل کېږي. او نه شو کولی چې د افغانستان يو کافر تبعه ته ووايو چې ته زما د ملت فرد نه يې.

يو امريکايي مسلمان چې په امريکا کې اوسيږي، او بل مسلمان چې په افغانستان کې اوسيږي د قرآن کريم له مخې دواړه د يوه (ملت) غړي دي، او په خپلو کې سره (ملي وحدت) لري، خو د اروپايي تعريف له مخې دوئ دواړه د جلا جلا ملتونو غړي دي.

د تأسف ځای دا دی چې په افغانستان او نورې اسلامي نړۍ کې نظامونو او فکري جهتونو مسلمانانو ته (ملت) او (ملي وحدت) د غربي سيکولر تعريف له مخې ور تلقين کړی او تعريف کړی دی، او د (ملت) او (ملي وحدت) تعريف يې له هغه تصوره وېستلی دی چې لغت او اسلامي شريعت يې وړاندې کوي.

سیکولرانو دا هر څه د دې لپاره کړي چې د کافر او مسلمان تر منځ د فرق کولو نظریه له منځه یوسي، او ټول د داسې یوه ملت افراد وګڼي چې عقیده ورکې د پېژندګلوۍ معیار نه وي، بلکې کافر او مسلمان دواړه ورکې مساوي حیثیت لري. له همدې امله خو نظامونه دلته د هر هغه فکر او نظریې مخنیوی او مخالفت کوي چې خلك د کفر او اسلام پر اساساتو سره وېشي.

د (ملي وحدت) د اروپايي تعریف پلویان او له هغوئ څخه متأثره او له دین څخه ناخبره اسلام ته منسوب خلك هم خلکو ته تو صیې کوي چې په مسلمانو هېوادونو کې به د کمونستانو، لبرالانو،نشنلستانو او د نورو کفري او غلطو نظریاتو د پیروانو په خلاف به د دښمنۍ دریځ نه نیول کېږي او د منحرفو عقایدو مخنیوی به یې ځکه نه کېږي چې له دې کارونو (ملي وحدت) ته صدمه رسېږي.

په پورتنۍ معنی (ملي وحدت) یو طاغوت دی چې تر هرڅه محترم او مقدس ګڼل کېږي. او دا نظریه یو داسې بوت ګرځېدلې چې د هغې پیروان یې عبادت کوي او تر الله، رسول، قرآن، عقېدې، اخلاقو او ټولو دیني ارزښتونو یې لوړه ګڼي!

**موږ د مسلمانانو په حیث د (ملي وحدت) کوم تعریف اختیار کړو؟**

د اروپايانو پورتنی تعریف به ښايي هغو خلکو ته د منلو وي چې (دین) ته هېڅ اعتنا نه لري، ځکه چې د هغوئ له نظره د هر چا معبود د هغه خپل هوی او هوس دی، او د هغوئ په عرف کې د دین منل او نه منل یو شخصي کار دی. خو د اسلامي شریعت له مخې د (ملي وحدت) اروپايي تعریف مردود او یوه کفري نظریه ده. که موږ ځانونو ته مسلمانان وایو او اسلام خپل دین ګڼو نوباید د(ملت) تعریف هم له اسلامه واخلو.

اسلامي شریعت ملت (دین) او (تګلارې) ته وایي او هر څوك چې له موږ سره په دین کې شریك وي موږ له هغو سره (ملي وحدت) لرو. نو پر دې اساس مسلمانان ټول یو (ملت) دي، او کافران نور ملتونه دي چې د

واحدې جغرافیې، واحد سیاسي نظام او د مشترکو ژبو او مصالحو یو والی موږ له هغوئ او هغوئ له موږ سره یو ملت نشي ګرځولی، او نه د مسلمانانو او هغوئ تر منځ (ملي وحدت) راوستلی شي.
نو پر همدې بنسټ موږ مسلمانان که هر چېرې یو ټول سره یو ملت یو، او مسلمان مالیزیایی، مسلمان روسی، مسلمان امریکایی مسلمان افغان ټول د یو ملت افراد دي. هر څوك مو چې سره بېلوي هغه له اسلامه ناخبره او یا زموږ دښمن دی. موږ یو امت او یو ملت یو، ځکه الله تعالی موږ ته فرمایلي دي چې :﴿ مِّلَّةَ أَبِيكُمْ إِبْرَٰهِيمَ ۚ هُوَ سَمَّىٰكُمُ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴾الحج: ۷۸.
( ستاسو د پلار ابراهیم ملت دا وو، او هغه تاسو مسلمانان نومولي یاست).
موږ هغه خلک څنګه په خپل ملت کې شریك وبولو چې زموږ دین او عقیده نه مني، زموږ ازادي نه مني، زموږ د دښمن د بیرغ تر سیوري لاندې درېږي او زموږ د دښمن ټوپك په موږ پسې را اخلي، خو موږ یې بیا هم یوازې د دې لپاره په خپل ملت کې وګڼو چې د وینې او خاورې شراکت راسره لري؟! او یا د دې لپاره چې زموږ په ژبه غږېږي؟!
آیا موږ د خپلې ژبې لپاره خپل قرآني مفاهیم پایمال کړو؟! آیا د (ولاء اوبراء) عقیده چې په حقیقت کې د ایمان (محك) دی پرېږدو چې ملي وحدت پرې خرابېږي؟! آیا د اروپایي تعریف لپاره د اسلامي لارښوونو مخالفت وکړو؟!
د پردیو مفاهیمو او نظریاتو رائجېدل په اسلامي ټولنوکې خطرناك حدته رسېدلي دي. او مسلمانان یې تر ډېره حده بې لارې کړي او له خپلو عقایدو اواصیلو اسلامي مفاهیمو لرې کړي هم دي.

**ملي وحدت که سیاسي وحدت؟**

د اروپايي تعريف مطابق پورتني وحدت ته که د (ملي وحدت) پر ځای (سياسی وحدت) وويل شي نو بې ځايه به نه وي، ځکه چې په سياسي وحدت کې کافر هم له مسلمانانو سره په يو هېواد کې يو ځای اوسېدی شي، خو د هر چا حکم او حيثيت به خپل خپل وي . رسول الله صلی الله عليه وسلم هم له کفارو سره يو سياسي تړون کړی وو، او د اسلامي شريعت له مخې (اهل الذمه) هم د مسلمانانو د سياسـي نظـام پـه دائـره کـې ژونـد کـولی شـي، او خپـل حقـوق ، وجايـب او مسؤوليتونه لري .

**د پای خبرې**:

دښـمن غـواړي د مسـلمانانو پـه مـنځ کـې د (ولاء او بـراء) يـا د اسـلام پخـاطر د دوستۍ او دښمنۍ مفاهيم د مسلمانانو له ذهنونو وباسي. او د همدې لپـاره يـې اکثـره اصـطلاحات داسـې جـوړ کـړي چـې د مسـلمان او کـافر تفاوتونـه لـه مينځـه وباسي، لکه نړيوال قوانين، نړيواله ټولنه، نړيواله محکمـه چـې د (ګلوبلائزيشـن) مفهوم يې د ټولو خلاصه ده، او هغه په دې معنی چې د ټولی نـړۍ خلك دې يـوه عقيده، يوه نظريه، يو نظام او يو ډول معيارونه ولري.

همـدا رنګـه لکـه چـې پـه پيـل کـې مـو يادونـه وکـړه، دښـمن د خپلـو افکـارو او مفاهيمو د راصادرولو لړۍ دومره په قوت سره پيل کړې او مسلمانو ټولنو تـه يـې تر هغه وختـه ورتلقيـن کوي چې دغـه پـردې مفـاهيم ورتـه بيـا پـردي نـه بلکـې خپـل ښکاره شي، او مخالفت يې ونـه کـوي.او کـه بـل څوك يـې هم پـه وړانـدې راپورتـه شي نو دوئ ته دې بد ښکاره شي.

مـوږ تـه د مسـلمانانو پـه حيـث ضـروري ده چـې د نظريـاتو پـه منلـو او او د اصطلاحاتو په کارولو کې ډېر دقيق او ډېر محتـاط و اوسو،ځکه چې الله تعـالی پدې هکله په قرآن کريم کې مسمانان د کفارو د اصطلاتو لـه کـارولو منع کـړي دي، او ورتـه يـې فرمـايلي چـې د (راعنـا) د کلمـې پـر ځـای د (انظرنـا) کلمـه ووايـاست، ځکه چې لومړۍ کلمه د يهودو (اصطلاح) وه او بد مقصد يـې درلـود ، که څه هم چې په ظاهره يې له دوهمې سره په معنی کې فرق نه درلود .

## د (مورچل) مجله په افغانستان کی د غرب د ماتې عینی شاهد او د روان جهادي تاریخ امین

د صلیبی غرب د یرغل په مقابل کې د جهاد بېلابېل عسکري، فرهنګي، فکري او سیاسی مورچلونه خپل نقش لري چې د هر مورچل ساتونکي د دښمن په مقابل کې په پوره صبر، استقامت او درایت آګاهانه مقابله کوي، او د غرب په لاس د افغانستان د مستعمره کېدلو د مخنیوي او په هغه کې د اسلامي نظام د قائمولو لپاره د دې هېواد مسلمان بچیان د جهاد او قربانۍ په میدان کې د دښمن مقابلې ته تیاروي.

که له یوه لوري مجاهدینو دښمن په پوځي ډګر کې له ماتې سره مخ کړ او دا دی اوس یې تېښتې ته اړ کړی، نو له بل لوري د جهاد په صف کې د قلم او فرهنګ د سنګر خاوندانو د جهاد د فکري، فرهنګي، مطبوعاتي او د رواني (روحي) جګړې مورچلونه داسې وپالل او د مقابلې لپاره یې تاوده وساتل چې دښمن یې د سلګونو راډیوګانو، تلویزونونو، انټرنټي ویبسایټونو او د زرګونو کرایي او پردي پالو لیکوالانو، شاعرانو، مسلکي او نامسلکي ژورنالیستانو او په سلګونو د فکري، فرهنګي او تحقیقاتي مراکزو په لرلو مقابله ونه کړای شوه.

د جهاد د مطبوعاتو فکري او فرهنګي فعالیتونو د الله تعالی په فضل او بیا د دې فعالیتونو د ترسره کوونکو او منظموونکو مجاهدینو په مټ وکولی شول چې د یوه داسې نړیوال کفري ائتلاف په مقابل کی د ملت ځوانان د مقابلې لپاره ودروي چې په ملیاردونو ډالره یې زمونږ د مسلمان ولس د تسخیرولو په لاره کی مصرف کړل.

معاصرو جهادي مطبوعاتو هم د جګړې مشروعیت او حقانیت ثابت کړ، او هم یې د مقابلې لپاره د یو بادرکه ځوان نسل روزنه وکړه. هم یې د دښمن توطیې رسوا کړې، او هم یې خپل ولس او خپلو مجاهدینو ته په

پراخه پيمانه د اسلام فکري ادبيات وړاندې کړل، او پداسې حال کې يې دکفري نړۍ له مطبوعاتي جريانونو سره سيالي وکړه چې وسائل، مادي امکانات، مسلکي تجربه او دکار لپاره د اطمينان او استقرار فضا يې د دښمن له وسائلو او مجهز وضعيت سره د مقايسې وړ نه وو.

د جهادي مطبوعاتو په کتار کې چې په خاص ډول د (مورچل) جهادي مجلې کوم ستر مسؤوليت تر سره کړ هغه يو بې مثاله مسؤليت دی چې تر پېړيو پېړيو به يې اثر پدې خاوره او ولس کې پاتې وي، او د راتلونکو نسلونو مجاهدين، مبارزين او مؤرّخين به يې د احسان پوروړي وي.

د (مورچل مجلې) د دې تر څنګ چې خپل ولس او خپلو مجاهدينو ته يې دينې، جهادي او اجتماعي مفيد مضامين وړاندې کړل تر ټولو مهم او ستر کار يې دا وکړ چې د غرب په خلاف د وران جهاد په جريان کې يې د ټولو جهادي علمياتو تفصيلات په مستند ډول په خپله غېږه کې داسې خوندي کړل چې د هر عمليات ځای، وخت، حجم، دښمن ته ور اووښتي تلفات او په عملياتو پورې اړوند نور جزئيات ورکې په دقيق ډول توثيق شوي دي.

(مورچل مجلې) د روان جهاد د پېښو او پوځي جريانونو د عيني شاهد په توګه د راتلونکو نسلونو تاريخ ليکونکو، فرهنګيانو، څېړونکو او مؤلفينو ته داسې يو باعتباره او مستند آرشيف پرېښود چې د امريکا د جناياتو او د دې ولس د اسلامي مقاومت هر اړخيز تصوير ورکې په راڼه ډول داسې خوندي شوی چې هېڅ معاند به ورڅخه انکار ونه کړای شي.

د مورچل جهادي مجلې په حقيقت کې د يوه ستر مجهز تحقيقاتي مرکز کار تر سره کړی، او د هېواد له ګوټ ګوټ څخه يې د دې لويې جګړې د عملياتو ټول جزئيات يوازې د يو څو تنو قلمي او مطبوعاتي سنګر دارانو په لاس په دومره لويه پيمانه راټول کړي او توثيق کړي دي چې که دا کار کومې غربې تحقيقاتي ادارې کولای نو بايد په سلګونو مامورين، ښه ډېر

اتصالاتي او ترانسپورتي وسائل او د هر کال لپاره په لسګونو میلیونه ډالره بودیجه يې لرلی.
د دې لوی او ستومانوونکي کار په دقیق او منظم ډول ترسره کول پدې دلالت کوي چې د دې (مورچل) ساتلونکي د خپل کار په جهادي، علمي او تاریخي اهمیت پوه دي، او پدې لار کې يې هرې سختۍ او ابتلا ته خپله د صبر او استقامت اوږه ورکړې ده.
د دې (مورچل) ساتونکي که له یوې خوا ډېر ډېر د تقدیر وړ او د دعاوو مستحق دي نو له بلې خوا د دوستانو له مشورو مستغني او د ناقدانو له نیوکو پورته هم ندي. نو په همدې اساس زه هم د داسې یو چا په حیث چې د جهاد جریانات او د هغو مطبوعاتي بهیر څارم چې پدې لړ کې د(مورچل) مجله هم په دقت سره لولم او کله ناکله یو نیمه لیکنه هم ورته کووم دې (مورچل) او د هغه ساتونکو ته لاندې څو یادونې او سپارښتنې وړاندې کووم :
۱ – سره لدې چې د (مورچل) مجله د روان جهاد د پېښو او جریانونو د تاریخ په توثیق او تدوین کې ستر مسؤولیت ادا کوي، خو بیاهم (مورچل) هسې لکه چې له نامه يې ښکاري یوه (عسکري) مجله نه بریښي. او دا ځکه چې د مجلې د مضامینو په برخه کې پوځي مضامین یا نشته او یا هم ورکې کله ناکله په ډېر سطحي ډول یو څه راغلي وي.
د مجلې د مضامینو په برخه کې زیاته برخه فقهي، عمومي دیني، تاریخي او سیاسي مضامین وي، او دا پداسې حال کې چې د اسلامي امارت فرهنګي کمیسیون د همدغه ډول مضامینو لپاره درې نورې د(څرك)، (شهامت) او (حقیقت) په نومونو مجلې هم لري.
ښه به دا وي چې د (مورچل) مجله لکه چې له نامه يې ښکاري یوه پوځي تعلیمي مجله وي، او ډېر اهتمام يې د اسلام پر پوځي تاریخ، د اسلام د پوځي فاتحینو او د هغوئ پر جنګي کارنامو، پر پوځي، امنیتي او استخباراتي علومو او فعالیتونو، پوځي استحکام، د عسکري پېښو او

جنګي عملیاتو پر پوځي تحلیل، په ولس کې د مقاومت د فرصتونو او وړتیاوو پر پیدا کولو او غښتلي کولو، مجاهدینو ته د جنګي تکتیك او تخنیکي مهارتونو په وربښودلو، د دښمن پر هراړخیزې پېژندګلوۍ، د دښمن د جنګي او ستراتیژیکو انګیزو او مقاصدو پر تشخیص، په هېواد کې د دښمن د داخلي ملګرو پر معرفۍ او د هغوئ د هویت او د هغوئ د مقاصدو د ماهیت پر تشریح، مجاهدینو ته یې د خپل قوت او د دښمن د ضعف د نقطو پر وربښودلو، د رواني (روحي) جګړې پر اسالیبو او د تبلیغاتي او فکري جګړې لپاره په مجاهدینو کې د وړتیا وو پر پیدا کولو او پاللو وي.

د دغه ډول مضامینو او موادو د برابرولو لپاره باید له پوځي ماهرینو، پوځي ارواپوهانو، د عسکري علومو له استادانو او د حربي پوهنتونو له تعلیمي نصابونو څخه استفاده وشي.

دا چې مجاهدین اوس پداسې وضعیت کې ندي چې د پوځي روزنې لپاره دې حربي پوهنتونونه، پوځي اکاډمۍ او تعلیمي غونډونه ولري، نو په کار ده چې د پوځي روزنې دغه تشه تر یوه حده که څه هم چې په تیوریك شکل هم وي د (مورچل) مجلې له لارې ډکه شي. پدې کار سره به له یوې خوا په پراخه پیمانه په مجاهدینو او د ولس په ځوانانو کې د دښمن په مقابل کې پوځي وړتیا پیدا شي، او له بل لوري به (مورچل) یوازې د جهاد د تاریخ د توثیق یوه مجله نه وي، بلکې په رښتیا به هم یو (عسکري مورچل) او روزنیزه مجله وي.

۲ - همدا اوس د اسلامي نړۍ له بېلابېلو سیمو مجاهدین په انټرنیټ کې ډېرې قوې عسکري خپرونې او مجلې لري، که د مورچل د مجلې مسؤلین د همدغو جهادي عسکري مجلو له چلوونکو سره خپلې تعلیمي او مطبوعاتي هڅې همغږې کړي او د هغو له لیکوالانو څخه د پوځي علومو او مضامینو په ډګر کې استفاده وکړي نو مورچل به په لږ وخت کې دغه تشه هم په ښه ډول ډکه کړای شي.

د امت علماء او د هغوئ پوځي ليکنې او نظريات د امت مشترکه هستي ده چې بايد په هر هېواد کې له هغو څخه د هماغه هېواد د حالاتو او تقاضاوو مطابق کار واخيستل شي. همدغه کار په طب، صنعت ، تخنيک او نورو ټولو ډگرونو کې په نړۍ کې دود دی.

۳ – دا چې د (مورچل) مجلې د امريکايي او نورو غربي يرغلگرو په خلاف د مجاهدينو په لسگونو زره عمليات په دقيق ډول په خپله غېږه کې خوندي کړي دي نو د دغو معلوماتو د لا ډېر مؤثريت او خونديتوب لپاره مې د دې مورچل سنگردارانو ته دا وړانديز دی چې د مورچل د مجلې ټولو گڼو د جهادي عملياتو د خبرونو د برخې محتوی چې تيار په کمپيوټر کې ورسره شته په يوه منظم او علمي شکل چې د هر ولايت برخه ورکې جلا را ټوله شوې او د تاريخونو تسلسل يې د کلونو او مياشتو پر اساس رعايت شوی وي په يوه يا څو جلدونو کې هم چاپ کړي او هم يې د کمپيوټري برقي کتاب E book په ډول ترتيب کړي، او کېدای شي دې کتاب ته (د يرغل او مورچل) او يا کوم بل مناسب نوم ورکړ شي، نوېدې کار سره به د دې ستر جهاد د مورچل ټولې لاسته راوړنې په کتابي شکل خوندي شي، او دغه کتاب به ديو لوی علمي او تاريخي سنداو مأخذ په ډول د افغانانو د جهاد او د غرب د ماتې عيني شاهد وي. کتاب به کتابخانو او علمي مجامعو ته لاره پيدا کړي، او د راتلونکو ډېرو نسلونو لپاره به د پرديو په مقابل کې د مقابلې يو سرمشق او الهام ببنونکی مرجع وي.

موږ که پرون هم د بېلابېلو تنظيمي سياسي مجلو ترڅنگ دغه ډول يو د جهاد د سترو پېښو واحد مورچل درلودلای نو نن به مو د ولس له حافظې څخه د روسانو او کمونستانو په مقابل د ستر جهاد د سلکونو زره سترو کارنامو تاريخونه نه وتل، او نه به هم د امريکا په لاس د جوړې ادارې د تعليمي نصاب او اساسي قانون په مقدموکې هغه ستر جهاد د يوه (ناورين) او (تېرو ناخوالو) په نامه نه يادېدل. او نه به هم نن غرب پلوو

سیکولرو د دې ولس د دېرشو کلونو جهادونه او قربانۍ د تعلیمي نصاب له تاریخه په آسانه حذفولی شوای.
د پرونۍ جهاد د تاریخونو او سترو کارونامو د خوندي کولو لپاره د هغه جهاد په پای کې ډېرو (استادانو!!؟)،(فرهنګیانو!!؟) او مشهورو تنظیمي لیکوالانو له اسلامي مؤسسو څخه (د جهادي دائرة المعارف) د جوړولو په نامه ښې ډېرې پیسې (نوش جان ) کړې، خو په عمل کې یې نه یوازې دا چې څه ونه کړل، بلکې لاړل له یوې مخې د غربیانو لخوا په جوړو شویو مؤسساتو، تحقیقاتي مراکزو او نشراتي ادارو کې منسجم شول، او اوس د هغوئ لپاره په کار اخته دي.
نو د دې لپاره چې دغه ترخه تجربه یو ځل بیا تکرار نشي ښه به داوي چې د دې ستر جهاد سترې کارنامې په خپل لاس په داسې حال کې په خپله خوندي کړو چې لا تر اوسه د غرب او نورو مغرضو کړیو د تحریف او تبدیل ګوتې ندې ور اوږدې شوي.
د اسلامي امارت فرهنګي کمیسون او د (مورچل) سنګرداران که دغه کار هم همداسې په امانت او متانت وکړي لکه چې دغه تاریخونه او پېښې یې راټولې کړې او توثیق کړې دي نو د دې جهاد له عظیم تاریخ سره به یې ستر احسان کړی وي.
۴- دا چې د (مورچل) مجلې لا له پخوا څخه په خپله غېږ کې د (انځوریز مورچل) په نامه د مجاهدینو د بریاوو او د دښمن دماتې واقعي صحنې خوندي کړې دي نو په کار ده چې د مورچل اداره او یا هم فرهنګي کمیسیون له همدغو عکسونو سره د دښمن د ماتې او د هغه د تلفاتو د صحنو په زرګونو نور عکسونه ملګري کړي، او هم د هرې صحنې د وضاحت لپاره د هغې د اړوندو معلوماتو مختصر نوټ ورسره ولیکي او بیا یې پر ښه کاغذ په رنګین او مجلد ډول په څو ژبو کې چاپ کړي او هم یې په انټرنټ کې خپور کړي نو دا به د جهاد د بریاوو او د دښمن د ماتې یو داسې تاریخي او مستند شاهد وي چې هېڅوک به انکار ورڅخه نشي

کولی. دا کار د دې ترڅنګ چې خپل خاص معنوي او فرهنګي ارزښت لري په افغانستان، سیمه او نړۍ کې د خرڅلاو ښه مارکېټ هم لرلی شي.
په پای کی د دې مورچل پالونکو، ساتونکو او ټولو سنګردارانو ته له الله تعالی څخه د مزید توفیق غوښتونکی یم، الله تعالی دې نور هم د دوئ په نیتونو کې اخلاص، په عزم کې رسوخ، په کار کې برکت او په قلم کې زور او تاثیر پیدا کړي. آمین.

# د جهادي خپرونو پر مفاهيمو د نوي غور ضرورت

پر افغانستان د امريکا تر بيرغ لاندې د غرب يرغل يوازې د افغانانو پر خاوره او سياسي استقلال يرغل ندی، بلکې دا يو هر اړخيز يرغل دی چې د خاورې د نيولو او د افغانانو د سياسي استقلال د سلبولو تر څنګ د افغانانو دين، فکر، اخلاق، ټولنيز جوړښت، ټولنيز ارزښتونه او د آزادۍ غوښتنې او آزادۍ پالنې روحيه يې هم تر ګوزار لاندې نيولې ده، ځکه چې يرغلګر پوهېږي چې همدغه ديني، اخلاقي او ټوليز ارزښتونه دي چې تل يې افغانان د دښمن په خلاف د مقابلې په صف کې درولي دي.
پدې جګړه کې چې د خاورې آزادول او د سياسي استقلال بېرته ګټل له افغانانو څومره هلې ځلې او قربانۍ غواړي له دين، فرهنګ او ټولنيزو ارزښتونو څخه دفاع له افغانانو څخه تر هغو ډېرې علمي، فکري، فرهنګي او نورې لاړښوونکې او څېړنيزې هلې ځلې او ستړياوې غواړي. ځکه چې زموږ جګړه د کوم شډل او بې فرهنګه دښمن په خلاف نه ده، بلکې موږ د داسې دښمن په خلاف په جګړه اخته يو چې د خپل علم، فکر، فرهنګ، ټکنالوژۍ او پراخو او دقيقو پلانونو او سياستونو په زور يې تقريباً ټوله نړۍ لاندې کړې ده. له همدې امله بايد زموږ جهادي مطبوعات او زموږ فکري ادبيات زموږ د جهاد او مبارزې د لارې په لارويانو کې دا وړتيا پيدا کړي چې هم د جګړې په ډګر کې په مېړانه او شعوري ډول د دښمن مقابله وکړای شي، او هم په پوهه، مهربانۍ او حکمت خپل ولس په ځان پسې روان کړای شي.
زموږ مطبوعات او خپرونې بايد د اسلامي نړۍ په خلاف د روانې هر اړخيزې صليبي جګړې په تر ټولو خطرناکې مرحلې کې د جهاد بهير لا ځپاندکړي، او د مجاهدينو د لارښوونې په مقصد هغوئ ته داسې خپرونې

ولري چې د هغوئ ارمانونه، تګلاره او اهداف ورته روښانه کړي، او له دښمن سره د تعامل لپاره داسې لاربنود ورته وړاندې کړي چې د (ولاء او براء) ټولې غوښتنې او احکام ورکې په راڼه ډول بیان شوې وي.
دغه ډول خپرونې له انحراف څخه د جهاد او مجاهدینو د ژغورلو وسیله او د جهاد د لارویانو او مؤمن ولس شدید ضرورت دی، ځکه چې په ټوله نړۍ کې د دښمن میډیا او مطبوعاتو د امریکا او نړیوال صهیونیزم د طرحه شوو پلانونو پر اساس د اسلام او جهاد د مفاهیمو په تحریف پسې راخیستې ده.
غربي او په اسلامي هېوادونو کې په غرب پورې تړلې میډیا او مطبوعات ټول هڅه کوي چې د اسلام مفاهیم داسې تحریف، تفسیر او تعبیر کړي چې له مسیحیت، مادیت، لیبرالیزم او ډیموکراسیۍ سره یې هېڅ توپیر پاتې نشي. او جهاد چې په اسلام کې تر ټولو لوړ عبادت (ذورة سنام الإسلام) دی په (تروریزم) او (ورانکارۍ) بدنام کړي، تر څو د اسلامي امت ځوانان پر دغه عبادت بې باوره او له خپل امت څخه د دفاع کولو د مسؤولیت له احساس څخه یې د انحرافونو، مادیاتو او شهوتونو په لور بې لارې کړي.
غرب د مسلمانانو په خلاف په فکري جګړې او د اسلام او جهاد د شرعي مفاهیمو په تحریف کې یوازې نه دی، بلکې ډېر شرعي علم ته منسوب د اسلام له روح څخه ناخبره ملایان، مفتیان، پیران، د مدارسو مسؤولین او تش په نامه د اسلامي تنظیمونو منسوبین یې هم له ځان سره ملګري کړي دي، او د هغوئ په وسیله د امت ځوانان او عام ولس د مجاهدینو له مرستې او ملاتړ څخه ایساروي، تر څو د یرغلګرو کفارو په مقابل کې جنګېدونکي مجاهدین د مسلمان امت له ملاتړ څخه محروم کړي.
د دښمنانو له طرفه د اسلامي او جهادي مفاهیمو د تحریف د مخنیوي ترڅنګ دېته هم شدید ضرورت لیدل کېږي چې پخپله مجاهدین او د اسلامي نظام د قائمولو لپاره مبارزین د اسلام په حقیقت ځانونه ښه پوه

کړي، مجاهدینو ته د جهاد شرعي حیثیت واضح کړای شي، او د جهاد او فکري مبارزې د هرې مرحلې اهداف او تګلارې ورته تشخیص او بیان کړای شي، ترڅو په پوره بصیرت او درایت د دښمن هر اړخیزه مقابله وکړي، او د حالاتو لوړ او ځوړ هغوئ د جهاد له دوام څخه ستومانه نه کړي.

زموږ جهادي خپرونې باید له سطحیت څخه ووځي او د لاندې اهدافو او مقاصدو لپاره ښه پراخه او ژور کار وکړي:

۱ – جهادي خپرونې باید کوښښ وکړي چې افغان مجاهد ملت د اسلام او جهاد له حقیقي مفاهیمو او مقاصدو نور هم ښه باخبره وساتي، او پدې هکله د اسلام د دښمنانو لخوا د اسلامي شریعت او جهاد په خلاف راولاړو شوو شکوکو او شبهاتو ته شرعي علمي او منطقي ځواب ووایي. ځکه چې دښمنان هڅه کوي د ډول ډول وسوسو او شبهاتو په مطرح کولو نوی نسل د اسلامي شریعت د تطبیق او د جهاد د فریضې په اړه شکمن کړي، او بالعکس یې له دښمن سره (سولې)، (د جهاد پرېښودو)، (ډیموکراسۍ) او نورو غربي افکارو او نظریاتو د وربللو له لارې د اسلام په مخالفت کې یې په خپل صف کې ودروي.

۲ – جهادي خپرونې باید نوي نسل ته د دې حقیقت وضاحت وکړي چې جهاد د الله ﷻ له لوري یوه لویه فریضه ده چې مسلمانان شرعاً د هغې په ترسره کولو مکلف دي. او هم باید دا حقیقت خلکو ته څرګند کړي چې مسلمانان ټول یو امت دي او اسلامي نړۍ د هغوئ مشترک کور دی چې له هغه څخه دفاع او په هغه کې د اسلام د نظام حاکمول د ټولو مسلمانانو مشترک مسؤولیت دی، او پر همدې اساس د ټولې نړۍ ریښتني مجاهدین په خپلو کې سره ورونه، د یوه هدف خاوندان او د یوې لارې لارویان دي.

ټولې هغه هڅې چې مسلمانان یو له بله سره بېلوي، او ټول هغه استعماري پلانونه چې اسلامي نړۍ یې وېشلې او ټوټه ټوټه کړې ده په حقیقت کې د اسلام او مسلمانانو د له منځه وړلو اساسي عوامل دي چې

مسلمانانو ته د هېڅ اعتبار وړ نه دي، او د هغو دله منځه وړلو لپاره هم آهنګ کوښښونه یو شرعي ضرورت او د وخت مبرمه تقاضا ده.
د اسلامي نړۍ مجاهدین شرعاً پدې مکلف دي چې د نړۍ په هر ګوټ کې د خپلو مظلومو او مستضعفو مسلمانو وروڼو مرستې ته د امکان تر حده ځان ور ورسوي او د سیمې مجاهدین هم باید ورغلي مجاهدین د حالاتو او امکاناتو په پام کې نیولو سره سم په خپلو صفونو کې تنظیم کړي. دا داسې یو شرعي حکم دی چې تر ټولو سیاسي او سیمه ییزو مصالحو باید لوړ وګڼل شي، الله ﷻ د مسلمانانو د دغه شرعي مسؤولیت په اړه فرمايي:﴿ وَإِنِ ٱسۡتَنصَرُوكُمۡ فِي ٱلدِّينِ فَعَلَيۡكُمُ ٱلنَّصۡرُ إِلَّا عَلَىٰ قَوۡمِۭ بَيۡنَكُمۡ وَبَيۡنَهُم مِّيثَٰقٞۗ ﴾الأنفال: ۷۲.
ژباړه: (او که چېرې مؤمنان له تاسې څخه په دین کې مرسته وغواړي نو پر تاسو د هغوئ مرسته کول فرض دي، خو د هغه قوم په مقابل کې نه چې ستاسې او د هغوئ تر منځ کوم د جګړې نه کولو تړون موجود وي).
رسول الله ﷺ هم فرمايي:
**(المسلم أخو المسلم، لايخونه، ولايكذبه، ولايخذله، ولايظلمه، ولايُسلمه، كل المسلم على المسلم حرام، عِرضه، وماله، ودمه، التقوى هاهنا ــ وأشار إلى القلب ــ بحسب امرىء من الشر أن يحقر أخاه المسلم) رواه مسلم.**
ژباړه: (مسلمان د مسلمان ورور دی، نه به خیانت ورسره کوي، نه به درواغ ورته وايي، نه به یې دښمن ته یوازې پرېږدي، نه به ظلم ورباندې کوي او نه به یې دښمن ته ورسپاري. د مسلمان هر څه پر بل مسلمان حرام دي، ناموس یې، مال یې او وینه یې. تقوی دلته ده – او بیا یې زړه ته اشاره وکړه – د یو چا لپاره همدا شر بس دی چې خپل مسلمان ورور سپک وګڼي).

دښمنان غواړي مجاهدين د قومونو، سيمو، فقهي مذاهبو او د فکر پر بنسټ پر بېلابېلو ډلو ووېشي، اهداف او توجهات يې يو له بل څخه بېل معرفي کړي، پداسې حال کې چې غربيان بيا په خپله د يو ځای کېدلو او په خپلو منځونو کې د سرحدونو د له منځه وړلو په لور ور روان دي. شرقي او غربي اروپا چې يو وخت يوه له بلې سره په اوږدې جګړې کې اخته وې اوس يې تقريباً ټول اروپايي هېوادونه په يوه (اروپايي اتحاد) کې سره يوځای شوي چې مشترك پارلمان، مشترکه سکه، مشترك پوځي تړون او د اسلام په خلاف مشترك موقف لري، او په مشترك ډول په ټوله اسلامي نړۍ کې د حقيقي مسلمانانو په خلاف جنګېږي.

۳ - جهادي خپرونې بايد مسلمانان وهڅوي چې په ټولې نړۍ کې د مسلمانانوله ملي او نړيوالو قضاياؤ څخه دفاع وکړي، او هم په افغانستان او سيمه کې د ټولو هغو سياسي، فکري، اجتماعي، اقتصادي، ادبي، فرهنګي او نورو تشکيلاتو په اړه چې د اسلام دښمنو ځواکونو او هېوادونو له لوري رامنځته شوي خپلو لوستونکو ته کره معلومات وړاندې کړي، او د هغوئ له هغو پروګرامونو، توطيو او فعاليتونو خپل مسلمان ولس خبر کړي چې له اسلام او اسلامي نظام سره يې د مخالفت لپاره دلته په کار اچولي دي، ترڅو د پرديو لخوا دغه ګومارل شوي (سيکولر) عناصر مسلمانانو ته رسوا شي، او د تباه کوونکو فعاليتونو مخه يې ونيول شي.او دا ځکه چې نن کفارو ټوله اسلامي نړۍ د هغو اشخاصو، مؤسساتو، حکومتونو او فکري جهتونو په مټ د ځان لپاره تسخير کړې چې ځانونه مسلمان او د اسلامې امت برخه بولي خو کار د کفارو لپاره کوي.

۴- جهادي خپرونې بايد اسلامي ادب ته د ودې ورکولو او د ځوانو ليکوالو، شاعرانو، اديبانو او مفکرينو د استعدادونو د غوړېدا لپاره د زمينې د برابرولو په مقصد په پراخ ډول کار کول له خپلو مهمو اهدافو څخه وګڼي، او د ځوانو استعدادونو پر مخ د مسلمان ولس د احساساتو او

ارمانونو د اظهاراو بیان جرأتمن منبرونه رامنځته کړي، ترڅو وکولای شي د منحرفو، پردي پالو، خرڅو شویو، کرایي، مبتذلواو د غرب لخوا د توظیف شویو شاعرانو او لیکوالو د زهر شیندلو مخه ونیسي، او مسلمانه ټولنه د هغوئ د ترجمه شویو، وارداتي او زهرجنو لیکنو له منفي تأثیره وژغوري.

**۵**- د مسلمانو ټولنو پر فکري حریم د غرب د فرهنګي یرغل مقابله هم باید د جهادي خپرونو له مهمو اهدافو څخه وګڼله شي، او پدې ډګر کې باید د اسلامي فکر بډایه او اصیل فکري ادبیات د ځوان نسل مخې ته کېښودل شي ترڅو د غرب د سیکولرو او الحاد ځپلیو وارداتي افکارو او نظریاتو مقابله وکړای شي.

همدا اوس په افغانستان کې د اشغالګر صلیبي اتحاد هر شریك هېواد خپلو اهدافو ته د رسېدلو او افغانانو ته د خپل فرهنګ د راصادرولو په مقصد په مرکز او بېلابېلو ولایاتو کې په لسګونو مطبوعاتي ادارې، راډیوګانې او تلویزونونه جوړ کړي، او په زرګونو لیکوالان، خبریالان او د قلم خاوندان یې ورکې په کار ګومارلي دي، ترڅو د افغانستان په فکري او فرهنګي اشغال کې د یرغلګرو مرسته وکړي. دغه خرڅ شوي لیکوالان او د رسنیواو مطبوعاتو خاوندان پداسې یو لوی خیانت او ملي جرم کې اخته دي چې ضرر یې په افغانستان کې اسلام او مسلمانانو ته د صلیبیانو تر پوځي جګړې ډېر خطرناك دی.

جهادي خپرونې باید هڅه وکړي چې په خپل فکري او مطبوعاتي جهاد د هېواد مطبوعاتي ډګر چې د پردیو لخوا اشغال شوی بېرته ازاد کړي، او ملت ته هغه مفاهیم او معلومات وړاندې کړي چې د مؤمن ملت د آزادۍ روحیه تمثیل کړي، دیني، ملي، تاریخي او اجتماعي ارزښتونه یې خوندي کړي، او د راتلونکي لپاره د اسلامي نظام تر سیوري لاندې د آزادۍ، خپلواکۍ، پرمختګ او سالمې پوهې په لوري د هېواد د بچیانو لارښوونه وکړي.

د جهادي خپرونو په صف کې باید ټولو هغو پوهو، دردمنو با احساسه لیکوالو، مطبوعاتیانو، ناشرانو، د اسلام د خپرولو په لاړ کې پانګوونکو او د فکر او شرعي علم خاوندانو ته ځای ورکړ شي چې مسلمانان ټول یو امت او اسلامي نړۍ د هغوي مشترك کور ګڼي، او له هغه څخه دفاع او په هغه کې د اسلامي نظام حاکمول د ټولو مسلمانانو مشترکه وظیفه بولې، او په ټولې نړۍ کې د اسلام له ارزښتونوڅخه دفاع د خپل شرعي مسؤولیت په حیث مني.
پرون چې د کمونیزم په مقابل کې مسلمانانو یو جهادي موقف درلود او له منطقوي، ژبنیو او مذهبي توپیرونو پرته یې د یوه امت په څېر د دښمن په خلاف جهاد کاوو څنګه یې هم افغانستان او هم نړۍ د کمونیزم له شر څخه خلاصه کړه! که نن هم د نړیوال صلیبي یرغل په مقابل کې په ټوله نړۍ کې یو جهادي دریځ ولرو او په همغږۍ د دښمن مقابله وکړو، له تېرو ترخو تجربو درس واخلو او د راتلونکي لپاره داسې روښانه تګلاره ولرو چې مسلمانان هیله من او پر ځان باوري کړي نو لیرې نده چې اسلامي نړۍ به د غرب له شر څخه هم خلاصه شي.
۶- جهادي خپرونې باید د ورځنیو خبرونو، تبصرو، مضامینو او سیاسي تحلیلونو ترڅنګ د کفر او ګمراهۍ د معاصرو شکلونو لکه (ډیموکراسۍ)، (لیبرالیزم)، (وضعیقوانینو)، (نشنلیزم)، (وطنیت)، (هیومنیزم)، (ګلوبلایزیشن)، (د ښځو غربي ډوله آزادي)، (غربي ډوله بشري حقوق)، (سیکولریزم) او د نورو کفري نظریاتو څېړنې او نقد ته هم پوره توجه وکړي، ځکه چې غرب په اسلامي نړۍ کې د همدغو نظریاتو د خپرولو له لارې پر اسلام د ملیونونو مسلمانانو باور کمزوری کړی، او هغوئ یې په خپل ملاتړ د ریښتیني اسلام په خلاف د جګړې په ډګر کې درولي دي، او د همدوئ په لاس یې د اسلامي شریعت د پلي کېدو مخنیوی کړی.

۷- د جګړې له ډګره د غربي قواوو تېښته باید په موږ کې دا کاذبه خوشباوري او غرور پیدا نه کړي چې جګړه مو وګټله او نور به نو خیر او خیریت وي او د سترګو په رپ کې به موږ اسلامي نظام قائم کړای شو. د تېرو دیارلسو کلونو جګړه چې په نتیجه یې موږ دښمن تېښتې ته اړ کړ یوازې د جهاد یوه مرحله وه. تر دې وروسته د جهاد نورې مهمې مرحلې پاتې دي، دلته دښمن دومره چورګوړې وېستلي او دومره هګۍ یې اچولې دي چې راتلونکي څو نسله به یې د اسلامي نظام د قائمېدلو د مخنیوي هڅو ته په بېلابېلو شکلونو ادامه ورکوي. غرب به په فکري، سیاسي، اقتصادي او تبلیغاتي ډګرونو کې د هغوئ تر شا درېږي او دوئ به په ولس کې د خپلو ریښو د غځولو او خپلو نظراتو د خپرولو لپاره په پراخه پیمانه کار ته دوام ورکوي.
د اسلامي نظام د قائمولو او چلولو لپاره د شخصیتونو روزل، د اسلام حقیقي مفاهیم خلکو ته رسول، په فکري او تعلیمي لحاظ د وطن بیا ودانول، په بېلابېلو ډولونو سره وېشل شوی ولس بېرته سره یو کول، ښه حکومتداري رامنځته کول، هېواد په اقتصادي لحاظ پر خپلو پښو درول، د ژوند د ټولو چارو او ابعادو لپاره په معاصره بڼه د اسلامي قوانینو برابرول او بیا د هغو پلي کول، د بې دینۍ، سیکولریزم، غربپالنې، بدعتونو، خرافاتو او وضعي قوانینو له منځه وړل او په زرګونو نور لوی لوی کارونه ټول زموږ د راتلونکې مرحلې د جهاد پړاوونه دي چې باید د ترسره کولو لپاره یې په ځان کې وړتیا پیداکړو.
که د یادو شویو کارونو د ترسره کولو لپاره په ځان کې واقعي وړتیا پیدا نه کړو او یوازې په شعارونو او دعوو اکتفا وکړو، نو پدې کې هېڅ شك نشته چې د روان جهاد لاسته راوړنې به مو بېرته له لاسه ځي، ځکه چې دښمن مو تر جګړې د وروسته مرحلې لپاره پوره تیاری لري. نو په کار ده چې جهادي مطبوعات مو دغو ټولو مفاهیمو ته پوره پام وکړي، او په پراخه پیماته یې مجاهدینو ته په مسلسل ډول ورتلقین کړي.

## اعداد يو شرعي مسؤوليت او جهادي ضرورت

په اسلام کې چې د جهاد عبادت ته (ذورة سنام الاسلام) ويل شوي او د لوړې مرتبې عبادت ګڼل شوی دا له دې امله ده چې په جهاد د اسلام ساتنه کېږي، د جهاد په وسيله هغه خنډونه ليرې کېږي چې د الله تعالی بنده ګانو ته د حق د دعوت د ورسېدلو مخنيوی کوي، د هغه په وسيله د ظالمانو او مفسدينو د ظلم او فساد مخه نيول کېږي ، او د همدی جهاد په وسيله د اسلامي امت معنوي ارزښتونه او زمکني سرحدونه خوندي کېږي.

خو جهاد په هغه وخت کې خپل پوره افاديت ښيي چې په شرعي ډول ترسره شي، او په پوځي، معنوي او روحي لحاظ د هغه لپاره پوره تياری ونيول شي.

که له يوې خوا الله تعالی مسلمانانو ته د کفر او فتنې په مقابل کی د جهاد د کولو امر کړی او فرمايلي دي: (**وَقَاتِلُوهُمْ حَتَّىٰ لاَ تَكُونَ فِتْنَةٌ وَيَكُونَ الدِّينُ كُلُّهُ لِلَّهِ**)الأنفال/٣٩.( تر هغه د کافرانو په خلاف وجنګېږئ چې فتنه (شرك) له منځه ولاړ شي او يوازې د الله دين حاکم شي). نو له بل لوري يې مسلمانانو ته د جهاد لپاره د تياري د نيولو او د اعداد دفريضې د ادا کولوامر هم کړی او فرمايلي يې دي:(وأعدوا لهم مااستطعتم من قوة و من رباط الخيل ترهبون به عدوالله وعدوكم وآخرين من دونهم لاتعلمونهم الله يعلمهم) الأنفال/ ٦٠.

ترجمه:(څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زين کړي اسونه تيار کړئ چې د الله دښمنان، خپل دښمنان او او نور هغه دښمنان پرې وويروئ چې تاسې يې نه پېژنئ الله يې پېژني).

دا چې د اسلام دين د الله تعالی ورستی حق دين دی او مسلمانان يی د نړی خلکو ته پر رسولو او د هغه د رسولو پر لاره د پرتو خنډونو پر ليرې

کولو مکلف دي نو ځکه خو باید دا امت د تل لپاره یو قوي، مستعد، او متحرك امت وي، او د دين د رسولو او له هغه څخه د دفاع په لاره کې باید د هر ډول مادي او معنوي وړتیاوو درلودونکی او د هغه لپاره د قربانۍ ورکولو ته تیار وي.

که له یوې خوا مسلمانان انسانانو ته د الله تعالی د دین په ور رسولو مکلف دي او د دی کار لپاره له تېرو څه باندې څوارلس سوه کلونو په مسلسل جدوجهد کې رارون او له ډېرو لوړو او ژورو راتېر شوي او د عروج او تنزل پړاونه یې وهلي دي نو له بل لوري د شیطان پلویانو او له الله تعالی سره په دښمنۍ اخته خلکو هم د تل لپاره د اسلام د خپرېدو د مخنیوي او د مسلمانانو د له منځه وړلو او یا کمزوري کولو لپاره خپلې هر ډول هڅې کړې او په هره زمانه کې یې خپلې ټولې مادي او معنوي وړتیاوې او وسایل په کار اچولي او د حق په مقابل کې د قوي جبهې د جوړولو په مقصد یې یو بل ته سره په خپلو کې لاسونه ورکړي دي، او د مسلمانانو په خلاف یې لوېې او اوږدې جګړې کړې دي چې د فارسیانو، رومیانو، د اروپا صلیبي او استعماري جګړې، د کمونیزم د خپراوي لپاره د شوروي اتحاد جګړې او بالآخره د ديموکراسۍ د کفري نظریې او نظام د خپرولو لپاره د امریکا او ټول غرب اوسنۍ روانه جګړه یې واضح مثالونه دي.

د رسول الله صلی لله علیه وسلم اصحابانو او د هغوئ تابعینو هم د اسلام د خپرولو په لاره کې جهاد او اعداد ته دومره لویه توجه کړې وه چې د مادي وسائلو او د حمل او نقل د قوي او لویو ذرائعو له نه شتون سره سره یې بیا هم د اسلام پیغام له جزیرة العرب څخه د اروپا تر غربه او د هند، چین، روسي او قوقاز ترهېوادونو ورساوه. هغوئ د خپلې زماني بهترین توره وهونکي، غره ختونکي، صحراپیمایان، اسپ سواره، نښنه ویشتونکي،لامبو وهونکي او د نورو رزمي استعدادونو لرونکی ول.

هغوئ په اعداد او تمرين کې داسې رالوی شوي ول چې عسکريت او د رزمي وړتياوو درلودل يې نور د ژوند بڼه ګرځېدلې وو.
صحابه کرامو رضي الله عنهم به له جهاد او اعداد څخه کښيناستل هلاکت ګاڼه، ځکه چې الله تعالی په قران کريم کې دې کښيناستلو ته (تهلکه) ويلي وو او هغوئ يې ورڅخه منع کړی وو:(ولاتلقوا بأيديکم إلی التهلکة) يعنې (د جهاد اعداد او رباط په پرېښودلو او د دنيا په کارونو د پوره مصروفېدلو له امله ځان په هلاکت کې مه غورځوئ). ابو ايوب انصاري رضي الله عنه هم صحابوؤ او تابعينو ته د دې آيت همدغه تفسير کړی وو.
**د اعداد شرعي دلائل**:
الله تعالی په سورة الأنفال کې مسلمانانو ته له دښمن سره د مقابلې لپاره د هر ډول اعداد او د مطلوب قوت د برابرولو امر کړی دی، الله تعالی فرمايلي :(وأعدوا لهم مااستطعتم من قوة و من رباط الخيل ترهبون به عدوالله و عدوکم وآخرين من دونهم لاتعلمونهم الله يعلمهم) الأنفال/ ۶۰.
ترجمه:(څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زين کړي آسونه تيار کړئ چې د الله دښمنان، خپل دښمنان او نور هغه دښمنان پرې ووېروئ چې تاسې يې نه پېژنئ الله يې پېژني).
د تفسير علماء وايي چې پدې آيت کې د (قوة) لفظ نکره دی، او نکره عام وي او دلته هم دا لفظ په هر ډول قوت باندې دلالت کوي.
د جهاد لپاره اعداد نه کول په قرآن کريم کې د منافقانو له صفاتو څخه ګڼل شوي دی، الله تعالی د جهاد لپاره د منافقينو د اعداد د نه کولو په اړه فرمايي:(وَلَوْ أَرَادُوا الْخُرُوجَ لأَعَدُّوا لَهُ عُدَّةً وَلَكِن كَرِهَ اللَّهُ انبِعَاثَهُمْ فَثَبَّطَهُمْ وَقِيلَ اقْعُدُوا مَعَ الْقَاعِدِينَ)التوبة/ ۴۶.
ترجمه:(که هغوئ (منافقانو جهاد) ته د وتلو اراده درلودی نو تياری به يې ورته نيولی وو، خو د هغوئ راپورته کېدل د الله خوښ نه وو، نو ځکه يې سست کړل، او ورته وويل شول چې له کښېناستونکو سره کښېنئ).

رسول الله صلى الله عليه وسلم په خپلو احاديثو کې مسلمانان د جهادي اعداد بېلابېلو ډولونو ته تشويق کړي دي او هغوئ يې اسپ سوارۍ، نښه ويشتلو، لامبو زده کولو او د پوځي وسائلو جوړولو ته هڅولي دي.
نن چې په نړۍ کې کافران د جنګ، سياست ، تعليم او اقتصاد په ډګرونو کې برلاسي شوي او هره خوا يې په اسلامي نړۍ کې پر مسلمانانو او نورو ولسونو او مجاهدينو حملې دي سبب يې دا ندی چې هغوئ پرحقه دي، او يا دا چې د الله توفيق او نصرت يې په برخه دی. بلکه اصلي سبب يې دا دي چې هغوئ د جګړو لپاره پوره اعداد او منظم پلانونه لري، او د جګړه ييزو مهارتو او پوځي صنعت په ډګرونو کې يې پوره کار کړی دی، او لوی زمکني، هوايي او سمندري پوځونه او پوځي وسائل يې جوړ کړي دي، او هم هغوئ په رواني او فکري لحاظ خپلو پوځيانو ته پوره روزنه ورکوي.
کفار نه يوازې دا چې د بدني او فکري اعداد او د پوځي وسائلو او وسلو په جوړولو کې د خپلې برلاسۍ لپاره مسلسلې او په خپلو منځونو کې سره همغږې هلې ځلې کوي، بلکې په ټول توان او د هر ډول توطيو او فشارونو په استعمال د دې لپاره هم په سيمه ييزه او هم په نړيواله سطحه کوښښ کوي چې مسلمانان له عسکري وړتياوو او د پوځي صنعت له درلودلو محروم کړي، ترڅو يا د خپلې کمزورۍ له امله له منځه ولاړ شي، او يا هم د کفارو قوت او د هغوئ شرطونو ته غاړه کېږدي.
د اسلام دښمنان او له مسلمانانو سره په جګړه کې اخته اوسنی نړيوال صليبي ايتلاف او د هغه فکري او اقتصادي ملګري او پر اسلامي نړۍ د هغوئ له لوري تپل شوي حکومتونه او سياسي احزاب ټول له يوې مخې د خپلې زوروري مېډيا ، تعليمي نصابونو، فرهنګ او ادبياتو، ټولنيزو رسنيو او نورو اجتماعي او فکري سازمانونو له لارې کوښښ کوي چې د اسلامي امت ځوانان او راتلونکي نسلونه له جهادي اعداد او د وسلې له استعمال څخه متنفر کړي، او د هنر، د عدم تشدد د مبارزې، نړيوالتوب

او نورو واردو شویو فکري ګمراهیو له لارې یې د ذلت او بې غیرتۍ په ژوند او د کفارو د اهدافو لپاره په کار کولو قانع او مصروف کړي.
د دې لپاره چې له اسلام سره په جګړه کې اخته اوسنی نړیوال صلیبي ایتلاف او د هغه محلي ملګري د اسلامي نړۍ ځوانان د جهاد او دفاع له میدانونو لیرې وساتي او په بېهوده مصروفیتونو یې مصروف کړي، نو په منظم شکل یې هغوئ د جنون تر حده په بېلابېلو سپورټونو لکه کرکټ، فوټبال، د میراتون په منډو، د باډۍ د ښکلا په کلپونو، موسیقۍ، ګډاوو، د ښځو او نرو په اختلاط، په رومانټیکې شاعرۍ، عشق او عاشقۍ، غربي ډوله فیشنونو او نورو بیهوده مصروفیتونو اخته کړي دي، او غربي دولتونه او موسسې د هغوئ لپاره د ځوانانو کلپونه، د لوبو میدانونه، تیاترونه، خارجي سفرونه، تش په نامه د ځوانانو پارلمانونه او کنفرانسونه، ادبي بهیرونه، د خوشګذرانۍ بنډارونه او د ماډلنګ نندارتونونه جوړوي، او په ملیونونو ډالر وربانديې پدې مقصد مصرفوي چې د امت ځوانان له علم، دعوت، جهاد، صنعت، زراعت، مسؤولیت پېژندنې او له دین او وطن څخه د دفاع له کاره راوګرځوي، او د ریښتني اتلولۍ له ګټلو څخه یې د کرکټ، ګډاوو، سندرو، او فلمونو په اتلولۍ تېرباسي.
د دې لپاره چې د پردیو لخوا تپل شویو حکومتونو له یوې خوا نور ځوانان هم د جهاد او دفاع له سنګرونو لیرې ساتلي وي، او د پردیو فرهنګونو په خپلولو یې مصروف کړي وي، او له بلې خوا یې له لویو ستونزو د ولسونو پام بل لوري ته اړولی وي په لویه پیمانه بېهوده مصروفیتونو ته د ځوانانو د ورتشویقولو پر پروګرامونو درانه مصرفونه کوي او د داسې لوبغاړو او سندرغاړو استقبال ته ساده ولسي خلك له ډولونو او سورنیو سره لویو لارو او بازارونو ته راوباسي چې له لهو او لعب پرته یې بل څه نه وي تر سره کړي، خو د غرب پلوې مېډیا له لوري اتلان بلل کېږي.

**د جهادي اعداد ډولونه:**

لکه څنګه چې جهاد يو ايماني،عسکري، سياسي او اجتماعي عمل دی او نتائج يې هم د اسلامي ټولنې پر ايمان، پوځي غلبې او شکست او د ټولنې په سياسي او اجتماعي وضعيت مرتبيږي، نو همدارنګه بايد اعداد هم ورته پدې ټولو ډګرونو کې ونيول شي. او که چېرې په دې ټولو ډګرونو کې د جهاد لپاره اعداد ونه نيول شي نو هر وخت د دې وېره شته چې يا دې جهاد او مجاهدين د دښمن په مقابل کې مغلوب شي، يا دې جهاد په فساد او طغيان بدل شي، او په نتيجه کې دې يې يو فاسد او مستبد نظام رامنځته شي، او يا دې هم دښمن په دې وتوانيږي چې د جهاد د لارې لارويان د خپلو پټو او ښکاره دسيسو او توطيو په نتيجه کې په خپل صف کې ودروي، چې په تاسف سره دا ټول حالتونه زمونږ په جهادي بهيرونوکې وليدل شول.

نو د دې لپاره چې منفي تجربې بيا بيا تکرار نشي، د جهادي اعداد لپاره بايد په لاندې ډګرونو کې ډېر کار وشي.

**١ - ايماني او شرعي اعداد:**

مخکې تر دې چې مجاهد ته ټوپك په لاس ورکړ شي هغه بايد د ايماني اعداد له مرحلې تېر شي. په ايماني اعداد کې بايد مجاهدين پدې معتقد شي چې :

**الف:** جهاد يوشرعي عبادت دی چې د الله له لوري پر مسلمانانوفرض شوی دی:(کتب عليکم القتال وهو کره لکم وعسی أن تکرهوا شيئا وهو خير لکم وعسی أن تحبوا شيئا وهو شر لکم والله يعلم وأنتم لا تعلمون)البقرة/٢١٦.

ترجمه:(پر تاسې جنګ فرض کړای شوی دی که څه هم تاسې يې نه خوښوئ، شايد تاسې يو شی بد وګڼئ خو هغه به ستاسې لپاره غوره وي،

او شايد تاسې به يو شی ښه وګڼۍ خو هغه به ستاسې لپاره شر وي، الله ښه پوهېږي او تاسې نه پوهېږئ).
جهاد نه کومه سياسي مبارزه ده، نه يوازې د آزادۍ لپاره جګړه ده، نه کوم ولسي پاڅون دی، او نه هم د مال، تنخوا او يا نورو امتيازاتو په مقابل کی جنګېدل دي. بلکې جهاد يوازې د دې لپاره جنګېدل دي چې د الله تعالی کلمه دې لوړه شي، شريعت دې نافذ شي، مسلمانان دې نورو خلکو ته د اسلام پيغام او دعوت ور ورسولی شي، او د ظالمانو او کافرانو له ظلم او تجاوز څخه دې خوندي وي.
ب: لکه څنګه چې په اسلام کې نورعبادتونه خپل شروط، آداب، او احکام لري همدارنګه جهاد هم خپل شروط، آداب، احکام او خپلې تقاضاوې لري چې بايد وپېژندل شي او مراعات شي. که چېرې په جهاد کې د جهاد خپل شروط، آداب، احکام، او د هغه تقاضاوې پوره نشي نو بيا جهاد يو شرعي عبادت نه پاتې کېږي، بلکې د يوې ورانوونکې جګړې حيثيت او شکل غوره کوي چې د الله تعالی د رضاکولو لپاره نه بلکې د نورو سياسي، قومي او يا اقتصادي مقاصدو لپاره تر سره کيږي.
نو په کار ده چې مجاهدين د جهاد پر فقه وپوهول شي، او د جهاد د مشروعيت او فرضيت له دلائلو خبر کړی شي، د قتال، فرار، غنيمت، شهادت، طاعت، رازساتنې او ولاء او براء احکام ور معلوم شي. همدارنګه د نيت او عمل اصلاح ته متوجه کړای شي، له الله تعالی، د هغه پيغمبر صلی الله عليه وسلم او د اسلام له مبارك دين سره مينه يې په زړه کې ځای کړای شي، د دنيا او دنياوي خوندونو په اړه د زهد او بې رغبتي او د آخرت د نعمتونوپه اړه تلقين او ترغيب ورته وشي. د ذکر، تلاوت، تزکية النفس، توکل علی الله، نېکو اخلاقو، د مسؤوليت د پېژندنې صفات ورکې پيدا کړل شي، او د امت د عليا مصالحو په خاطر له خپلو شخصي مصالحو د تېرېدنې احساس ورکې راوستل شي.

مجاهدینو ته د دې ورښوول هم ضروري دي چې د جهاد د ذکر کې له حلالو او حرامو خبر شي، د دعوت، امر بالمعروف او نهي عن المنکر او د الله تعالی د حدودو د ساتلو استعدادونه ورکې وروزل شي. که مجاهدینو ته دغه ډول ایماني اعداد ورکړ شي نو په هغه وخت کې به بیا یو مجاهد په حقیقي معنی مجاهد وي، او هغه صفات به ورکې راځي چې الله یې د مجاهدینو په هکله یادونه کړې ده چې فرمایي:(التَّائِبُونَ الْعَابِدُونَ الْحَامِدُونَ السَّائِحُونَ الرَّاكِعُونَ السَّاجِدونَ الآمِرُونَ بِالْمَعْرُوفِ وَالنَّاهُونَ عَنِ الْمُنكَرِ وَالْحَافِظُونَ لِحُدُودِ اللّهِ وَبَشِّرِ الْمُؤْمِنِينَ)التوبة ۱۱۲.

ترجمه:(هغوئ توبه کوونکي، عبادت کوونکي، ثنا ویونکي، د الله په لار کې وتونکي، رکوع او سجده کوونکي، پر نېکیو امر کوونکي او له بدیو منع کوونکي او د الله د حدودو ساتونکي دي، او (ای پیغمبره) مؤمنانو ته د خوښۍ زېرې ورکړه).

ج: د ایماني اعداد په لړکې دا هم ضروري ده چې مجاهدین د خپلې قضیې پر حقانیت وپوهول شی، د دښمنانواو مرجفینوله لوري پر راپورته کړل شویو شبهاتو وپوهول شي او د هغو پر شرعي او معقولو ځوابونو آګاه کړل شي. ځکه چې شبهې، وسوسې او تشویشونه هغه څه دي چې د مجاهد عزم سستوی، د خپلې قضیې په حقانیت یې شکمن کوي، او بالآخره یې له جهاده منصرف کوي چې په عسکري اصطلاح کې همدې ته رواني (روحي) جګړه ویل کېږي.

همدارنګه باید مجاهدین د جهاد په خلاف له پټو او ښکاره توطیو خبرکړل شي، د دښمن داخلی او خارجي ملګري او له هغه سره متعاون حکومتونه، ارګانونه او مؤسسات ور وپېژندل شي، او هغه مطبوعاتي او اقتصادي مؤسسې، مفکرین، لیکوالان، رسنۍ او نور مؤثر جهتونه هم ورته معرفي شي چې د جهاد او مجاهدینو په خلاف منفي تبلیغات کوي او د دښمن تله درنوي. د دغو جهتونو پېژندل او د هغو په اړه مناسب اقدامات ځکه ضروري دي چې نن ورځ د اسلام دښمنان خپله اتیا فیصده جګړه د همدغو

جهتونو له لارې کوي، او يوازې شل فيصده جګړه د پوځي وسائلو په استعمال کوي.
د ايماني اعداد په لړکې د هغو مطبوعاتي وسائلو او نشراتو درلودل هم ضروري دي چې له جهادي قضاياوو دفاع کوي، مجاهدينو ته حقائق روښانه کوي، خلکو ته د جهادي پرمختګونو او د مجاهدينو د برياوو خبرونه رسوي، د دښمنانو د تبليغاتو او دسيسو ځواب وايي، په جهادي صف کې ايماني احساسات پالي او ځپاند يې ساتي، او د حق غږ پورته کوي.
د ايماني اعداد په لړ کې پدې خبرې د مجاهدينو پوهول هم ضروري دي چې جهاد کومه سياسي يا وطني جګړه نه ده چې په سولې، متارکې، سياسي جوړجاړي او يا دې له دښمن سره په کوم ډول پخلاينې پای ته ورسيږي. بلکې جهاد هغه جګړه ده چې د کفر تر زوال او د الله تعالی د کلمې تر پوره لوړوالي،د ژوند په ټولو چارو کې د دين د حاکم کېدلو او پر زمکه د کفر او شرك تر نه پاتې کېدلو به دوام لري.
په جهادي نظريه کې له دښمن سره په جګړه کې تکتيکې اوربند او موقته هدنه شته، خو دائمي سوله او د نړۍ له کفري هېوادونو سره د سوله ييز ګډ ژوند نظريه وجود نه لري.
په ايماني اعداد کې د مجاهدينو فکر پر دې خبره هم جوړول ضروري دي چې جهاد په کومې سياسي جغرافيې پورې نه محدوديږي، او نه هم سياسي سرحدونه په امت کې د جهاد د فرضيت مانع ګرځي. بلکه د جهاد عيني او کفايي فرضيت د مسلمانانو په ضعف او قوت پورې اړه لري.
**بدني او عسکري اعداد**:
په جهادي اعداد کې د شرعي او ايماني اعداد تر څنګ اصلي او مهم اعداد بدني او پوځي اعداد دی. بدني اعداد دا دی چې مجاهدين بايد جسماً داسې تمرين شي چې په هر ډول حالاتو اوهر ډول اراضي کې د تحرك او مانور وړتيا ولري، او له هر ډول جوي حالاتو سره تعامل وکولي شي. د

دې تر څنګ باید د امکان تر حده رزمي هنرونه لکه کراټې، جمناستك، اسپ سواري او نور هنرونه هم حاصل کړي.
عسکري اعداد لاندې دوه عمده برخې لري چې د وسلو او وسائلو صحیح استعمال او عسکري صنعت دي.
**١ـ د وسلو او وسائلو صحیح استعمال:**
په عسکري اعداد کې د وسلو استعمال او په خاص ډول د هدف ویشتل ډېر اهمیت لري، او په اسلام کې هم همدې کار ته (قوت) ویل شوی دی. د الأنفال په سورت کې چې الله د اعداد امر کړی او فرمایلي یې دي: (وَأَعِدُّواْ لَهُم مَّا اسْتَطَعْتُم مِّن قُوَّةٍ وَمِن رِّبَاطِ الْخَيْلِ تُرْهِبُونَ بِهِ عَدْوَّ اللّهِ وَعَدُوَّكُمْ وَآخَرِينَ مِن دُونِهِمْ لاَ تَعْلَمُونَهُمُ اللّهُ يَعْلَمُهُمْ)الأنفال/ ٦٠.
ترجمه:(څومره چې کولی شئ د کافرانو د مقابلې لپاره قوت او زین کړي اسونه تیار کړئ چې د الله دښمنان، خپل دښمنان او او نور هغه دښمنان پرې ووېروئ چې تاسې یې نه پېژنئ الله یې پېژني).رسول الله صلی الله علیه وسلمپه دې آیت کې د (قوت) تفسیر په (رمیې) یعنې ویشلو سره کړی، او پر دې موضوع یې د تأکید له امله په تکرار سره فرمایلي:(ألاإنّ القوةالرمي،ألا إنّ القوة الرمي، ألا إنّ القوة الرمي). مسلم، ترمذی، ابوداود ، ابن ماجه، احمد). خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دي، خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دي، خبر اوسئ چې قوت (ویشتل) دی).
په احادیثو کې د هغه چا په هکله وعید راغلي چې نښه ویشتل یې زده کړي وي او بیا یې ېرته هېر کړي وي:(من علم الرمي ثم ترکه فلیس منا ، ـ أوـ قدعصی). مسلم.
ترجمه:(څوك چې نښه ویشتل زده کړي او بیا یې پرېږدي هغه زموږ له ډلې نه دی) او یا دا چې(ګناه یې وکړه).
د هدف ویشتلو لپاره د هرې زمانې خپلې وسلې او وسائل وي. که په پخوا زمانه کې ویشتل په غشو، نېزو، منجنیقونو او نورو ابتدایي وسائلو

کېدل نو پدې زمانه کې په ټوپکو، توپونو، ميزائلو، بمونو او نورو پرمختللو وسلو او وسائلو ترسره کېږي.
په اوسنۍ زمانه کې د کفارو د پوځي قوت برلاسۍ او پر اسلامي نړۍ او نورو ولسونو د هغوئ د غلبې اسبابو ته که وکتل شي نو وينو چې همدغه (ويشتل) د هغوئ د قوت راز دی. هغوئ د ويشتونکو وسلو او وسائلو په جوړولو کې دې حد ته رسېدلي چې له زمکې څخه په فضا کې، له فضا څخه په زمکه کې، له وچې څخه په سمندر کې، او له سمندر څخه په وچه کې، او له يوه براعظم څخه په بل براعظم کې خپل اهداف په نښه کوي او ولي يې. داسې ښکاري لکه د پيغمبر صلی الله عليه وسلم پر دې حديث چې فرمايي: (ألا إنّ القوة الرمي) ددې زمانې تر مسلمانانو کافران ښه پوه شوي وي.
په جهادي اعداد کې په بېلابېلو وسلو د رسا ويشتلو تمرين د پوځي تمرينونو تر ټولومهمه برخه ده، خو په تأسف سره بايد ووايو چې په افغانستان کې مجاهدين پدې ډګر کې مطلوب تمرين نه حاصلوي، او تر ډېره ځايه وسلې د مسلکي استعمال پر ځای په غير مسلکي او اټکلي ډول استعمالوي چې د دي کار نتيجه له يوه لوري د مرميو د بې حده زيات مصرف او له بل لوري دښمن ته د لږ زيان د وراووښتلو په شکل کې راووځي.

**۲ـ پوځي صنعت**:

**په** جهادي اعداد کې پوځي صنعت داعداد تر ټولو مهمه برخه ده، او هرهغه جهت چې د جګړې د پرمخ بيولو لپاره خپل پوځي صنعت ولري او پر خپلو وسائلو متکي وي هغه په پوره ډاډ او کفايت د اوږدې مودې لپاره د دښمن په خلاف جنګېدلی شي او د چا تر فشار لاندې نه راځي.
د افغانستان د جهاد په اوسني جهادي اعداد کې دا ضروري نده چې مجاهدين دي ارومرو د ټانګونو، طيارو، کشتيو، او درنو توپونو او ميزائلو صنعت ولري، او دا ځکه چې مجاهدين نه د دغه ډول صنعت

وړتیا لري، او نه یې هم حالات ورته برابر دي، خو یو لړ نور واړه صنعتونه او د ضروري وسائلو تولید هم م ورته مکن او هم ضروري دي چې له هغو پرته ښايي په پوره استقلالیت او اطمینان خپل جهاد ته دوام ورنه کړای شي، دغه ضروري کارونه په لاندې ډول دي:

۱ ـ د بارودو بېلابېل ډولونه جوړول.

۲ـ د بمونو او ماینونو بېلابېل ډولونه جوړول.

۳ـ د لنډې مسافې د ویشتلولپاره د میزائلو جوړول.

۴ـ د بېلابېلو وسلو د ترمیم لپاره محلي ورکشاپونه جوړول.

۵ـ د ځینې ساده بیولوژیکي وسلو او سمومو جوړول.

۶ـ بېلابېل نقلیه وسائط لکه موټر، موټرسایکلونه، او نور وسائط پداسې ډول عیارول چې د پوځي مقاصدو لپاره ورڅخه کار واخستل شي، او د دې کارونو لپاره د خرادۍ او وېلډنګکارۍ په مسلکونو کې د ځینې مجاهدینو ښه روزل.

۷ـ له بېلابېلو برقي سامان آلاتو څخه د تعلیمې، دعوتي او پوځي وسائلو په حیث د کار اخستلو هنر زده کول.

دا او دې ته ورته نور ډېر کارونه دي چې په افغانستان کې یې مجاهدین ترسره کولی شي، خو په هغه صورت کې که د جهادي قیادت له لوري دې ډول کارونو ته توجه وشي.

دتعجب ځای دی چې که په عراق، شام، او فلسطین کې مجاهدین ټوپک، میزایل، راکټ لانچرونه او حتی داسې بې پیلوټه طیارې جوړوي چې د اسرائیلو پر سر کامیاب پروازونه کوي، نو موږ چې له څلوېښتو کلونو راهیسې له لویو قدرتونو سره په جګړه اخته یو ولې دغه ډول کارونو ته په مسلکي ډول توجه نه کوو؟ په کار خو دا وه چې په دې ډګر کې د افغانستان د مجاهدینو تجربه تر نورو مجاهدینو زیاته وای، خو داسې ښکاري چې زموږ جهادي قیادتونه په هر وخت کې په دې مجال کې د غفلت او بې توجهۍ ښکار شوي دي.

پوځي صنعت که هر څومره وړوکي او ساده هم وي بيا هم د پوځي وسائلو په خود کفايۍ او د دښمن په خلاف کې د مقابلې په کار کې مهم رول لري.
پر افغانستان د امريکا او اروپا د اوسني يرغل په مقابل چې مجاهدينو يوازې د بارودو اوپه خپلو لاسونو د بمونو د جوړولو صنعت درلود نو دې صنعت د جهاد صف دومره قوي کړ چې د هغه په وسيله مجاهدينو وکولی شول چې د نړيوال صليبي ايتلاف قواوو ته داسې ضربې ورکړي چې په نتيجه کې يې د تقريبا پنځوس هېوادونو پوځيانو د مجاهدينو په مقابل ماتې وخوړه.
د صليبي ايتلاف د غړو د خپلو احصائيو له مخې د هغوئ پوځيانواو پوځي وسائلو ته تر ټولو لوی زيان هغو بمونو واړولی چې مجاهدينو په خپل لاس له هغو بارودو جوړ کړي چې دوئ په خپله جوړ کړي وو.
د مجاهدينو په يوه ساده ماين چې يوازې سل يا دوه سوه ډالره مصرف به ورباندې کېده د امريکايانو او د هغوئ د ملګرو هېوادونو داسې ټانګونه او پوځي وسائل له منځه تلل چې د هر يوه قيمت به يې تقريباً يو مليون ډالره وو.
په جهادي اعداد کې د پوځي صنعت شتون د جهاد د تداوم او د مجاهدينو د پوره استقلاليت د ضمانت په معنی ده، او که چېرې مجاهدين پدې ډګر کې اعداد ونه لري نو طبيعي ده چې د بارودو او مرميو په لاسته راوړلو کې به له ډېروستونزو اوسختو شرائطو سره مخ کيږي.
د پوځي صنعت د برکت او اهميت په اړه د رسول الله صلی الله عليه وسلم په يوه حديث کې دا هم راغلي چې د غشي جوړونکی به د هغه له ويشتونکي او ويشتونکي ته له ورکوونکي سره درې واړه جنت ته ځي: (إنّ الله ليدخل بالسهم الواحدثلاثة الجنة، صانعه يحتسب في صنعته الخير، والرامي به والممد به). المستدرك على الصحيحين.

ترجمه: (په يقيني ډول الله به په يوه غشي درې تنه جنت ته داخلوي: د هغه جوړوونکي چې په جوړولو کې يې د ثواب اراده لري، د هغه ويشتونکی، او ويشتونکي ته د هغه ورکوونکی).

پدې حديث شريف کې رسول الله صلی الله عليه وسلم د غشي جوړونکی د هغه له ويشتونکي سره په اجر کې يو ډول ګڼلی دی.

پوځي صنعت په قرآن کريم کې هم ياد شوی دی، الله تعالی فرمايي (**وَأَنزَلْنَا الْحَدِيدَ فِيهِ بَأْسٌ شَدِيدٌ وَمَنَافِعُ لِلنَّاسِ وَلِيَعْلَمَ اللَّهُ مَن يَنصُرُهُ وَرُسُلَهُ بِالْغَيْبِ إِنَّ اللَّهَ قَوِيٌّ عَزِيزٌ**) الحديد: **۲۵**.

ترجمه :(او هم مو وسپنه پيدا کړې ده، په هغې سره سخت جنګ کېدی شي، او خلکو ته ورکې ډېرې ګټې دي، تر څو الله ښکاره کړي هغه خلك چې د الله له ليدلو پرته د هغه او د هغه د رسولانو مرسته کوي، بې شکه الله قوي او پر هرڅه غالب دی).

امام ابن کثير د پورتني آيت په تفسير کې وايي:له (بأس شديد) څخه د تورو، برچو، نېزو او زغرو په څېر وسلې مراد دي). که پرون له وسپنې مخکنۍ يادې شوې وسلې جوړېدې نو نن ورڅخه تر ټولو پرمختللې وسلی او وسائل جوړيږي.

الله تعالی پر خپل ګران پيغمبر داود عليه السلام باندې يوه لورينه دا هم کړې وه چې وسپنه يې ورته نرمه کړې وه او د وسلو او وسائلو د جوړولو هنر يې ورزده کړی وو:(**وَعَلَّمْنَاهُ صَنْعَةَ لَبُوسٍ لَّكُمْ لِتُحْصِنَكُم مِّن بَأْسِكُمْ فَهَلْ أَنتُمْ شَاكِرُونَ**) الأنبياء/ ۸۰.

ترجمه : (او د زغرو جوړول مو ورښوولي وو تر څو تاسې يو د بل له ګوزار نه وساتي، نو آيا تاسې شکر کوونکي ياست؟).

د مجاهدينو لپاره د ايماني او پوځي اعداد ترڅنګ يو بل ډول اعداد هم ډېر ضروري دی چې د هغه په نه شتون کې کېدی شي ډېر مجاهدين خپل ژوند له لاسه ورکړي، او يا له ډېرو روغتيايي ستونزو سره مخ شي. دغه ضروري اعداد ( طبي اعداد) دی. په طبي اعداد کې هم دا ناممکنه ده چې

هر مجاهد دې ډاکټر شي او د طبابت په ټولو چارو دې پوه شي، خو دا ډېره ضروري ده چې مجاهدينو ته د دوئ په تمرين ځايونو او يا يې د اوسېدلو په ځايونوکې د (لومړنيو طبي مرستو) مختصر تعليمات ورکړل شي، تر څو دعمومي حفظ الصحې، له زخمي سره د عاجلې مرستې، د زخميانو د مناسب انتقال، د وينې د درولو، د ځينې ضروری درملو د استعمال او د طبابت د ځينې ضروري وسائلو د ساتلو درسونه او عملي تمرين ورکړای شي.

مجاهدينو ته د ابتدايي طبي تعليماتو ورښوول ځکه ضروري دي چې هغوئ اکثراً په داسې سيمو کې اوسېږي چې هلته طبيب، درمل او د درملنې آسانتياوې نه وي، او ياهم د جګړې په محل کې ورته د طبيب وررسېدل مشکل وي. د همدغه ډول حالاتو له امله په ډېرو وختونو مجاهدين يا دوينې د ضايع کېدلو او يا هم د هغوئ د زخمونو د شديد مکروبي کېدلو له امله له ډېرو ستونزوسره مخ کېږي.

په اوس وخت کې چې اکثره مجاهدين طالبان،عالمان، د مکاتبواو پوهنتونو لوستي ځوانان دي په ډېرې اسانۍ سره کولی شي په لنډه موده کې ابتدايي طبي اعداد حاصل کړي. نو په کار ده چې جهادي قيادتونه په هر ځای کې او په خاص ډول په افغانستان کې طبي اعداد ته ډېره پاملرنه وکړي.

## افغان علماء، د ليکوالۍ ستونزه او د اسلامي معلوماتو فقر

په افغاني ټولنه کې د مسلك له مخې د دين علماء تر ډاکترانو، انجينيرانو، ژورنالستانو، پوځي افسرانو، اديبانو، شاعرانو، سياسي او حقوقي کارپوهانو او بالآخره د بل هر مسلك تر درلودونکو ډېر دي. نه يوازې دا چې شمېر يې ډېر دی، بلکې په ټولنه کې منلي، محترم، مطرح او د نفوذ خاوندان هم همدوئ دي، ځکه چې افغاني ټولنه تر ډېره حده متدينه ټولنه ده، د ژوند په ډېرو چارو کې د دين علماؤ ته رجوع کوي، لارښوونه ترې غواړي او په خبره يې باور او عمل کوي.

د کمپيوټر او انټرنيټ پدې زمانه کې ټول بشري او ديني علوم کمپيوټر او انټرنيټ ته ورلوېدلي دي، په هره موضوع کې په مليونونو پاڼې معلومات په ډېرې آسانۍ پيداکېږي او د هر مسلك خلك ورڅخه خپل ضرورتونه پوره کوي، او هغه علمي او تخنيکي کارونه چې ترسره کولو به يې پخوا کلونه غوښتل اوس يوازې يو څو دقيقې غواړي.

مثلاً که پخوا به چا غوښتل چې يوه کتابخانه ولري، نو هغه بايد ښې ډېرې پيسې لرلای، په ښو ډېرو کتابونو پسې بايد ګرځېدلی وای، ډېرې کتابخانې يې بايد چاڼ کړې وای، او بيا يې په ډېر تکليف خپل مطلوب کتابونه اخيستي وای، او د ډېرو مشکلاتو په زغملو يې هغه خپل کورته راوړی وای، او د هغو د سمبالولو لپاره يې مناسب ځای او ډېرې الماريۍ جوړې کړې وای، او بيايې په کلونو وزګار وخت درلودلی چې دا ټول کتابونه يې يوځل کتلي وای تر څو يې محتوی ځان ته معلومه کړې وای او بيا يې د ضرورت په وخت کې مراجعه ورته کړې وای.

خو اوس دا ټول کارونه پرته لدې چې مال ورباندې مصرف کړي، سفرونه وکړي او ستونزې وګالي او يا هم وخت ورته فارغ کړي يوازې په يو څو لحظو کې ترسره کېږي. او هغه داسې چې په خپل کمپيوټر کې يوازې يوه

د کومې (مکتبې) سي ډي چې په زرګونو کتابونه ورکې موجود دي داخله کړي او بیا يې د خپلې مطلوبې موضوع لپاره د (سرچ) بټن ووهي نو و به ویني چې د ده مطلوب معلومات چې په هر کتاب کې وي فوراً به يې مخې ته راووځي.

او که وغواړي چې د نړۍ له بل هر ځایه خپل مطلوب معلومات په فوري شکل حاصل کړي، نو انټرنیټ ته به خپل مطلوب عنوان ور داخل کړي او په څو ثانیو کې به يې ټول مطلوب معلومات له مراجعو سره په خدمت کې حاضر وي.

خو د دې ټولو امکاناتو او وسائلو له شته والي سره سره بیا هم د افغاني ټولنې علماؤ لیکوالۍ او انټرنیټ ته شاکړې ده چې نه ورڅخه په خپله استفاده کوي او نه ورته خپلې لیکنې ورپورته کوي چې خلك ديني استفاده ترې وکړي. له همدې امله خو زموږ د ملت نوی نسل په انټرنیټ کې د ديني معلوماتو له فقر سره مخ دی.

د ديني معلوماتو حاصلول او د معنويت د غريزې پوره کول په انسانانو کې يو فطري ضرورت دی نو خلك هڅه کوي چې له هرې لارې چې وي خپل ضرورت پوره کړي.

خو دا چې افغانانو ته د خپلې ټولنې علماء څه نه لیکي، او یا يې که لیکي هم نو کمپیوټر او انټرنیټ ته يې نه ورپورته کوي، نو ځکه خو د نوي نسل ځوانان پردیو افکارو او نظریاتو ته رجوع کوي، او خپلې ټولنې ته داسې افکار، نظریات، عقائد او فلسفې راواردوي چې په ټولنه کې د اختلاف، انقسام، تشنج او تاوتریخوالي اسباب رامنځته کوي او په نتیجه کې يې د دې پرځای چې د ټولنې خلك خپله ديني تنده خړوبه کړي د فکري او مذهبي کشمکش په جنجالونو اخته کېږي.

په اوس وخت کې افغانانو ته له اسلامه په تېښته نشنلستان، غرب ځپلې دیموکراتان، بې بندوباره ډمان، سندرغاړي، نڅاګر، د فحشاؤ خپرونکي او د غرب له بې لارې فرهنګ څخه متأثر خلك خپلې هر ډول لیکنې او

خپل فکري ادبیات د انټرنټ له لارې مخې ته ږدي. خو هغه څوك چې ونډه یې په انټرنټ کې تر ټولو لږ او فکري تأثیر یې په ځوانانو کې کمزوری دی هغه افغان دیني علماء دي.

**عجیبه معادله:**

په اوسني وخت کې موږ په افغاني ټولنه کې تر دوو لکو زیات علماء او د دیني مدارسو د لوړو درجو زده کوونکي لرو.که داسې وګڼو چې هر عالم او د لوړې درجې طالب دې په میاشت کې یوازې یو مضمون په یوې دیني، اخلاقي او یا کومې اجتماعي موضوع کې ولیکي، نو باید موږ په میاشت کې دوه سوه زره نوي مضامین ولرو.

او که داسې وګڼو چې په هرو سلو تنو دیني علماؤ کې یوازې یو تن یې د لیکوالۍ استعداد لري نو باید لږ تر لږه په میاشت کې دوه زره نوي مضامین او موضوعات د ټولنې افرادو ته وړاندې کړای شي.

خو که د عمل او واقعیت په میدان کې وګورو نو یوازې یو څو تنه دیني علماء داسې لرو چې دین او ټولنې ته د لیکوالۍ له لارې خدمت کوي، او په ډېرو محدودو معاصرو موضوع ګانو یو څه سطحي لیکنې کوي. او هغه علماء چې لیکنې یې انټرنیټ ته راووځي هغوئ بیا د ګوتو په شمېر دي. اوس پوښتنه دا ده چې زموږ په لسګونو او یاهم په سلګونو زره علماء ولې لیکل نه کوي؟

آیا شرعي علوم یې ندي لوستلي؟

آیا لیکل یې ندي زده؟

آیا د ټولنې ضرورت نه درک کوي؟

آیا په ټولنه کې د واردو شویو معاصرو جاهلیتونو او بې لارې نظریاتو او افکارو تأثیرات نه احساسوي؟

آیا د ادب او لیکوالۍ د فن اړوند د صرف، نحوې، بدیع، بیان، معاني او د منطقو علوم یې ندي لوستي؟

او که په تدریس، امامت، دعوت او جهاد کې دومره مصروف دي چې په میاشت کې هم د یوې صفحې مضمون د لیکلو لپاره وخت نه پیداکوي؟
نن چې انټرنیټ پاڼې ګورو نو وینو چې ډېر داسې خلک چې په اصل کې د نورو مسلکونو خاوندان دي خو د خپل ذوق، استعداد او مطالعې له مخې په اجتماعي، اخلاقي او ان په عقیدوي او شرعي موضوعاتو کې کتابونه او مضامین لیکي. خو په مقابل کې یې ډېر داسې دیني عالمان شته چې په ټول عمر کې یې یومضمون هم ندی لیکلی.
زه په لسګونو داسې عالمان پېژنم چې ښه مشهوراستاذان دي، خو تر اوسه یې په هېڅ موضوع کې نه یو مضمون لیکلي، او نه یې هم کومه وینا او یا درس او موعظه ثبت کړې او خلکو ته یې د خپل دیني مسؤولیت د ادا کولو په مقصد وړاندې کړې ده.
آیا دا به ډېر د تاسف ځای نه وي چې په سلګونو زره علماء د همدې ملت په مصاریفو علوم زده کوي، خو له زرګونو صفحو علومو څخه چې حاصلوي یې لس صفحې هم بېرته په اسانه ژبه د خپل ملت د پوهولو پخاطر د هغه مخې ته نه ږدي؟
زموږ ګیله دا نده چې علماء د خلکو لارښوونه نه کوي، بلکې ګیله دا ده چې هر څه په شفاهي ډول تر سره کېږي او تأثیر یې هم تقریباًپه هماغه یوه مجلس او یوه ځای کې محدود پاتې کېږي.
زموږ علماؤ به په سلګونو زره موعظې، ویناوې او درسونه ورکړي وي، خو له هغو ټولو څخه یې یو فیصد همصوتي او یا لیکلې بڼه په لاس کې نه لرو. خو که د دې هر څه یوه لړه برخه هم لیکل شوې او یاهم په آواز ضبط شوې وای او بیا انټرنیټ ته پورته شوې وای نو اوس به مونږ د عربي نړۍ د علماؤ په څېر د خپلو علماؤ په لسګونو زره مضامین او ویناوې درلودلې.

**د لیکوالۍ پراخه ساحه او بې شمېره موضوعات:**

ډېر دیني علماء چې د لیکوالۍ استعداد لري خو عملاً د لیکلو ډګر ته ندې ور داخل شوي هر وخت چې د څه لیکلو غوښتنه ورڅخه وشي نو

ځواب يې دا وي چې زه نو څه وليکم؟ په کومه موضوع کې يې وليکم؟ څنګه يې وليکم؟ او داسې نور. خو حقيقت دا دی چې ديني علماء تر بل هر چا زيات د ليکلو لپاره موضوعات لري. ديني علماء بايد خلکو ته قرآني علوم لکه ترجمه، تفسير، تجويد، قراني قصص او حکايات، شرعي احکام، د قرآن کريم علمي اعجاز، په هره زمانه کې د قراني آيتونو لپاره د مصداقونو جوتول او د انساني ټولنې بېلابېلې طبقې له قرآن کريم سره اشنا کول او نور ډېرموضوعات شته چې بايد علماء يې خلکو ته بيان کړی او پدې موضوعاتو کې ښې ډېرې ليکنې وکړي.

همدارنګه د رسول الله صلی الله عليه وسلم د زرګونو احاديثو ترجمه کول، معناوې او مصداقونه يې د خلکو په ژبه په آسانه بيانول، او د هغو په رڼا کې د خلکو د ژوند مسائلو او ستونزو ته د حل د لارو چارو لټول، او ټولنې ته د صحيحو او موضوعي احاديثو ورپېژندل، د فقهي احکامو لپاره د احاديثو دليلونه راوېستل، د احاديثو په اړه د مغرضو مستشرقينو (هغه کافر علماء چې اسلام يې زده کړی) او د نورو بې لارې ډلو او طائفوله طرفه د راپورته کړل شويو شکوکو او شبهاتو په علمي بنسټونو ردول، او په احاديثو پورې په لسګونو اړوند نور ټول هغه موضوعات دي چې افغان علماء يې بايد په پښتو، فارسي او نورو محلي ژبو وليکي او انټرنيټ ته يې ور پورته کړي.

د رسول الله صلی الله عليه وسلم د زرګونو اصحابو د ژوند په زرګونو واقعات چې ټول په عربي ژبه کې ساتل شوي دي هم د علماؤ لپاره د ليکنې پراخ موضوعات دي چې بايد په پښتو، فارسي او نورو افغاني ژبو کې يې خلکو ته وړاندې کړي. ځکه چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم اصحابان د دې امت لپاره د هدايت ستوري دي، او د هغوئ ايمان زموږ لپاره د ايمان معيار دی لکه چې الله تعالی فرمايي:

﴿فَإِنْ ءَامَنُوا۟ بِمِثْلِ مَآ ءَامَنتُم بِهِۦ فَقَدِ ٱهْتَدَوا۟ۖ﴾ البقرة: ۱۳۷

همدارنګه سیرت النبي بل هغه مبارک علم دی چې په عربي او نورو اسلامي ژبو کې په زرګونو کتابونه ورکې لیکل شوي او په رڼا کې یې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د ژوند ټول تشریعي، اخلاقي، سیاسي، حربي، سفارتي، اجتماعي، اقتصادي، تربیوي او نور اړخونه بیان شوي دي. خو زموږ په افغاني ژبو کې تر ټولو بې پانګې مضمون همدغه د (سیرت النبي) علم دی.

په پښتو او فارسي کې ښايي د سیرت ټول لیکل شوي او ژباړل شوي کتابونه د ګوتو په شمېر وي. زموږ په زرګونو علماء که د سیرت موضوعاتو په اړه یو یو مضمون هم په مفصل شکل ولیکي ښايي په ډېر لنډ وخت به دغه تشه ډکه شي او د ټولني افرادو ته به مو د پیغمبر صلی الله علیه وسلم د ژوند ټول اړخونه ورمعلوم شي ترڅو په هر څه کې د خپل ګران پیغمبر صلی الله علیه وسلم پر پله پل کښېږدي.

د افغانانو د دیني علومو طالبان او عالمان ترهر څه ډېر وخت د فقهې شریفې د کتابونو په لوستلو، تدریس او مطالعه کې تېروي. د دې کار نتیجه باید دا وای چې افغان علماوو باید تر بل هر چا په اسلامي او حنفي فقهې کې ډېر معاصر فقهي کتابونه لیکلي وای. خو په عملي میدان کې وینو چې ډېر لږ نوي فقهي کتابونه په پښتو او فارسي کې لیکل شوي او یا ترجمه شوي دی.

د فقهې شریفې علم خو په حقیقت کې د هرې زمانې د خلکو د ژوند مشکلاتو او مسائلو ته د شریعت په رڼاکې ځواب ویل او هغو ته د حل لټول دي. دا چې د هرې زمانې د خلکو د ژوند بڼه بېله او مسائل یې سره جلا وي، او د هرې زمانې اجتماعي، حقوقي، تقنیني، تجارتي، سیاسي، زراعتي، صنعتي او بین المللي مسائل د زمان، مکان، حالاتو او نویو واقعاتو په نظر کې نیولو سره له نورو زمانو سره فرق پیدا کوي، نو باید د فقهې علماء په هره زمانه کې د موجودو معاصرو مشکلاتو د حل او ځواب لپاره د شریعت د نصوصو او د فقهې شریفې د اصولو په رڼا کې نوي

ځوابونه بیان کړي چې دا کار د نویو څېړنو، مطالعاتو او تألیفاتو د رامنځته کېدلو تقاضا کوي.

خو د تأسف ځای دی چې په افغاني ټولنه کې ډېر لږ علماء داسې شته چې د نویو ضرورتونو لپاره نوې فقهي لیکنې کوي. نور ټول یې هماغه کتابونه تدریسوي چې اته سوه یا زر کاله د مخه د هماغې زمانې د حالاتو، شرایطو، عرفونو، وزنونو، پیمانو، مصالحو او اصطلاحاتو په نظر کې نیولو سره د هماغې زمانې د خلکو لپاره لیکل شوي ول.د دې خبرې مقصد دا ندی چې د پخوانیو علماوو تألیفات دې د درسي متنونو په حیث نه تدریسېږي، بلکه مقصد یې دا دی چې علماء دې د دې زمانې خلکو ته په ساده او عام فهمه ژبه فقهي کتابونه رامنځته کړي تر څو په خلکو کې په پراخه پیمانه د دین د احکامو علم خپور شي.

دا هر څه په داسې حال کې روان دي چې د عربي هېوادونو، هند، پاکستان، بنګله دیش او افریقایي اسلامي هېوادونو علماء په خپلو خپلو فقهي مذاهبو کې په لسګونه زره نوي فقهي تألیفات او مقالې لري. په کار ده چې افغان علماء هم په اسلامي او حنفي فقه کې نوي تحقیقات او څېړنې ولري. ځکه چې زموږ په ژوند کې هم په زرګونو داسې فقهي مسائل او بدلونونه راغلي دي چې ښایې ځواب ورته د فقهې شریفې په پخوانۍ بڼه کې په مناسب شکل پیدا نشي.

له نېکه مرغه د اسلامي فقهې د اصولو جوړښت هم داسې دی چې د هرې زمانې لپاره تازه ګي او د انکشاف صلاحیت لري. دا به نو اوس زموږ د خپلې تمبلۍ لپاره یوازې بهانه لټول وي چې موږ یوازې پر پخوانیو کتابونو د دې لپاره اکتفا کوو چې هغه په تاریخي لحاظ منل شوي کتابونه دي. دا سمه ده چې موږ له هغو کتابونو په هېڅ صورت مستغني کېدلی نه شو، ځکه چې هغه د اسلامي امت د علماوو له لوري د شرعي نصوصو د اجتهادي فهم یوه بې مثاله تشریح او قېمتي ذخیره ده. خو ښه خبره دا ده چې هغه دې هم ولوستل شي او د هغو د اصولو او قواعدو په

رښا کې دې د نویو مسائلو لپاره نوي کتابونه په پښتو او فارسي کې هم ولیکل شي، ځکه چې زموږ د ولس یوازې یو یا دوه فیصده وګړي په علمي عربۍ ژبې پوهېږي.
نو ویلاي شو چې د اسلامي فقهي ابحاث او بابونه د افغانو علماؤ لپاره د لیکوالۍ تر ټولو ښه مناسب او پراخه مجال دی چې لیکنې ورکې وکړي او دا بهانه نوره پرېږدي چې مونږ نو څه ولیکو؟ څنګه یې ولیکو؟ چاته یې ولیکو؟ او داسې نور.
پر پورتنیو موضوعاتو او ډګرونو علاوه زموږ د ملت د تېر او اوسني ستر جهاد چې د روسانو، کمونستانو، امریکا او نورو غربي یرغلګرو هېوادونو په مقابل کې یې وکړ او کوي یې په اړه هم په لسګونو زره موضوعات او حادثې داسې شته چې خورا ډېر دیني، تاریخي، فرهنګي، علمي، عاطفي، ملي، اقتصادي، اخلاقي او وجداني اهمیت لري چې باید لیکنې ورباندې وشي، توثیق شي او د قربانیو د دغې لوېې ملحمې چې درې نیمې لسیزې یې ونیولې ژوندی تاریخ راتلونکو نسلونو ته وساتل شي.
زموږ ملت په تېرو درې نیمو لسیزو کې په زرګونو د جګړو، قربانیو، شهادتونو، شجاعتونو، هجرتونو، بمباریو، زندانونو، جنایاتو، تجسسونو، وفاګانو او جفاګانو صحنې ولیدلې چې پر هرې یوې یې یو یو کتاب لیکل کېدلی شي خو افسوس چې ډېرې لږې دغه صحنې په لیکلې بڼه ساتل شوې دي او ډېرې یې د خلکو له ذهنونو څخه وتلې دي او یا یې خاوندان او اتلان نور په دې دنیا کې نشته، نو ځکه خو زموږ د ملت په لکونو د پند او عبرت واقعي کیسې او صحنې زموږ د ټولنې اجتماعي حافظې ته ور ونه سپارل شوې.
دا چې د علم طالبان او علماء د خلکو د دین، ایمان، اخلاقو او معنوي ارزښتونو د ساتلو او پاللو مسؤولیت پر غاړه لري او د نسلونو روزل د هغوئ اصلي وظیفه ده، نو دوئ باید تر بل هر چا ډېر د خپل ملت د دیني

او اجتماعي ارزښتونو په خوندي کولو او پاللو کې مخکې وي. او تر بل هر چا بايد پدې موضوعاتو کې ډېرې ليکنې وکړي.
افغان علماء بايد دې ته هم وګوري چې که پرونيو علماؤ په هرې موضوع کې ليکنې نه واى کړې نو اوس به دوئ موجود په سلګونه زره ديني او اجتماعي کتابونه په عربي او نورو ژبو کې له کومه کول؟ همدارنګه بايد دوئ هم د خپلې زمانې علمي او فرهنګي لاسته راونې د سبا د نسلونو لپاره په ليکلې بڼه پرېږدي. او که داسې و نه شي نو د هر عالم له مرګ سره به د هغه علم هم ومري.
د کمپيوټر او انټرنيټ په دې زمانه کې چې يو بله ډېر مهمه آسانتيا رامنځته شوې ده هغه پر چاپ او نشر د انحصار او محدوديت له منځه تلل دي. پخوا به د چاپ او نشر وسائل هم د حکومتونو په لاس کې ول او د خپرولو واک او اجازه به يې هم د حکومت په انحصار کې وه.اول خو به چا په آسانه د کتاب د چاپولو اجازه نه شوه اخستلی، او که به يې په ډېر تکليف اجازه حاصله هم کړه نو بيا به يې د چاپ او نشر مصارف نه شول پوره کولی. او که به بالفرض کتاب يا مضمون چاپ هم شو، نو بيا به له يوې محدودې ساحې د باندی نه شو وتلای.
خو اوس کمپيوټر د چاپ چارې دومره آسانې کړي دي چې هر څوک چې په هر ځای کې هر څه وغواړي په ډېرې آسانۍ يې په ښه کيفيت، رنګينه بڼه او ښکلي ډيزاين د هرچا تر ځارنې ليري په خپله ترتيبولی شي، او تر ترتيب وروسته يې چې انټرنټ ته ور پورته کړي نو په يوه لحظه کې يې ټولې دنيا ته رسولی هم شي چې همدغه چاره اوس د اسلامی نړۍ په ټولو علمي مراجعو او فرهنګي مراکزو کې دود ده، خو افسوس چې زموږ ډېری علماء لاتر اوسه ورڅخه خبر هم ندي.
په عربي نړۍ کې خو تقريباً هر لوی عالم خپله وېبپاڼه لري چې په خپله او يا د هغوئ شاګردان او معاونين د هغوئ ټول تأليفات، مضامين، صوتي

او ویډیویي مواعظ او درسونه ورکې خوندي کوي، او ټولې دنیاته یې په ډېرې آسانۍ وړاندې کوي.

**یو ارمان او یو مهم وړاندیز:**

کاشکې یوه ډله ځوان علماء چې له کمپیوټراو انټرنټي خدماتو سره آشنایي ولري د ځینې شتمنو خلکو په مالي مرسته افغاني ټولنې ته د اسلامي علومو د رسولو په مقصد یوه انټرنټي علمي ټولنه جوړه کړي، چې لاندې یاد شوي او یا هغو ته ورته علمي او فني کارونه تر سره کړي:

۱ - دغه علمي انټرنیټي ټولنه باید د قرآن کریم ټول په پښتو او فارسي لیکل شوي تفسیرونه، ترجمې او په قراني موضوعاتو پورې اړوند کتابونه راجمع کړي، کمپوز یې کړي او بیا یې په منظم ډول په کمپیوټري آرشیف کې خوندي کړي او خلکو ته یې د خپلې ویبپاڼې له لارې وړاندي کړي.

۲ - ټولنه بایدهڅه وکړي چې قرآن کریم د پښتو او فارسي ترڅنګ نورو هغو افغاني ژبو ته هم چې لیکلې بڼه لري ترجمه کړي او په هغو ژبو غږېدونکو ته یې تقدیم کړي.

۳ - ټولنه باید ښه تکړه او ماهر علماء توظیف کړي چې له عربۍ او نورو ژبو مشهور او مهم تفاسیر ترجمه کړي او افغانانو ته یې عرضه کړي، که څه هم چې داکار به یو څه وخت ونیسي.

۴ - ټولنه باید هڅه وکړي چې د رمضان د میاشتي د قرآني دورو د مشهورو او معتمدو علماؤ مکمل تفسیرونه او ترجمې په آډیو (آواز) او ویډیو( تصویري) شکل ثبت کړي او د خپلې ویبپاڼې له لارې یې ټول کال خلکو ته وړاندې کړي. دا کار به یو څه محدود مصاریف وغواړي خو زموږ په ټولنه کې ډېر اهل خیر او دین پالونکي تاجران او شتمن خلك شته چې دغه ډول مصاریف په خوشحالۍ پر غاړه اخلي، خو چې څوک یې یو ځل پر اهمیت او افادیت وپوهوي.

۵ - ټولنه باید منلي او معتبر علماء توظیف کړي چې د رسول الله صلي الله علیه وسلم د احادیثو کتابونه لکه مشکوة المصابیح، صحاح ستٰه،

طحاوي، د امام مالک مؤطأ او د امام احمد مسند او نور مهم د احاديثو، رجالو او تراجمو کتابونه پښتو او فارسۍ ته ترجمه کړي. دا کارونه افغاني علماء همدا اوس هم په مدارسو او حجرو کې په نیمګړي ډول هر کال تر سره کوي، خو دا هر څه په درسي او شفاهي شکل کې دي چې تدوین او توثیق ته ضرورت لري. که یو یو کتاب په پنځو شپږو کلونو کې هم په علمي ډول ښه ترجمه شي، بیا به هم څو کاله وروسته ټول احادیث له عربي متن سره په خپلو ژبو کې ولرو.

د احادیثو د علم، او له هغو څخه د دفاع په اړه هم په سلګونو کتابونه لیکل شوي دي، چې ټولنه یې باید ځینې ډېر مهم ورڅخه ترجمه کړي او یاعلماؤ ته وظیفه ورکړل شي چې د دې موضوعاتو په اړه هم کره لیکنې وکړي.

۶ – ټولنه باید د پرلیکه (آنلاین) استفتاء او فتوي په اړه هم له منل شويو علماؤ سره په تماس کې یوه آسانتیا برابره کړي، ترڅو خلک د خپلو ورځنیو چارو په اړه له علماؤ څخه پوښتنې وکولای شي او خپل ژوند دشريعت مطابق برابر کړي.

۷ – په وروستیو دیرشو کلونو کې چې افغاني ټولنه د جګړو او اجتماعي اضطراب له امله بې سرپوښه او بې قیادته شوه نوله ډېرو فکري او عقیدوي فتنو سره یې هم مخه شوه، او ډېرو کفري فرقو او منحرفو نظریاتو لکه کمونیزم، ډیموکراسۍ، لیبرالیزم، مسیحیت، بهائیت، قادیانیت، رافضیت، الحادي عقلانیت (Rationalism)، پر آحادیثو بې باوري، نړیوالتوب (globalization)، هندویزم او نورو فکري مذاهبو خپل افکار افغاني ټولنې ته د بېلابېلو فرهنګي ټولنو، مؤسساتو، راډیوګانو، تلویزیونونو، انټرنیټ او کتابونو له لارې راصادر کړل، چې دلته یې تر یوه حده منونکي هم پیدا کړل.

خو د دې معاصرو واردو شویو فتنو د ردولو، مخنیوي او د هغو د ماهیت د توضیح لپاره زموږ علماؤ یاخو هېڅ لیکلی کار ندی کړی، او یا یې هم

کار دومره کمزوری دی چې هېڅ تأثیر یې نه ښکاري، او د انټرنټ ساحه خو یو مخ ورڅخه خالي ده.

په پورتني یادشوي مجال کې په مؤثر ډول کار کول پر علماوو د وجوب حد ته رسېدلي دي، ځکه چې په لکونو خلک کله د کمونیزم په لومه کې له دین څخه وتلي وي، او کله د دیموکراسۍ او لیبرالیزم په شوق کې د الله د دین د تطبیق او حاکمېدلو په خلاف ولاړ وي، او کله یې هم په ښکاره خپل دین پرې ایښی وي او کوم بل کفري دین او یانظریات یې منلي وي. که علماء پدې ډګر کې په جدیت او موثریت کار ونه کړي نو کېدای شي چې ولس به مو په راتلونکي کې له ډېرو فتنو سره مخ شي.

یاده شوي انټرنیټي ټولنه باید پدې ډګر کې کار کول له خپلو اولویاتو څخه وګڼي او ښه ډېرکار ورکې وکړي.

**انټرنیټي کتابتون:**

یوبل مهم کار چې د افغاني ټولنې او علماؤ ورته ډېره اړتیا ده هغه د یوه انټرنیټي اسلامي کتابتون رامنځته کېدل دي چې ټول هغه دیني کتابونه چې په افغاني ژبو کې تر اوسه لیکل شوي او چاپ شوي دي او په انفرادي شکل له ځینو خلکو سره په کورونو او یا کتابخانو کې موجود دي باید ټول بیا له سره په کمپیوټر ولیکل شي او له هغو څخه یو داسې انټرنیټي کتابتون جوړ شي چې هر څوک ورته په مجاني ډول لاس رسی ولري.

دا کار به له یوې خوا کتابونه د له منځه تللو له خطر څخه وساتي، او له بل لوري به د کتابونو د تشهیر او معرفۍ یو ښه فرصت برابر کړي، چې پدې ډول به په سلګونو دیني کتابونه او په زرګونو دیني موضوعات پوهنتونونو، مکاتبو، تعلیمي او څېړنیزو مراکزو او اشخاصو ته په یو ځای ډول لاسته ورشي، په ټولنه کې به اسلامي علوم په آسانه او پراخه پیمانه خپاره شي، تیارې به رڼا شي، او تر ډېره ځایه به د کفارو او بې لارې ډلو د فکري او فرهنګي یرغل مخه ونیول شي.

د همدغه کتابتون بله برخه ښايې له صوتې او ويډيويي موادو تشکيل شي، چې په زرګونو صوتي درسونه، مواعظ، اشعار، ترانې، کيسې، تاريخي ويناوي، د ماشومانو ادبيات او همدارنګه په سلګونو او زرګونو اسلامي ويډيويې البومونه او کلپونه چې زموږ د هېواد د مؤمنو پرګنو ويرنې او وياړنې ورکې عکاسي شوې دي خوندي شي، او معاصر تاريخ به مو په ژوندي او مأمون شکل راتلونکو نسلونو ته ور وسپېږي.

که چېرې زموږ د ولس ځو با احساسه او متدين شتمن او ملي تاجران د دغه ډول يوې پروژې د تمويل ترشا ودرېږي نو په ډېرو لږو مصاريفو به افغاني ټولنې ته ستر علمي او ديني خدمتونه تر سره کړي، او د هېواد د مستقبل ځوانان به له بې لاريتوب، شډلتوب، بې هدفۍ او بی علمۍ ځخه وژغوري. البته دا کار کوم ناشونی کار نه دی، بلکې په غربي او عربي نړۍ کې ډېرو ټولنو او حتي اشخاصو تر سره کړی دی چې زموږ لپاره د کار ښه مثالونه کېدلی شي.

ما ته خواوس د دې کار ترسره کېدل يو ارمان ښکاري چې د نوي نسل له علماؤ يې د پوره کېدلو هيله لرم، خو ليرې نده چې ځو د عزم، حوصلې او هدف خاوندان به يې په علمي ډول په پراخه پيمانه تر سره کړي، چې د دې کار ځينې نښې لا له همدا اوسه په ځينې افغانې ويپاڼو کې تر سترګو کېږي.

## د تخیل په دنیا کې له ازادۍ سره مرکه

کله کله د ځینې موضوعاتو د یادولو او پر هغو د نیوکو لپاره د تخیل اسلوب تر نور اسالیبو ډېر غوره وي، ځکه چې په دغه اسلوب کې د تعبیر او د واقعیتونو د تمثیل پراخ ظرفیت موجود وي او لیکوال کولی شي د ترخو واقعیتونو په اړه خپل احساس او پیغام د رمز په لطیفې او عاطفې ژبې لوستونکو ته ور نقل کړي او په اسانه هغو مفاهیمو او وضعیتونو ته د هغوئ پام ورواړوي چې کېدی شي په نورو اسالیبو کې د هغو بیان ورځخه یو څه ستغ شي.
دا چې افغانان د نړۍ یو آزادي خوښوونکی ولس دی او د پېړیو په اوږدو کې تل د آزادۍ د ګټلو او پاللو په مبارزو کې له ځینې نیمګړتیاوو سره سره په پرله پسې ډول مصروف پاتې شوي دي او خپل ډېر څه یې د دغه ارزښت په خوندي ساتلو کې په پوره شهامت مصرف کړي دي، نو په کار ده چې دغه ارزښت یې په فکري او واقعي ژوند کې نور هم ښه وپالل شي، او ټولو هغو خطرونو ته د دې ولس د بچیانو پام ورواړول شي چې د دوئ آزادي تهدیدوي او یا یې په اړه د دوئ شعور کمزوری کوي.
د دې لپاره چې د دغه ستر معنوي او اجتماعي ارزښت په پاللو کې ما هم ځان ورګډ کړی وی نو د تخیل په دنیا کې مې د آزادۍ له مفهوم سره د یو څو موجودو واقعیتونو په اړه دغه لاندې مرکه ترتیب کړې ده، هیله ده چې د هغې له لارې به مې مهمو مفاهیمو ته د خلکو پام وراړولی وي.
ازادي هغه ارزښتناك او بې مثاله نعمت دی چې د خپلواك او سرلوړي ژوند ټول دارومدار د همدې نعمت تر شتون او نه شتون پوري تړلی دی. که ازادي وي نو په ژوندکې خوندهم وي، او که ازادي نه وي نو بیا ژوند د عذاب یو بل نوم دی.
کله کله اشخاص د ازادۍ له برکته د قومونو او ولسونو حیثیت تر لاسه کړي، او کله بیا هم پوره پوره ولسونه د هغې د نشتوالي له امله په ولسونو کې هیڅ اهمیت نه لري.

ازادي هغه ښکلې قدرمن حالت او معنى ده چې سرلوړي ولسونه خپل ټول ماديات تر هغې قربانوي.
ازادي هغه ښکلې او پتمنه ليلا ده چې د وينښو او خپلواکو ولسونو مېړونه د هغې د ساتنې او پالنې په لاره کې له خپلو سرونو تېرېږي.
آزاد خبريال (غازي) له مودو مودو راهيسې په آزادۍ پسې لالهانده ګرځېده ترڅو هغه و ويني او مرکه ورسره وکړي. په هغې پسې يې ډېر ښارونه، غرونه، هېوادونه او نظامونه ولټول، ډېر ورپسې ستومانه شو، خو دا دی په پای کې وتوانېد چې له هغې سره په يو داسې ځای کې وګوري چې نوم يې د امنيتي شرائطو له امله نشي څرګندولی، خو له هغې سره يې يوه په زړه پورې مرکه کړې چې د لوستونکو مخې ته يې ږدو:
**غازي** :په پيل کې که مهرباني وکړئ او لوستونکو ته خپل ځان ورمعرفي کړئ.
**آزادي**: مننه! د ځان د معرفۍ خبره دې ښه وکړه، ځکه چې زه اوس په مسلمانه ټولنه کې يو ناپېژندل شوی او مجهول مفهوم ګرځېدلې يم. ډېره موده وشوه چې چا ډېره نه يم ليدلې. له خلکو هېره شوې يم، ځکه خو مې اوس څوك ډېره نه پېژني، که څه هم چې پخوا زه د مسلمانو ولسونو تر ټولو مشهوره پېژندګلوي وم.
زمانوم **آزادي** ده. زه په اصل کې يوه معنى يم، خو کله کله په ژوندون کې مادي بڼه هم غوره کوم. زه او آدم عليه السلام دواړه په يوه کال پيداشوي وو. وطن مې د زمکې پر مخ کوم خاص هېواد او سيمه نه ده، بلکې زه هر چېرې اوسېږم، خو له وينښواو مېړنيو ولسونو سره. او چې په هر ځای کې زمکه راباندې تنګه شي، او خپل راته پردي شي، نو بيا له هغه ځايه کډه وکړم او بل چېرې ولاړه شم.
زما او د انسان ترمنځ فرق دا دی چې هغه په خوراك او څښاك پايي، خو زه په غيرت، سرښندنې او قربانۍ. هغه مري، خو زه مرم نه بلکې کمزروې کېږم او بيا خپل شکل بدلوم.

**غازي**: د شکل له بدلولو مو مطلب څه دی؟
**آزادي**: یعني که لویه یم نو وړوکې شم. که په ژوندکې په یوې مادي بڼې بدله شوې یم، نو بیا بېرته معنی شم. که مې حکومتونه وشړي، او یا مې د ترلوکوښښ وکړي نو بیا زه د کوم دردمن با احساسه او عظیم انسان په مغزو کې ترې د یو څه مودې لپاره پټه شم او هماغلته د هغه د فکر په دنیا کې خپله پاچاهي کوم. زه بیا هغه دردمن با احساسه او عظیم انسان دومره مست اوسرشاره کړم چې د ټولې دنیا زورور ورته کمزوري ښکاري. هغه دومره مست او پیاوړی شي چې نه یې زولنې ایسارولی شي، او نه یې زندانونه عزم ورسستولی شي.
**غازي**: خلك خو تا په ښارونو کې لټوي، خو ته دلته په غرنوکې اوسېږې! موږ د دې مرکې لپاره په تاپسې ډېر ښارونه او ډېرې ماڼۍ ولټولې، خو هلته مو ونه لیدې، که لوستونکو ته پدې هکله څه و وایاست؟
**آزادي**: ډېره موده وشوه چې ما ښارونه او قصرونه پرې ایښي دي، ځکه چې زه هلته د مسلطو خلکو نه خوښېدم، هغوئ هلته زما د له منځه وړلولپاره ظالمانه قوانین جوړکړي ول، او چې قوانینو یې هم زه ورکه نه کړای شوم، نو بیا یې زما د له منځه وړلولپاره پردۍ لښکرې راوغوښتې، ناتارونه او تاړاکونه یې جوړکړل، زما ډېر پلویان یې ووژل، او ډېر نور یې د تورو تمبو شاته بندکړل. ما هم نور د ښارونو ژوند پرېښود او له ماڼیو راووتم، ځکه چې دا مې نشو زغملی چې لکه د دربار د وینځې په څېر په ماڼیو کې د جابرانو او مستکبرانو په خدمت کې و اوسم، او د هغوئ د توطیو قرباني شم. نو دا مې ښه وګڼله چې غرونو ته پنا یوسم.
**غازي**: پوښتنې خو مې نورې هم ډېرې دي چې وروسته به یې درڅخه وکړم، خو ته اوس دا راته ووایه چې ته خو ماشاءالله ډېره ښه پښتو وایې! دا دې چېرته زده کړې ده؟ او بله دا چې نورې دې کومې ژبې زده دي؟
**آزادي**: پښتو خو مې په افغانستان کې زده کړې ده، زه ډېره موده په افغانستان کې اوسېدلې یم، په سلګونو کلونه مې له افغانانوسره تېرکړي

دي. زه د افغانانو دومره خوښه وم چې خپلې په لکونو ککرۍ به یې زما د ساتنې او پالنې په لاره کې قربانولې. ما د هغوئ ټولې ژبې زده کړې دي، خو پښتو مې ځکه ښه زده کړې چې پښتنو به له ماسره بې سارې مینه درلوده. خو پدې وروستيو وختونوکې په دوئ کې هم ځینې خلك را پيدا شول چې (سيکولر) یې بولي، دوئ ډېر بې غيرته او بې دينه خلك دي، او له ما سره یې سخته دښمني ده. زه تر دې ځو کلونو د مخه هم په افغانستان کې له افغانانو سره اوسېدم خو...

**غازي**: نو بياڅه درپېښ شول؟

**آزادي**: آه، خپلواکو مجاهدو افغانو زه د خپلو وينو په بيه ساتلې وم، خو په دوئ کې يو ځو نا اهله او غلام صفته خلك چې له ماسره يې فطري دښمني درلوده او زه يې په افغانستان کې نه شوم زغملی، لاړل او له غرب څخه يې زما تاريخي دښمنان (د صليبي جګړو يرغلګر) راوبلل. هغوئ ټولو زما په خلاف نړيوال ايتلاف جوړ کړ، او زما په ضديې يوه بې رحمه جګړه پيل کړه.

د دښمن لښکرې، وسلې اوجنګي وسائل دومره ډېر ول چې زما پلويانو د سختو جګړو کولو او بې د ساريو قربانيو په ورکولو بيا هم د يرغل مخه ونه نيولی شوه. د سختوجګړو او د زرګونو ککريو تر قربانېدلو وروسته زه بيا له خپلو ځو محدودو پلويانو سره هماغو غرونو ته وختم چې ځوکاله د مخه ورڅخه راکښته شوې وم. يو څه پلويان مې خائنان او غداران هم وختل، هغوئ چې يو وخت يې ځانونه زما د پلويانو مشران او رهبران ګڼل، او د (مولوي)، (مجاهد) او (روحاني) نومونه يې هم پر ځانونو ايښي وو، خو د غيرت او وفا د امتحان پر ورځ په ډېرې بې شرمۍ د دښمن په صف کې ودرېدل.

د نورو ژبو په هکله به درته ووايم چې زه په عربي، چيچنيايې، کشميري، ازبکستاني او د قوقاز په ځينو ژبو هم پوهېږم، خو ترټولو زياته مې عربي ژبه خوښه ده، هغه چې ما له محمدصلی الله عليه وسلم، ابوبکر الصديق،

عمربن الخطاب، خالد بن الولید او نورو اصحابانو رضي الله عنهم څخه زده کړې وه، او لاتر اوسه عربان وړاندې خبرې کوي.
په عربۍ کې مې بیا د فلسطین، عراق، یمن او د سوریې د خلکو لهجې ډېرې خوښې دي. خو د خلیج او مصر د هېوادونو لهجې هېڅ خوند نه راکوي، ځکه چې هغوئ عربي له حده زیاته خرابه کړې ده، او انګریزي او عبري ( د یهودو ژبه) یې دومره ډېره پرې ورګډه کړې ده چې نور د عربۍ خوند ورکې نه دی پاتې.
**غازي** :تا خو د نړۍ ډېر ولسونه او قومونه لیدلي او ورسره پاتې شوې یې، او ډېرو ولسونو ستا تر سیوري لاندې د سرلوړۍ ژوند هم تېرکړی دی، که دا راته و وایې چې ته څنګه حاصلېدای شې؟ اویا په بل عبارت ستا او د ولسونو ترمنځ په کوموشرایطو دیووالي او یو له بل څخه د دفاع تړون رامنځته کېږي؟
**آزادي**: دادې ډېره ښه ا ضروري پوښتنه وکړه، ځکه چې له مسلمانو ولسونو اوس زما لاره ورکه شوې ده، او له ماسره د تعامل طریقه هم ورڅخه هېره شوې ده. دوئ ته زما د ورتلو لاره یوه وي، خو دوئ پر بله زما د ورتلو انتظارباسي. پدې هکله باید درته و وایم چې لومړۍ خبره خو دا ده چې زه چاته په خپله نه ورځم. زه هغه وخت ورځم چې دوئ مې وغواړي. او هغه ملت ته خو له سره ورځم نه چې تر مایې غلامي خوښه وي.
دویمه خبره داده چې زه هغه وخت یوه ملت ته ورځم چې په زرګونو او لکونو ځوانان یې له تورو او ټوپکو سره د جهاد او قربانۍ په څپاندو ولولو زما د ورتلو پرلارې په استقبال راته ولاړوي، او دي ته تیار وي چې د هغو خلکو سرونه ورغوڅ کړي چې دوئ ته مې له ورتللو ایساروي.
او دریمه خبره دا ده چې زه ولسونو ته په یوه شرط ورځم، او هغه دا چې زما د ساتني او پالني په لاره کې به له ټولو مادي ګټو تېرېږي. زه باید ورته تر ټولو مادي مصلحتونو ګرانه او محترمه و اوسم. هغه خلك چې تر ما ورته خپل ځانونه، مالونه او دنیا ګرانه وي، هغوئ کله هم مانشي

ساتلای، او کېدای شي چې په ډېره ارزانه بيه مې خرڅه کړي، او يا مې لاس تړلې دښمن ته ور وسپاري. او که په لنډو يې درته ووايم نو زما د حاصلولو وسيله هم جهاد او قرباني ده، او د ساتلو ضامن مې هم جهاد او قرباني ده او بس. او هر هغه ولس چې د جهاد او قربانۍ عزم او روحيه نه لري، زه له هغه سره هېڅ تړون او تعامل نه کووم.

**غازي:** ځيني خلك خو کوښښ کوي چې تا د ډيموکراسۍ، انتخاباتو، فرهنګي مبارزې، دعوت او دې ته ورته نورو وسيلو له لارې حاصله کړي، که دا راته و وايې چې ته له دې لارو هم ورځې؟

**آزادي:** لکه مخکې مې چې درته وويل زما د حاصلولو يوازينۍ لار جهاد او قرباني ده او بس. البته دغه نورې ټولې لارې ځوکۍ، منصب، شهرت، ډلې ټپلې جوړولو او سياسي مصالحو ته د رسېدو لارې دي، خو هېڅکله له دغو لارو ما نشي حاصلولی. دغه لارې ټولې د ځان او خلکو د تېر ايستلو لارې دي، بلکې دا ټولې هغه لارې دي چې غلو، ټګانو، په مسلمانانو کې د غرب ملګرو، سست عنصره او خېټه ورو سياسي مشرانو، د دين په نامه تجارت کوونکو او د (امريکايي اسلام) پلويانو خپلو اهدافو او خوندونو ته د رسېدلو لپاره جوړې کړې دي.

غازي صيب! ددې لارو په هکله به زه خپلې څو ترخې تجربې درته تېرې کړم، کېدای شي له هغوڅخه د دغوو لارو د افاديت څومره والی درته معلوم شي.

زه به خپل د سترګو ليدلی حال درته ووايم او هغه دا چې پدې نږدې ماضي کې يو ځل د شمالي افريقا د يوه هېواد خلکو چې عربان يې (الجزاير) او کافران يې (الجېريا) بولي زه د انتخاباتو او ډيموکراسۍ له لارې ور دعوت کړم. هغوئ په ډېره مينه، اخلاص او ولولو په مليونونو خلك زما استقبال ته راوېستلي وو، زما د راتګ يې په لسګونو کلونو انتظار هم وېستلی وو، په سلګونو مليونه پيسې يې هم زما د راتلو لپاره مصرف کړي وې. ښځې، نارينه، ځوانان او زاړه ټول زما د راتلو پر لاره د

استقبال لپاره راته ولاړ ول، خو افسوس چې دغه ټول خلك په تشو لاسونو او له وسلې پرته هسې د رنګينو بوټانو په څېر ولاړول.
کله چې زه چې د دوئ د استقبالیې قطارونو ته په ور رسېدو شوم، ناڅاپه يو قيامت جوړ شو، له هرې خوا وسله وال سړي چې خبري يې د وطن د خلکو په ژبه کولې خو دريشۍ يې پردۍ وې او نشانونه يې هم پردي ټومبلي ول، له موږ راتاو شول او دا په مليونونو خلك يې ټول يوه خوا او بله خوا پسې واخيستل، ځينې يې ووژل، او ځينې يې وترل. ځينې نور يې تر پښو لاندې له خارو سره خاورې کړل، او ځينې يې لاس تړلي زندانونو ته بوتلل. يوازې يو څو تنه ترې په تېښته خلاص شول.
غازي صيب! ډېر بد حالت وو، هره خوا چيغې او کوکارې پورته کېدې، نارينه له خپلو ښځو ورك شول، او ښځې له خپلو سړيو او اولادونو. مسلحو غدی والو زما د استقبالیې لپاره ټولې ښايسته کړل شوې او رنګينې دروازې ونړولې، او بيرغونو ته يې اور وراچاوه. هېڅا ورته څه نشو ويلای، ځکه چې له خلکوسره وسله او د دفاع هېڅ وسيله نه وه. که به چا د څه ويلو جرأت وکړ نو سمدستي به يې سترګې ور وترل شوې او په ډبولو او ښکنځلو به نامعلوم لوري ته روان کړی شو. دريشۍ والاټوپکوالو زما استقبال ته د راوتليو خلکو مشران د بغاوت په جرم په زندانونوکې واچول. کشران يې لکه يتيمان د بل در ته محتاج او حيران کړل، او اولادونه يې ترې واخيستل او ټول يې په هغو مکتبونو کې شامل کړل چې همدې غدی والو د فرانسې په مرسته او فرمايش جوړ کړي وو چې څو ورځې وروسته بيا هماغه ټول ماشومان د کودتايي جنرالانو په مخکې په داسې حال کې په نمايشي مارش کې تېرېدل چې هلکانو يې (پتلونونه) او نجونو يې (ميني ژوپ) اغوستې وو، او جنرالانو ورته له عسکري موزيك لاسونه پړقول.
غازي صيب! که د الجزائر خلك مسلح وای، او د مقاومت توان يې لرلی، نو هېڅکله به هغو څو لنډغرو دغه قيامت وربانديې نه وای جوړ کړی.

**غازي**: ښه! نو تا ته بيا څه درپېښ شول؟
**آزادي**: ما مخکې هم درته و ويل چې ما څوك وژلی نشي.ما په همهغه ځای کې فوراً خپل شکل بدل کړ او غرونو ته مې مخه کړه.
څه موده وروسته بيا د ترکيې خلکو د (نجم الدين اربکان) په مشرۍ دعوت راکړ، هغه ډېر اخلاصمن انسان وو، ما دهغه له ملګرو څخه د دفاع او مقاومت د وسائلو پو ښتنه وکړه، هغوئ راته و ويل چې اوس دې شيانو ته ضرورت نشته، موږ اوس د شلم قرن په پای کې اوسېږو، او د اروپايانو ګاونډيان يو، له هغوئ مو د ديموکراسۍ، عدالت او تمدن اصول او اخلاق زده کړي دي. دلته نور د وسلې استعمال او جګړې ته ضرورت نشته، او زموږ پوځيان هم نور هغه د (کمال اتاترك) او (عصمت اينونو) لنډغر بې دينه بدمعاشان نه دي چې چې له دين سره يې دښمني درلوده، هغوئ اوس زموږ ډېر احترام کوي، او تا ته هم ډېر ډېر په درنښت ګوري.
غازي صيب ! (اربکانخېلو) د تخيل په دنياکې له الفاظو داسې رنګين جنت راته جوړ کړ چې تا به فکر کاوه چې د کوم ريښتيني واقعيت حکايت درته کوي.
ما چې د هغوئ دا منظمې او خوږې خبرې واورېدې نو يقين مې راغی چې دوئ لکه چې رښتيا هم په دعوت باندې ترکيه فتح کړې ده.
خو غازي صيب ! کله چې ورغلم هماغه د (الجزاير) ناورين بيا تکرارشو. دا چې وروسته بيا دې خلکو ما ته د غړولو سترګې نه درلودې، نو له بدې ورځې دوئ هم لاړل په اروپا ورننوتل، او دا دی اوس د (ناټو) په صف کې د مسلمانانو په خلاف ولاړ دي.
غازي صيب! زه نه پوهېږم چې د دې زمانې خلك ولې زماپه اصولو ځان نه پوهوي او د ورتګ بلنې راکوي؟!
د درېيم ځل لپاره د مصر خلك په څه خبره د خپل بوډا فرعون (حسني مبارك) په خلاف راپورته شول، څه واضحه دعوی او آجنډا يې هم معلومه

نه وه، خو ښځې او نارينه ټول سړکونو ته راوتلي ول، چا به ګډاوې کولې او سندرې به يې ويلې، چا به ګډوډ شعارونه پورته کول، چا به الله اکبر او نور اذکار او تسبيحات زمزمه کول، چا به ډيموکراسي ډيموکراسي چيغې وهلې، خو چې د لمانځه وخت به راورسېد نو کوم (ډېره خريلی پتلون پوش) به يې مخکې کړ، او ټول به ښځې او نر په چوکونو او سړکونو کې ورپسې ودرېدل.

عجيبه حالت وو، هېڅ نه معلومېده چې دوئ اسلامي حکومت غوښت او که يې ډيموکراسي غوښته، ټولو به (آزادي آزادي) نعرې وهلې، خو معلومه نه وه چې له (چا) او (څه شي) يې آزادېدل غوښتل؟ او دا ځکه چې هغوئ يوازې د (بوډا فرعون) مخالفت کاوه، نه د (ډيموکراتيك فرعونيت).
هغوئ به د فرعون ټول لښکر خپل لښکر ګاڼه، او د مسلمانانو او کفارو تر منځ يو والي ته به يې د (الوحدة الوطنية) يعنې ملي وحدت تر نامه لاندې خلك وربلل.

د مصريانو پدې ګډوله پاڅون کې يو ډول خلك راپورته شول چې ځانونه يې (نړيوال اسلامي حرکت)بلل، دې خلکو په همدې غوغا کې زما په نامه د (آزادۍ او عدالت) ګوندجوړ کړ. دوئ هم د اسلام او اسلامي حکومت خبره چندان په زغرده نه کوله، خو د (ډيموکراسۍ) او (قانوني دولت) چيغې به يې په واز کومي وهلې.

غازي صيب! دې خلکو زه مصر ته ور دعوت کړم، ما هم چې د دوئ مسلسلې مظاهرې، ګرمې ولولې او د آزادۍ په نامه ګوند وليد نو ورغلم، خو دا چې د الجزائر او ترکيې ترخې تجربې مې په ياد وې نو د(نړيوال اسلامي حرکت) له مشرانو مې جهاد ته د تياري او د دفاع د وسائلو په هکله وپوښتل، هغوئ راته وويل: دا خبرې نورې مه کوه چې خلك به د (طالب) او (القاعدې) ټاپه را باندې ولګوي، او بيا به مو د غرب هېوادونه، نړيوالې مؤسسې او بانکونه تأييد نه کوي.

ما چې هر څو ورته و ويل چې ماته دا بې رحمه پردي پالونکي جنرالان او بې دينه سيکولر او غرب پلوي سياستمداران رامعلوم دي، هغوئ مې له تاسې سره نه پرېږدي.خو دوئ به هرځل د وسلې له ضرورته انکار او په ډيموکراسۍ ټينګار کاوه، او ويل به يې چې موږ به د منبر، راډيو، تلويزون او فرهنګي مبارزې له لارې د فرعون له ملګرو جنرالانو داسې مجاهدين جوړ کړو چې هم به مصر آزاد وساتي، هم به فلسطين آزاد کړي، او هم به دوئ زموږ د (ډيموکراتيك اسلامي حکومت) داسې مجاهدين شي چې د افغانستان، عراق، سوريې او صومال له (سخت دريزو ترهګرو) به ډېر غوره وي.

غازي صيب! ما که هر څو ورته و ويل چې دفرعونانو پوځونه چې د غرب ابليسانو روزلي دي ټول سره يو دي، او زما او د اسلام دښمنان دي، خو دوئ به راته ويل چې دا خبرې مه کوه چې پدې خبرو زموږ (ملي وحدت) ته صدمه رسېږي.

حقيقت دا وو چې دوئ به خپله هم د فرعون له پاتې شونو جنرالانو وېريدل، خو ماته به يې په درواغو اطمينان راکاوه. بالآخره يوه ورځ هماغه فرعوني جنرالان چې دوئ د اسلام او وطن سپاهيان بلل په همدوئ پسې راپورته شول، د دوئ مشران يې ټول په زندانونوکې واچول، او کشران يې ورته د سړکونو پر سر تر بلډوزرونو لاندې کړل او په مسجدونو کې په زرګونو ووژل، او بيا يې د هغوئ مړي هم په بلډوزرونو را ټول کړل او اور يې ور واچاوه.

په هغه ورځ د رابعې په ميدان کې او د سړکونو پر سر چې کوم څه تر ټولو ډېر پراته وو او تر پښنو لاندې ليدل کېدل هغه د قرآن کريم مبارکې نسخې وې چې دې خلکو په شعارونو کې د پورته کولو او د تلاوت لپاره له ځانونو سره وړې وې، او هره خوا د مصري پوځيانو تر پښنو لاندې ليدل کېدې.

دې غولېدلیو هم ځان تېرویست او هم یې زه تېر وېستم. اوس مې نو پوخ تصمیم نیولی چې نور به نه د دغه ډول خلکو په دعوو او ویناوو باور کووم، او نه به هم کله د دوئ وطنونو ته سر وربښکاره کړم. دوئ خو هسې هم د زولنو او زندانونو معتادان دي او په غرونوکې د آزادۍ تر ژونده په زندانونو کې ریاضتونه خوند ورکوي خو زه یې په شرمونو وشرمولم.
**غازي**: محترمې ازادۍ! راځم یوې بلې مهمې پوښتنې ته او هغه دا چې موږ خو ډېر ځلې له خلکو دا هم اورو چې په غرب کې ډېره آزادي ده، او حتی چې غربي مشران ځانونه د آزادۍ اتلان بولي، او هر وخت دا دعوه هم کوي چې هغوئ به د نړۍ نورو ولسونوته هم آزادي وربښي، خو پدې نه پوهېږو چې ته اوس رښتیا هم په غرب کې له غربیانو سره یې؟ او که د هغوئ په مقابل کې د ولاړو مظلومو ولسونوپه طرف کې یې چې د دوئ له ظلمونو او استبداده ځانونه خلاصول غواړي؟ که په دې هکله لوستونکو ته یوڅه وضاحت وکړې؟
**آزادي**: غازي صیب! دا پوښتنه دې رښتیاهم ډېره مهمه ده، ځکه چې نن ورځ خو د غرب مېډیا تقریبا د ټولونړیوالو ذهنونه یرغمال کړي دي، او چې هرڅه وغواړي هغه ته درښتیا او حقیقت بڼه ورکوي او په دومره پراخه پیمانه یې تبلیغوي چې له چاسره یې د تکذیب اراده هم پاته نشي.
غربي مېډیا دا خبره رښتیا هم د ډېرو خلکو تر غوږو رسولې ده چې په غرب کې ډېره آزادي ده، خو مسلمانان باید پوه شي چې هغه زه (آزادي) نه بلکې هغه یوه بله ازادي ده. هغه له (دین) او (دینداري) څخه آزادي ده، هغه له اخلاقو او معنوي ارزښتونو څخه آزادي ده. هغه له شرف او حیاء څخه آزادي ده، هغه له انساني ترحم او عاطفې څخه آزادي ده. هغه له اصولو قوانینو، عادلو تړونونو او میثاقونو څخه ازادي ده. هلته لور له پلارڅخه ازاده ده. ښځه له خپل خاوند څخه ازاده ده. فحشاء، اخلاقي فساد، همجنس بازي او قمار له محاسبې او پوښتنې څخه آزاد دي. هلته انسان ته مطلقه آزادي ورکړل شوې چې په هر ډول چې غواړي له انسانیت

ځخه ووځي وتلی شي، او هېڅوك يې د انسانيت په ضوابطو کې بند نشي ساتلی. او ان تر دې چې هلته دا آزادي هم شته چې د برطانيې د وليعهد ميرمن دې له بل چاسره د خپلو جنسي اړيکوخبرې د ملت په واړندې په تلويزيون کې هم وکړي.

تر دې ورتېره دا آزادي هم شته چې نارينه دې له بل نارينه سره واده وکړي، او قانون دې د هغوئ د حقوقو دفاع او ساتنه وکړي، او د مسيحي کليسا (پادري) دې ځه اعتراض هم پرې ونه لري، ځکه چې هغه په خپله هم ډېر هغه واړه ماشومان د خپل هوس ښکار کړي وي چې کورنيو يې د ديني زده کړې او د برکت د حاصلولو لپاره (مقدسې کليسا!!!؟) ته ورلېږلي وي.

او دا خبره چې هغوئ غواړي نورو ولسونو ته آزادي ور وبښي، دا هسې يوه د درواغو دعوی ده، ځکه چې همدغو غربيانو يو وخت تقريباً د نړۍ د نيمو اوسېدونکو (ربښتني) آزادي سلب کړې وه، د هغوئ هېوادونه يې استعمارکړي وو، او د خلکو هر ځه يې د خپل ځان ګرځولي وو. خو کله چې ولسونو د خپلې تورې په زور هغوئ تېښتې ته اړ کړل، او له خپلو هېوادونو يې وشړل، نو بيا يې د ولسونو د بيا غلام ګرځولو لپاره دا ډنډورې وغږولې چې موږ نور ولسونه ازادوو.

د هغوئ د ازادۍ ښښلو مثالونه خو تاسې خپله په خپل هېواد افغانستان او هم په عراق کې وليدل چې ځو مره خلك يې د ژوند له قيده آزاد کړل؟ ځومره يې بې کوره کړل؟ ځومره ميندې يې بورې کړې؟ ځومره ماشومان يې يتيمان کړل؟

غربيان په حقيقت کې هېوادونه له خپلو اصلي اوسېدونکو آزادوي، د هغوئ له خپل حاکميت ځخه يې آزادوي او بيايې يا عملا په خپله اداره کوي، او يا يې خپلو روزل شويو غلامانو ته ورسپاري. نو زما او د غربي آزادۍ تر منځ بايد فرق وپېژنئ! زه د سعات سرچينه يم، او هغه د بدبختۍ کنده.

**غازي**: تاسو مخکې و ویل چې ډېر وخت له افغانانو سره پاتې شوې یاست، له افغانانو سره ستاسو د تجربې حاصل څه دی؟
**آزادي**: اکثره افغانان ډېر مېړني خلك دي، خو په افسوس باید و وایم چې پر ما مین دي خو قدر مې نشي کولی. کورته مې ور بولي خو پاللی مې نشي. زما لپاره له ډېرو شیانو تېرېږي، خو له مشرۍ او زعامته په خپلو منځونو کې یو بل ته نه تېرېږي. د راتلو انتظار مې ډېرکوي، خو چې ورته ورشم نو بیا راڅخه په نورو شیانو مشغول شي. ملایان یې سبقونه ډېر وایي خو خلکو ته دین لږ ور رسوي.
او په افغانانوکې ځیني داسې خلك هم شته چې ته به وایې د دوئ ختمه د غلامۍ په اوبو لمده شوې ده. که انګریز ورشي هم دوئ به یې غلامان وي، که روسان ورشي هم دوئ به یې غلامان وي، که امریکایان ورشي هم دوئ به یې غلامان وي. دغه ډول خلك په افغانانوکې لږ دي خو ډېر زرنګ او چالاکه خلك دي او له هرې زمانې سره ځان برابروي. دوئ کله د (مقاومت سنګرداران) شي او کله بیا د (ډیموکراسۍ قهرمانان). خو دا خلك بیا ډېر ژر له منځه ځي.
یو کار چې افغانان په مجموعي ډول ورکې تر نورو ولسونو غښتلي دي، هغه دا دی چې زما د حاصولو په لاره کې له قربانۍ او سرښندنې نه ستړي کېږي. هر نسل یې تر پخواني نسله د لویو حماسو زېږونکی او د بدلونونو راوړونکی وي.
**غازي** : ستا په اړه مې یوه بله تاریخي پوښتنه په ذهن کې وه چې ما ویل په خپله به یې تاڅخه کووم، او هغه دا چې ځیني (سیکولر) افغانان دعوی کوي چې هغه مخکې ځل افغانستان ته (امان الله خان) راوستلې وې، او ستا د راوستلو افتخار هم د هغه په نصیب شوی وو. تا خو به هغه وخت هر څه په خپلو سترګو لیدلي وي، که دا راته ووایې دا خبره څومره حقیقت لري؟

**آزادي**: د ی‌یکولرو په خبره کله هم باور مه کوئ! هغوئ ډېر مکار او درواغجن خلك دي او دا خبره يې هم سپين درواغ دي. د امان الله خان چې خپل ذهن او فکر د انګرېز د افکارو او نظرياتو له غلامۍ آزاد نه وو نو افغانستان به يې له هغوئ څه آزاداوه؟ او زه به يې څنګه افغانستان ته وروستلم؟

حقيقت دا وو چې زه ملي غازيانو او د انګريز په خلاف راپورته شويو مجاهدينو وروغوښتلم. خو کله چې ورغلم د امان الله خان راسره ورانه شوه، ځکه چې هغه غوښتل افغانستان د غرب پر لاره روان کړي، خو ما او غازيانو ورسره نه منله، نو يې له خپل خسر (محمود طرزي) سره چې په افغانستان کې د سيکولريزم پلار ګڼلی کېږي او په شام او ترکيه کې د ترکيې له (سيکولرانو) او د شام له (عربي مسيحي نشنلستانو) د سيکولريزم او نشنلزم مرض ورنقل شوی وو زما د له منځه وړلو مشوره وکړه. امان الله خان او طرزی دواړه د شاهي کورنۍ له ډېرو ښځو سره پدې نيت اروپا ته ولاړل چې له اروپايانو سره پر هغوئ زما د خرڅولو خبره وکړي، هلته يې تقريبا اوه مستې مياشتې تېرې کړې، خپله (نيم لنډغره) ښځه يې چې د محمود طرزي لور وه هم د اروپا پاچايانو ته پدې مقصد وروښوده چې هغوئ په دې قانع کړي چې دی نور هغه افغان نه دی چې خپله ښځه له خلکو په پرده کې ساتي، او د افغانو ښځو د پردې د ساتلو پخاطر د اروپايانو په خلاف جنګېږي.

غازي صيب! کله چې امان الله خان د اروپا له اوه مياشتينۍ مستې دورې وطن ته ستون شو، نو سمدستي يې زما او زما د پلويانو په خلاف په پغمان کې د جنګ اعلان وکړ. زما ملګري يې بنديان کړل، او زما طرف ته بلونکي عالمان يې په ډېرو بدو نومونو ياد کړل، او ان تر دې چې هغوئ يې د انګريزانو ملګري وبلل پداسې حال کې چې د انګرېز له کوره دی تازه راستون شوی وو، او د هغوئ قوانين يې له ځانه سره افغانستان ته د عملي کولو لپاره راوړي وو.

دا هسې د (سيکولرانو) لخوا د امان الله خان د اسلام دښمنۍ د کرغيړن تاريخ د ښايسته کولو هڅه ده چې په سپين سترګۍ يې ترسره کوي. همدا اوس تاسې نه ګورئ چې د ده د فکر او تګلارې پلويان ټول له اشغالګرو امريکايانو، انګرېزانو او نورو درغليو کفارو سره ولاړ دي. او نه ګورئ چې د امان الله خان عکسونه همدا اوس د انګرېزانو او امريکايانو په لاس د جوړې ادارې پر دفترونو لګېدلي، که د مجاهدينو او غازيانو پر سنګرونو؟

**غازي** : ښه نو بيا ستا او دامان الله خان په جګړه کې څوك بريالي شول؟

**آزادي**: هغه ماتې وخوړه، ما او زما ملګرو هغه ته داسې ګوزار ورکړ چې په يوه ګوزار مو ايټاليا ته ورساوه، چې بيا يې کله هم افغانستان ونه ليد، او له هماغه ګوزاره يې د (پاپ) د کلي ترڅنګ سا وختته.

**غازي**: په افغانستان کې ستا په نامه پورې د تړلي يو بل څه پوښتنه هم درڅخه کووم او هغه د (آزادۍ راډيو) ده. که دا راته ووايې چې دارښتيا هم ستا راډيوده او که ستا په نامه د بل چا راډيو ده؟

**آزادي**: دا راډيو په ما پورې هېڅ اړه نه لري. دا نه د آزادۍ راډيو ده، او نه هم خلکو ته د آزادۍ تلقين ورکوي، بلکې دا د امريکا راډيو ده چې د امريکا د کانګرس لخوا تمويلېږي او اداره کېږي. د دغې راډيو اصلي نوم د(فري يورپ ريډيو) يعنې د آزادې اروپا راډيو ده. يعنې دا د هغې آزادۍ راډيو ده چې په اروپا کې وجود لري، او د هغې په هکله خو مې مخکې درته وويل چې هغه څه ډول آزادي ده. دغه راډيو په اسلامی نړۍ کې د غربي نظرياتو او مفاهيمو د خپرولو په مقصد د عراق او عربي نړۍ لپاره د (العراق الحر)، د ايران لپاره د (راديو فردا)، د پاکستان لپاره د (مشال راډيو) او د افغانستان او تاجکستان لپاره د (آزادۍ راډيو) په نامه خپرونې کوي، او تر ټولو غلام صفته خلك يې ورکې راټول کړي دي.

دا په حقيقت کې د(غلامۍ) راډيو ده، خو نوم يې ورباندې د (آزادۍ) راډيو ايښی دی. د دې مثال داسې دی لکه د(بدلمنې) ښځې چې نوم (طاهره) وي.

**غازي**: که دا راته و وياست چې بيا به افغانستان ته راځې او که نه؟

**آزادي** :ولې نه، افغانستان ته به ان شاء الله حتماً درځم، که د بل چا پخاطر نه وي نو د هغو فدايانو پخاطر خو به هرومرو درځم خپلې د ګل په څېر ځوانۍ يې د الله د دين د حاکمولو لپاره لوګی کړې. خو بيا هم يو دوه شرطونه لرم او هغه دا چې:

١ـ له درغلو يرغلګرو او د هغوئ لخوا له جوړې شوې ادارې سره به هېڅ ډول جوړجاړی نه کوئ، بلکې په جهاد به يې له منځه وړئ.

٢ـ په خپل وطن کې به (سيکولرو) او (نشنلستانو) ته د هېڅ ډول فعاليت اجازه نه ورکوئ، او نه به يې مشران په وطن کې پرېږدئ، ځکه چې دوئ له ماسره سخته دښمني لري، او تل زما په خلاف له کفارو سره شريکې توطيې جوړوي.

**غازي** :ښه، نو افغانستان ته به کله راځې؟

**ازادي**: په دې ورځوکې خو ما ته ډېر بلنليکونه له بېلابېلو هېوادونو لکه له افغانستان، عراق، سوريې، فلسطين، چيچنيا، ارتيريا، صوماليا، کشمير، ازبکستان ، د فلپاين له مندناو او نورو هېوادونو څخه رارسېدلي دي. ما هم خپل د ورتللوشرطونه دې ټولو ته بيان کړي، و به ګورو چې دکوم هېواد خلك زما شرائط تر نورو مخکې پرځای کوي. هر چا چې زما شرائط مخکې پوره کړل نو لومړی به هم هغوئ ته ورځم، او بيا ورپسې نورو ته. خو مخکې له مخکې له هېچاسره وعده نه کووم، ځکه چې نور د خلکو په تشو وعدو نه غولېږم. ترڅو يې چې زما شرطونه په عملي ډول پوره کړي نه وي، او زما دښمنان يې له منځه وړي نه وي د هېچا وطن ته نه ورځم.

**غازي**: که د وروستۍ پوښتنې په ځواب کې دا راته و وایاست چې نور خبریالان او ژورنالیستان چې غواړي له تاسو سره تماس ونیسي، نو څنګه کولای شي له تاسو سره رابطه وکړي، ځکه له ماسره ډېر نور مسلمان ژورنالیستان هم ول چې له تاسو سره یې لیدل غوښتل ، خو ځیني په ښارونو او ځیني نور یې راځخه د لارې په کړلیچونو کې پاتې شول؟

**آزادي** :نن سبا خو زه د اسلامي نړۍ په غرونو او ځنګلونوکې اوسم ، خو کله کله خپلو پلویانو ته په ښارونو کې هم سر ورښکاره کووم. له ما سره تر ټولو اسانه د تماس لار له مجاهدینو سره رابطه نیول دي، هغوئ ما په اسانه ورپیداکولی شي. خو یوه خبره په پام کې ونیسه او هغه دا چې زه یوازې له رښتینیو (آزادو) خبریالانو سره غږېږم، او د هغو خبریالانو پوښتنو ته هېڅ ځواب نه وایم چې د پردیو لخوا په کار ګومارل شوي وي،ځکه چې د هغوئ اکثره یې جاسوسان وي، او زما د دښمنانو لپاره کار کوي.

**غازي**: ستاسو له څرګندونو ډېره ډېره مننه، هیله ده چې یوځل بیا زموږ هېواد ته راشې، او موږ دې په ښادیو ښاد کړې.

**آزادي**: غازی صیب ستاسې له راتګ څخه هم ډېره مننه چې په خطرناکو حالاتوکې مو ځان ماته را ورساوه، او زما پیغام مو د نړۍ مسلمانانو ته ورساوه.

# اوسني جهادي ادب ته یوه کتنه

له تېرو څلوېښتوکلونو راهیسې په افغانستان کې اسلامي ادب او بیا په خاص ډول جهادي ادب ته دومره کار وشو چې کېدی شي د پښتو ژبې په ټول مدون ادبي تاریخ کې به ورته نه وي شوی.

په دې موده کې په سلګونو دیوانونه، شعري ټولګې او کتابونه چاپ شول، او په سلګونو زره ادبي لیکني وشوې. همدارنګه په سلګونو شاعران او لیکوالان د ادبي لیکنو په میدان کې راوټوکېدل او د جهاد او قربانیو په غېږ کې رالوی شول.

دغو شاعرانو او لیکوالو د خپل ملت د حماسو او ویرونو، د مظلومیت او مقاومت حیرانوونکي کیسې او داستانونه په خپلو لیکنو کې خوندي کړل، او د جګړې په اور او ورانې کې یې هم د انساني عواطفو او احساساتو پالنه وکړه. دوئ په خپلو ادبي لیکنو کې د جنګ تودوخه، د مقاومت صبر، د غازیانو عزم او ولولې، د فتوحاتو داستانونه، د شهیدانو ارمانونه، د یتیمانو سلګۍ، د کونډو خویندو ساندې او کوکارې، د بورو میندو آهونه، د هجرت له کړاونو ډك خو د برکت ژوند او نور ډېر څه په داسې دقیق، رسا او هر اړخیز ډول عکاسي کړل چې یو نوی ادبي مکتب یې رامنځته کړ.

دغه نوي ادبي مکتب د افغانانو په نوي نسل کې داسې اصیل بچیان وروزل چې دعزم کاروان یې د ولولو په بدرګه د فتحې تر منزله بدرګه کړ، او په روانه صلیبي جګړه کې د ټولې دنیا کفارو د فکر او ادب په ساحه کې مرعوب نه کړای شول .

**کومه ليکنه ادبي ليکنه ده؟**

ادب هغه بليغه وينا ده چې له عواطفو سرچينه اخلي، پر نفس تأثير کوي، لوړ افکار او عالي مفاهيم د ښکليو عبارتونو په جامه او د تخيل په تصوير کې تقديموي.

په پوړتني تعريف کې د ادب په اړه لاندې پنځه عناصر ياد شوي دي:

۱ – عاطفه: هره هغه وينا چې له احساس او عاطفې څخه راپورته شوی نه وي، ادبي وينا نه بلله کېږي.

۲ – تأثير: هره وينا چې خپل مخاطب متأثر نه کړي، په هغه کې احساس او جذبه، وجد او طرب راونه پاروي، ادبي وينا يې نشو ګڼلی.

۳ – لوړ افکار: لوېدلي، بې محتوا ، سپکې او بازاري ليکنې او وينا ادبي نشي ګڼل کېدای.

۴ – ښکلا: لفظي او معنوي ښکلا هغه مهم عنصر دی چې ادبي وينا له عامې وينا څخه بېلوي.

۵ – تخيل : تصوير او تخيل په ادبي وينا کې بل هغه مهم عنصر دی چې اديب د هغه په وسيله معدومې او غير محسوسې صحنې، پېښې، حرکات، او شخصيتونه د لوستونکو ذهن ته داسې ور وړاندې کوي چې ته به وايې دی يې رښتيا ويني او ورسره اوسې.

**د جهادي ادب اهميت:**

ادب په حقيقت کې د يوې ټولنې د اخلاقې او ذوقي(اصلاح) او يا (فساد) يوه مؤثره وسيله ده. که د يوې ټولنې ادبيات صالح، معياري، انسان جوړونکي او باکيفيته شي، نو د هغې ټولنې اخلاقي فکري، او ذوقي ژوند هم يوه معياري بڼه غوره کوي. او بالعکس که د يوې ژبې او ټولنې ادبيات فاسد ، بې خونده او بې کيفيته شي، نو همدغه (فساد) د ټولنې د افرادو په ژوند کې هم منعکس کيږي. له همدې امله خو ادب ټولنې ته د

مفاهیمو د تلقین او د انسانانو د نفسونو د صیقل کولو یوه غوره وسیله ده.

همدا ډول که په ټولنه کې جهادي ادب چې د ټولنې نوي نسل ته د جهاد، سربښندنې، غیرت، عزم، ثبات، زړورتیا، سرلوړۍ، سخا، له مظلوم څخه د دفاع او د ظالم په خلاف د درېدلو مفاهیم تلقینوي وده وکړي، نو همدغه صفات د ټولنې د ځوانانو په عملي ژوند کې راڅرګندېږي. او که د دغو مفاهیمو په خلاف د غلامۍ، تعیّش، هوس، شهوت، لندغرتوب، بې لارېتوب او پردیپالنې مفاهیم د ټولنې د ابیاتو موضوع وګرځي، نو بیا یې همدغه ډول آثار د افرادو په ژوند کې هم منعکس کېږي.

**د جهادي ادب اهداف:**

ادبیات ډېر ډولونه لري چې خلك یې په بېلابېلو نومونو یادوي لکه انساني ادب، عرفاني او صوفي ادب، عشقي یا رومانسي ادب او داسې نور. که د دغو اقسامو معانیو ته سرې ځیر شي نوګوري چې هر ډول ادب په یوه خاص مجال کې د انسانانو د ذوقونو، عواطفو، احساساتو او انګېرنو تمثیل او پالنه کړې ده، او هغه یې د ارتقا او کمال په لوري بیولی دی. همدغه ډول جهادي ادب هم خپل موضوعات او اهداف لري چې په لاندې ډول یې یادوو:

۱ – د کفر، ظلم، بې عدالتیو او استعمار په مقابل کې د ټولنې په افرادو کې د قربانۍ او مقاومت احساسات راپارول او ځپاند ساتل.

۲ – د مبارزینو د عزم او حوصلې لوړل او د هغوئ رزمي معنویات تقویه کول.

۳ – د جګړې د اور او لمبو په ژوندکې هم د مجاهدینو په زړونو کې انساني عواطفو ته دوه ورکول.

۴ – د جګړو، فتوحاتو، او حیرانوونکو حوادثو تفصیلات په ادبي قالب کې خوندي کول.

۵ – د جهاد او مبارزې د قهرمانانو ستایل، او ولسونه د هغوئ درناوي ته هڅول، او راتلونکو نسلونو هغوئ د اتلانو په حیث وړاندې کول.
۶ – د شهیدانو مرتبې او د هغوې یادونه تازه ساتل.
۷ – د جهاد او مبارزې په بهیر کې د منافقینو، له دښمن سره د متعاونو څېرو، خائنانو، غدارانو، او فرصت طلبو عناصرو د شرموونکو مواقفو غندل او بربنډول.
۸ – د دښمن د ذلت، وحشت، نا انسانیت، او ماتو بیانول او داسې نور.
د افغانستان په تېر څلوېښت کلن جهادي ژوند کې د ادبي لیکنو لپاره په لکونو داسې پېښې حوادث او د منفي او مثبت تأثیر لرونکې شخصیتونه په واقعي ډول وجود لري چې څو څو چنده تر تخیّل هم د لوړ معیار ارزښت لري، خو د خواشینۍ ځای دی چې تر اوسه دغو په زرګونو دغه ډول پېښې، کیسې او کرکترونه په کافي اندازه په ادبي شکل نه دي خوندي شوي او نږدې ده چې دغه په زرګونو د عالي کیفیت لرونکې حادثې زمونږ د ملت له اجتماعي حافظې څخه ووځي، او د وخت په تېرېدلو له خلکو هم هېرې شي.
د جهاد د روان ادبي بهیر یو بل اړخ چې ډېر د توجه وړدی هغه د ادبي فورمونو د عدم توازن مساله ده، پدې معنې چې ځینو فورمونو لکه شعر، ترنم، او ترانو ورکې ښه وده وکړه، خو ځینو نورو فورمونو لکه ادبي نثر، لنډې کیسې، طنز، ناول، ډرامې، او جهادي تیاتر و رکې ډېره لږه وده کړې ده. او کېدای شي چې کار سبب هم دا وي چې دغه نور نثری فورمونه د شعر په خلاف زیاتره علمي او فني اړخ لري، او په روان جهادي بهیر کې فني او علمي ادبي اړخونو ته ډېر کار ندی شوی، چې دغه تشه بیا تقریباً هغو لیکوالو او ادیبانو ډکه کړې چې (سیکولر) نظریات لري، او دین ته په ژوند کې په څه نقش قایل ندي. همدا علت دی چې ډېر تنکي شاعران او ادیبان مو د جهادي ادب په ډګر کې له یو څه وخت تېرولو وروسته د

(نشنلستو) او نورو سیکولرو جهتونو د دامونو ښکار کېږي چې دا بیا ډېره د اندېښنې خبره ده چې باید غم یې وخوړل شي.

**جهادي شعر او ترانې:**

په تېرو څلوېښتو کلونو کې د جهادي ادب په ساحه کې جهادي ترانو تر بل هر ډول شعر زیاته وده وکړه. جهادي ترانو د جهاد له پیله تر اوسه زموږ د ملت افتخارات، فتوحات، صبر او عزم ، مېړانه او قربانۍ په پراخه پیمانه د قوي او مؤثر آهنګ په لرلو سره زمزمه کړل. په زرګونو ترانې ولیکل شوې او د مجاهدو ځوانانو په غږونو په ډېر عالي کیفیت وویل شوې چې هر کور، هرې جبهې، هر سنګر، هر مکتب، او هر پوهنتون کې یې انګازې وکړې.

جهادي ترانې هغه وخت خپل اوج ته ورسېدې چې د طالبانو په وخت کې ورته په حکومتي سطحه د ثبت او نشر پراخ وسایل، ستوډیوګانې او راډیوګانې په خدمت کې شوې، او د (شریعت غږ) راډیو د عمومي ریاست د هنر او ادبیاتو په ریاست کې ورته د درمحمد (ګوهري) غوندې شاعر، ادیب ، مجاهد، عالم او فاضل شخصیت د خدمت ملا وتړله. ګوهري صاحب ترانې دومره میعاري کړې چې کله هم دومره نه وې معیاري شوې. دغه معیاریت په ترانو کې د ښه شعر، ښه پیغام، ښه آهنګ او ښه غږ په بڼه کې راڅرګند شو.

د طالبانو حکومت د وخت له راډیو خپرېدونکي ترانې د خلکو دومره خوښې شوې چې دکابل د مکروریانو له کمونزم او غربپالنې متأثرو ماشومانو به هم د کمونستانو د وخت د ( و ه سربازه یاره خېژه په مورچل باندې) پر ځای د (وه طالبه ګرانه پام کوه کابل باندې) ترانه له ځانونو زمزمه کوله.

د امریکا تر یرغل وروسته مرحلې ته که سرې وګوري نوویني چې جهادي ترانو د رزمي آهنګ تر څنګ د نوي دښمن د عمیقې پېژندنې په خوا کې د غرب فلسفه او فکري ارزښتونه هم تر زورورو ګوزار لاندې ونیول. که سړی

و وايي چې په دغه مرحله کې طالبانو د غرب د مېډيا او فرهنګي يرغل مخه يوازې په قوي پيغام او د ښه کيفيت په لرونکو ترانو ونيوله نو بې ځايه به نه وي.

جهادي شعر او ترانو په دغه مرحله کی دومره زور واخيست چې د موسيقۍ زاړه معتادان هم اوس تر سندرو ترانې ډېرې خوښوي او اوري يې.

جهادي شعر او اسلامي ترانو ته چې چا پدی ورستيو کې کومو شاعرانو خدمت وکړ هغوئ ټول يې د ډېر قدر وړ دي، ځکه چې هغوئ په هره مرحله کې مجاهدينو ته مناسب پيغام ورکړ. د د غو مجاهدو شاعرانو په منځ کې ځو داسې ځلېدونکي ستوري دی چې چې د جهادي شعر سرخېلان يې بللی شو. دغه خلك مطمئن، مولوي بدرالدين،مولوي ذاکر مهاجر، عبدالله، مزمل، وطن مل، ، سعيد ، ګوهری، مفتون، وثيق، حمدي، شپونکی، معتصم، عرفاني، فيضاني، تکل،حريت مل او نور دي. خو د دې خلك و نومونو يادول پدې معنی نه دې چې نورو څه نه دي کړي، بلکې دا هغه خلك دي چې د مايوسۍ،رعب، خاموشی او کړاونو په مرحله کې يې ځوانانو ته د رزم حوصله ورکړه، او د غرب د تبليغاتو جادو يې ورماته کړه چې وروسته بيا نورو هم د دوئ پر ليکه قدم واخيست.

د جهادي شعر او اسلامي ترانو په الهام د هېواد په پوهنتونونو کې هم د غلامانو او غلامي په خلاف سکوت ماتوونکی د حق اوازونه د ستېجونو له سره راپورته شول چې نه (د ځنځير له زوره و وېرېدل، نه يې د باطل پرستو سلام وکړ، او نه هم يې د پير له زوره وېريدل).

د دغه ډول ادبي جهادي جرأت او سبك امتياز ځوان با احساسه شاعر (سميع الله تړون) ته ور په برخه شو چې په بې ساري جرأت يې ځوانو شاعرانو ته يو نوی شعري سبك او ادبي مکتب ورمعرفي کړ.

شعر که هر څومره قوي او پيغام لرونکی هم وي خو چې له سوز او ګدازه ډك ترنم يې په رګونو کې ونه چلېږي په آسانه د خلکو زړونو او ذهنونو ته

لاړ نشي پیدا کولی، همدا وجه ده چې خوږ او له سوزه ډك ترنم د ښه شعر روح بلل کیږي.

په جهادي شعر کې د سوز او ساز د (روح) د پوکولو افتخار په دې حماسي بهیر کې الله تعالی له تېرو دریوو لسیزو راهیسې ملا( فقیر محمد درویش) ته ورپه برخه کړی دی. هغه (درویش) ته چې په غرونو، صحراوو، ښارونو، او ولسونو کې یې د ویښتابه انګازې خپرې کړې. سختو او دردوونکو حالاتو او درنو مشکلاتو او خنډونو (درویش) له خپلی ارادې ونه ایستلی شو. هغه په خپل عهد وفا وکړه، او د فاتح کاروان تر منزله د ویښ او مست ساتلو عزم یې پوره کړ. الله جل جلاله دې یې تل طلایي حنجره د حق د خواږه غږ د پورته کولو لپاره تازه ولري.

د (درویش) تر څنګ د طالبانو د حکومت په وخت کې یوې بلې جادویي حنجرې خاوند چې نړدې وو د خپلې جادویي حنجرې او د خپل قوي تأثیر په زور د مفسدې موسیقۍ تغر ورټول کړي، او د اسلامي ترنم په ډګر کې د یوه بې تاجه بادشاه په حیث خپل ځان ثابت کړي قاري فضل الدین (سراجي) وو. خو افسوس چې لکه د وریځې لمر د ډېر لږ وخت لپاره د کاروان پر سر راښکاره شو او بیا خدایزده چې د کومو تورو وریځو تر شا ورك شو.

قاري فضل الدین سراجي د ساحر آواز د لرلو تر څنګ نازك خیاله ادیب، د ښکلا انځورګر، د حماسو شاعر او د پاك قران حافظ هم وو. خو نه پوهېږم چې ولې یې او س په ادب کې احساس، په انځور ګرۍ کې ښکلا، او په شعر کی حماسه ورکه شوه؟ او ولې د قران د (الانفال) سورت ورکې د جهاد، او د (براءت) سورت ورکې له طاغوت څخه د بېزارۍ او د (الشعراء) سورت ورکې د (إلا الذین) څخه د مخکې او وروسته شاعرانو تر منځ د توپیر استعداد راپیدا نه کړ؟ داسې ښکاري لکه چېڅنګه چې له غربه را الوتي د فېشن طوفان یې مبارکه ږیره ترې ووهله د غسې یې شرعي علم او جهادي شخصیت هم د ډیموکراسۍ نم کش کړ.

سراجي خو د (ياقوتو غمی) وو خو افسوس چې د ډيموکراسۍ په بازار کې د بېدۍ په بيه لاړ. خو بيا هم وايم ګوندې چې د (عرفان نړۍ) ورکې ربښتيا هم د پښېمانۍ شعور راويښ کړی وي، او (له نورو څخه د دردوونکي بيلتون) احساس يې بېرته له راګرځېدلي کاروان سره بيا يو ځای کړي. خو د (عرفان نړۍ) هم يوه ډېره خطرناکه نړۍ ده، او کله کله خو سړی ورکې د (دمادم مست قلندر) تر سرحده هم رسېږي. نو ښه به دا وي چې سراجي بېرته (ملت د ابراهيم) شي، او د (بوتانو د ماتولو) په خپل زاړه عهد وفا وکړي. ځکه چې (له دنيا سره خو نه سکون ورغی، او نه يې له سرګردانۍ خلاص) کړ.

که جهادی ترانو ته يو څه په انتقادي نظر وګورو نو وينو چې جهادي ترانی د خپلو ټولو مثبتو اړخونو تر څنګ په اوسنۍ مرحله کې يو څه منفي اړخونه هم لري چې په لاندې څو کرښو کې ورته اشاره کوو.

د جهاد د بهير په دې وروستيو کې هر چا جهادي شعر ته مخه کړې ده، هم هغه خلك هم شعر وايي چې په شعر ويلو پوهېږی، او هغه خلك يې هم وايي چې نه پرې پوهېږي. بې استاذه او بې علمه شاعرۍ زور اخيستی. ډېر داسې د شعر ويلو شوقيان شته چې په شعر ويلو نه پوهيږي خو شعرونه وايي. او که يې په شعر کې څه خلل راشي نو د دې پر ځای چې کوم پاخه شاعر ته ورشي او خپل شعر ورباندې په علمي ډول اصلاح کړي بخپله لګيا وي او په خپله خپل شعر په ترنم باندې (کپي کشي) کوي. دغه وضعيت جهادی شعر له لاندې کمزوريو سره مخ کړی دی:

۱ – د شعري سويې ټيټوالی.

۲ – د رکيکو ترکيبونو، کمزورو الفاظو، بازاري اصطلاحاتو، او عاميانه تعبيرونو استعمال.

۳ – د قوی پيغام نشتوالی.

۴ – د سندرو د کمپوزېشن (آهنګ) تقليد.

او د شرم ځای خو لا دا دی چې د ښځینه سندرغاړو د سندرو تقلید هم رواج موندلی، او کله کله خو ځینې ترانه ویونکي جهادي ترانې د حماسي آهنګ پر ځای د هغو زړو کوچیانیو سندرو پر طرز هم وایي چې پخوانیو اناګانو به د خپلو لمسیانو په ودونو کې پس له نیمې شپې ویلې.

د دې مشکلاتو ښایې ډیر اسباب وی، خو مهم یې کېدای شي د ځوانو شاعرانو د علمي سویې ټیټوالی، له تکړه شاعرانو د استفادې نه کول وي.

او د دې تر څنګ د داسې یوې مرجع نشتوالی هم دی چې د نشر لپاره د معیاري او غیر معیاری شعر د تمییز چارې ترسره کړي.

په نارسمي جهادي ترانو کې یو بل لوی مشکل دا هم دی چې د فیتو، او سي ډیانو د محتوی د عنوان لپاره داسې نومونه غوره کېږی چې هېڅ جهادي پیغام او حماسي الهام نه لري. بلکې داسې نومونه ورته غوره کېږي چې سړی فکر کوي دا به د پېښور د ولسي سندرغاړو د فیتو او سي ډیانو نومونه وي لکه چپه بریتونه، د ارمانونو باران، د ارزوګانو شپیلۍ، د غزنې په زیارتونو، مسافر جانان، بې ننګه تربور، وړې وړې سلګۍ، واړه واړه ګلونه، د اباسین څپې، د ښاپیری ورغوی، د جانان کلی، زېړه وړانګه، زخمي لونګین، وربل یې شهیدشو، د غمونو غوبل او داسې نور ډېر نومونه چې هېڅ جهادي او اسلامي پیغام نه لري. او دا په داسې حال کی چې د فیتو محتوی یې تر نومونو ډېره درنه وي.

دا یو څو خبرې وې چې د جهادي ادب او اسلامي شعر په هکله مې په ذهن کې وې او پدې نیت مې د ادبي ذوق له لرونکو مجاهدو ورونو سره شریکې کړې چې موږ ټول د خپل حق جهاد او مېړني مقاومت د ادبي حق د ادا کولو په لاره کې خپل مسؤولیت د په ښه ډول رك کړو، او پرې نږدو چې ځوان شاعران او ادیبان مو په نا مطلوبو لارو لاړ شي.

# اصلي دښمن څوک دی، د دښمن پوځونه که د هغه افکار او نظریات؟

د اسلام او د کفر تر منځ دښمني د آدم علیه السلام له زمانې راروانه او په مختلفو مراحلو تېره شوې ده، خو تسلسل یې دوامداره دی. د تاریخ په اوږدو کې د اسلام په خلاف د کفر دښمنۍ په بېلابېلو وختونو کې خپل شکل او کیفیت ته تغییر ورکړی او پدې دښمنۍ کې یې هر ډول مادي او معنوي وسائل په کار اچولي دي. دا چې د الله تعالی د حق دین په خلاف د کفر دښمني په بېلابېلو شکلونو کې دوام لرلی نو الله تعالی هم په هره زمانه کې د هماغې زمانې د حالاتو او شرائطو مطابق د کفر او ګمراهیو په خلاف د مقابلې لپاره انبیاء او شریعتونه رالیږلي دي. او دا ځکه چې لکه څنګه چې د کفر په انواعو نظریاتو او فلسفو کې بدلون راځي نو د هغو د له منځه وړلو لپاره نوي دعوت، نوي تعامل او د بشریت د نوي نسل د لارښوونې لپاره د نویو پیغمبرانو رالیږلو ته هم ضرورت پېښ شوی چې دا سلسله په محمد صلی الله علیه وسلم تمامه شوې ده.
د رسول الله صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته د کفر د ټولو انواعو او اشکالو په خلاف مقابله او د هغو له شر څخه د انسانانو د ساتلو مسؤولیت د دې دین علماوو ته ورپاتې شو. او د اسلام په تاریخ کې چې تر کومه وخته د دین علماوو د اسلام د بیان تر څنګ کفر او د هغه ډولونه او نظریات هم خلکو ته ور معرفي کول نو خلکو به هم کفر پېژاند چې هم به یې خپل ځان او هم خپله ټولنه ورڅخه ساتله، او هم به یې د هغه د له منځه وړلو لپاره هلې ځلې کولې. خو له کله راهیسي چې د اسلام ښوونې په تعلیمي نصابونو کې د کفر د معاصرو انواعو، اشکالو او نظریاتو پېژندګلوي او د هغو په خلاف په معاصر شکل مبارزه ورکه شوه او د مسجد ملا، د مدرسې استاد، د منبر خطیب، د کتاب مؤلف او شارح او

د خانقاه مرشد د دې زمانې خلکو ته د کفر د معاصرو ډولونو لکه د سیکولریزم، ډیموکراسۍ، کمونیزم، هیومنیزم، لیبرالیزم، وضعي قوانینو، تنصیر، استعمار ، استشراق او د معاصر کفر د نورو ډولونو د نظریاتو او عقائدو په خلاف څه ونه ویل او و یې نه لیکل، او د هغو لوري ته د بلونکو اشخاصو او احزابو په خلاف یې علمي او فرهنګي مبارزې ته ځای ور نه کړ، نو هماغه وو چې د کفر دغه معاصر ډولونه او د هغو نظریات په خطرناك ډول د اسلامي نړۍ په ولسونو کې خپاره شول، او د نویو نسلونو په ملیونو ځوانان یا ورڅخه متأثره شول، او یا یې هم په صف کې ودرېدل او بېرته یې د اسلام په خلاف دښمني شروع کړه.
د معاصر کفر خطر پدې کې دی چې هغه اسلامي ټولنو د صریح کفر په نامه نه راصادریږي، بلکې هغه پداسې نومونو او شعارونو ځانته په اسلامي ټولنو کي ځای پیدا کوي چې په ظاهره یې له نومونو د کفر نښې نه ښکاري، او د آزادۍ، دیموکراسۍ، سیاسي او دیني پلورالیزم، پرمختګ، مساوات، ټولنیز بدلون، د بیان او عقیدې د آزادۍ، د بشر د حقوقو، د ښځو د حقوقو، عقلانیت، قانون مندۍ، نړیوالو قوانینو، نړیوالو اصولو، مدني ټولنې او دېته په ورته نورو نومونو د مسلمانو ټولنو پر ژوند ځان حاکموي، او دا ټول هغه اصطلاحات دي چې هر یو یې په غرب کې خپل فلسفي مفهوم او مدلول لري چې له یوې مخې د اسلام په مخالف قطب کې قرار لري.
په تېرې یوې پیړۍ کې کفارو او په خاص ډول د کمونیزم، سیکولریزم او لیبرالیزم د مکتب پیروانو خپلې فلسفې، نظریات، سیاسي او اجتماعي اصول او خپل فکري او معنوي ارزښتونه له بېلابیلو لارو او د بېلابېلو وسائلو په وسیله په مسلمانانو ومنل.
د دغو پردیو ارزښتونو او سیاسي او اجتماعي نظریاتو د تأثیر په نتیجه کې په اسلامي نړۍ کې داسې پردي پال نسلونه رالوی شول چې د سیاست، قوانینو، تعلیم، فرهنګ، اخلاقو، معنوي ارزښتونو، عسکریت

او اقتصاد په ډګرونو کې د غربیانو پر لاره روان شول. سیکولر غرب او کمونست شوروي اتحاد پدې وتوانید چې اسلامي نړۍ خپله داسې یوه مستعمره وګرځوي چې حکام او نظامونه یې پخپله خوښه په دوئ پسې روان شي.

د معاصر کفر د نه پېژندنې او د هغه په اړه د غفلت نتیجه پدې شکل کې هم راووته چې هغه ملا، طالب، مرشد او تبلیغي دعوتګر چې باید مسلمانان یې د معاصر کفر له خطرونو څخه خبر کړی وای د هغوئ لویه برخه نن په خپله لیبرالیزم، دیموکراسي، سیکولریزم، هیومنیزم، تنصیر، استشراق، وضعي قوانین، نړیوال کفري پوځي او سیاسي تړونونه او د کفر نور اوسني انواع او اشکال په علمي شکل نه پیژني، نو ځکه خو یې نه په خلاف مؤثره مبارزه کولی شي، او نه یې دغې مبارزې ته په خپلو اهدافو کې ځای ورکړی دی.

زموږ یوه لویه برخه ملایان او مرشدان که د یهودو او نصاراوو په هکله څه معلومات لري هم نو هغه هم هماغه د یونیم زرکلونو مخکني معلومات دي چې اوس په هغه شکل کې واقعیت نه لري. او دا ځکه چې د نن ورځي یهودیت، صهیونیزم او په هغو پورې اړوند نړیوالو او محلي تنظیمونو تقریباً ټوله نړۍ په یوه او یا بل شکل یرغمل کړې ده، او په نړۍ کې یې د ډېرو مهمو چارو واګې په خپل لاس کې نیولې دي.

همدارنګه نصرانیت هم اوس هغه پخوانی د صومعې او رهبانیت دین نه دی چې عقیده یې په یوه خاصه محدوده کې تأثیر ولري او بس. بلکه نصرانیت اوس په صلیبیت، تنصیر، استعمار او نړیوال نظام بدل شوی چې د نړیوالو کاتولیکو، ارتوډکسو، پروټسټنټ کلیساګانو او نورو نړیوالو مؤسسو له لارې یې په بېلابېلو شکلونو ټولې نړۍ ته ځان رسولی دی او د ملیاردونو انسانانو پر ژوندې خپل تاثیر پرې ایښی دی، خو زموږ د ملا، مدرسې، او د خانقاه د مرشد په نصاب کې د دغو لویو خطرونو په هکله هېڅ هم نشته.

دا چې په مکتب ، پوهنتون، مسجد ، مدرسه، خانقاه او تبلیغ کې زده کوونکو ته د کفر د معاصرو ډولونو او د هغو د نظریاتو په اړه څه نه تدرسیږي نو له دغو دیني او علمي مراجعو څخه یوه برخه فارغېدونکي هم عامو خلکو ته پدې اړه څه نه وایي. نو هماغه وي چې یوه لویه برخه عام خلك د دغو کفري نظریاتو په دامونو کې په یوه او بل ډول ښکیل شي.

د افغانانو د جهادي مقاومتونو په بهیر کې د ډېرو لویو افتخاراتو تر څنګ یوه لویه منفي نقطه هم شته چې تل یې جهادي مبارزې له هغې متأثره شوې دي، او هغه دا ده چې دوئ د دښمن په مقابل کې مقاومت کوي، خو د هغه له فکر او نظریاتو سره د مقابلې په ډګر کې جدیت او پوره وړتیا نه لري.

که د پورتنۍ مدعا د اثبات لپاره د مثالونو په لټه کې شو، نو ښه ډېر مثالونه به وینو چې ځینې یې په لاندې ډول دي:

۱ – افغانانو د چنګېزیانو په مقابل کې مقاومت کړی، خو د چنګیز د فکر او قانون په مقابل چې (یاسا) نومېده او حق او باطل یې ورکې سره ګډ کړی وو کومه مؤثره فکري مقابله نه ده کړې، بلکې افغانانو پخپله هم په خپل ژوند کې په داسې عرفونو او قوانینو ګذاره کړې چې شریعت، قومي نرخونه، رواجونه، عرفونه او خپلې انګېرنې او نظریات یې ورکې ګډ کړي دي. دین یې د عبادت په ساحه کې منلی، کتاب یې د ملا ګڼلی، او چې په خپلو کې سره په منازعاتو کې اخته شوي نو بیا یې د دې پر ځای چې قضیه یې د فیصلې لپاره یوازې شریعت ته وروړی وي، مقابل لورې ته یې ویلي دي چې (په شریعت راسره فیصله کوې او که په پښتو؟ دواړو ته دې تیار یم) یعنې که شریعت وي او که غیر شریعت دواړه منم.

۲– افغانانو د انګریزانو په خلاف ډېرې جګړې کړي دي او ډېرې قربانۍ یې ورکړې، خو د انګریز د عقیدې په خلاف چې (نصرانیت) دی، او د هغه د اخلاقو، سیاسي تفکر او فرهنګ په خلاف یې چې لیبرالیزم، استعماري توسعه غوښتنه، سیکولریزم او دیموکراسي ده هېڅ کومه

جدي، علمي، فکري او فرهنګي مبارزه نه یوازې دا چې کړې نه ده، بلکې ښه ډېر پوهان، مفکرین، سیاستمداران او د نظام او د قلم خاوندان یې د انګریزانو پر لاره روان شوي، او ولس ته یې په بېلابېلو ډګرونو کې اروپایي فکر ورتلقین کړي دی، او د هماغه فکر پر اساس یې نظامونه هم جوړ کړي دي.

۳- افغانانو د هندوانو او سکانو په خلاف جګړې کړې دي، د هندوستان ډېرې سیمې یې لاندې کړي، ډیلي یې فتحه کړې، خو د هندوییزم د کفر په خلاف یې چې د شرك تر ټولو بد ډول دی نه کومه علمي او فکري مبارزه کړې، نه یې د هندوییزم د عقائدو، اخلاقو، مشرکانه تمدن او د مسلمانانو په خلاف د هندوانو له بدو عزائمو په پراخه پیمانه د تألیف او فکري مبارزې له لارې راتلونکو ولسونو ته څه پرې اینښي دي. او د دې کار نتیجه یې دا راوتلې چې د دې پر ځای چې په افغانه ټولنه کې هندو او سك ته د مشرك، کافر، اهل ذمه او د اسلام د دښمن په سترګه وکتل شي، هندو ته (لالا) او سك ته (سردار) ویل شوي دي چې دواړه د عزت او درناوي الفاظ دي.

نه یوازې دا چې افغانانو ته د هندوانو فکر او فرهنګ د یو کفري او شرکي فرهنګ په حیث نه دی معرفي شوی، بلکې د نظام او با نفوذه سیاسي جهتونو له لوري په سیستماتیك ډول کوښښ شوی چې (مسلمان) افغانستان ته له (کافر) هندوستان سره د یو دوست هېواد په حیث پیوند ورکړل شي، او دلته د هندي فرهنګ د خپرېدو لپاره لاره هواره شي.

۴- افغانانو د روسانو په خلاف هم لوی جهاد او اوږده جګړه وکړه او د لویو قربانیو په ورکولو یې د الله تعالی په نصرت له هغوئ څخه خپله خاوره آزاده کړه، خو د کمونیزم د فکر او عقیدې په خلاف یوه علمي، فکري او فرهنګي مبارزه ونه شوه. زموږ ملا او مدرس ونشوای کولی چې د ولس لوستي نسل ته کمونیزم د (کفر) په حیث ورمعرفي کړي. همدغه علت وو چې په افغانستان کې کمونستان او د کمونیزم د فکر پلویان هم

ځانونه (مسلمانان) ګڼي او ټولنې هم هغوئ د کمونیزم د منلو له امله کافر نه دي ګڼلي.
د دې کار نتیجه دا راووته چې نه یوازې دا چې پرون موږ کمونستان له خپلې ټولنې څخه ګوښه نه کړای شول، بلکې نن هماغه کمونستان په بل شکل بیا په همدې مسلمانې ټولنې حاکمان دي، او دې ولس ته د کمونیزم په خلاف د درېدلو سزا ورکوي.
**د کفر د معاصرو ډولو د پېژندلو ضرورت:**
د کفر د انواعو او د هغه د نظریاتو پېژندل هم په هماغه اندازه ضروري دي لکه څومره چې د ایمان پېژندل ضروري دی.
په قرآن کریم کې الله تعالی له مسلمان سره د شیطان د دښمنۍ اعلان او پر دې دښمنۍ د هغه تأکیدونه بیان کړي دي.
شیطان کافر دی او د شیطان مکرونه، دسیسې، طریقې، انسان ته د ده د وسوسو او شبهاتو ور اچول، د ده افکار او نظریات او همدارنګه د ده د پیروانو عقائد او نظریات او د هغوئ ډلې، احزاب او نصابونه، سیاستونه، نظامونه، ادبیات او فلسفې ټول د کفر هغه انوع او اشکال دي چې په قرآن کریم کې الله تعالی پدې مقصد په تفصیل بیان کړي دي چې مؤمنان له هغو څخه ځانونه خبر کړي، د هغو په دامونو کې له ښکیل کېدلو ځان وساتي، او د هغو د له منځه وړلو لپاره تدابیر او لارې چارې وسنجوي، او مناسب وسائل په کار واچوي. نو له همدې امله څنګه چې د ایمان پېژندل ضروري دي تر څو مسلمان مؤمن شي او د ایمان د غوښتنو مطابق عمل وکړې، په همدومره اهمیت د کفر پېژندل هم ورته ضروري دي ترڅو په هغه کې له واقع کېدلو کې ځان وساتي او دښمني ورسره وکړي.

له عمر رضي الله عنه څخه نقل دي چې (ينقض عرى الإسلام عروة عروة إذا وُلِدَ في الإسلام من لم يعرف الجاهلية) ([1]). د اسلام کړۍ به يوه يوه ماتيږي کله چې په اسلام کې داسې څو وزيږي چې جاهليت نه پيژني.
عمر رضی الله عنه د جاهليت او کفر نه پيژندل د اسلام د کړيو د ماتولو سبب بولي، او دا ځکه چې کېدی شي چې د جاهليت د نه پيژندلو له امله به څوك په هغه کې واقع شي او بيا به له اسلام سره دښمنۍ کوي لکه پدې زمانه کې چې د معاصر جاهليت د افکارو منونکي د اسلام د دعوی له لرلو سره سره د اسلام او جهاد په خلاف په يوې بې رحمه جګړه کې اخته دي او د کفارو خوا يې نيولې ده.

د اسلام په تاريخ کې اسلامي امت له کفارو سره د مسلسلو جګړو له امله دومره ندی کمزوری شوی لکه څومره چې د کفارو د فرهنګ، عقائدو، دودونو، اخلاقو او سياست د راوارديدلو او په مسمانانو کې د هغوئ د فکري او اجتماعي فعاليتونو له امله کمزوری شوی دی.

د کفارو ناپوځي فعاليتونو په تېرو پنځو پېړيو کې په پرله پسې ډول اسلامي امت له سياسي، فکري، عسکري او اجتماعي انحطاط سره مخامخ کړ، او د حقيقي اسلام له تعليماتو څخه د ليرې والي او د جهادي روحيې د نه درلودلو له امله په مسلسل ډول د کفارو په مقابل کې کمزوری شو.

---

[1] – توجيهات ونصائح شرعية إلى شباب الصحوة الجهادية في تونس القيروان، النصيحة الرابعة، نشر( النخبة للإعلام)

د سیاسي، فکري،اجتماعي او پوځي انحطاط د دې اوږدې مودې په پای کې چې الله تعالی د کمونیزم په مقابل کې د افغانانو جهاد د مسلمانانو د بیا ویښتابه یوه ذریعه وګرځاوه او د دې جهاد د تأثیراتو څپه په اسلامي نړۍ کې په پراخه ډول خپره شوه او په لکونو مسلمان ځوانان بېرته اصل اسلام ته راوګرځېدل او د غرب او شرق د کفارو فکري ارزښتونه یې پردي او بې لارې وبلل، او له هغو څخه یې خپله بیزاري او نفرت اعلان کړ، نو کفارو او په رأس کې غرب دغه بهیر خپل تر ټولو لوی او خطرناك دښمن وګاڼه، او د هغه په خلاف یې په ټوله نړۍ کې فکري او پوځي جګړه پیل کړه.

په دې مرحله کې یوه برخه خلکو چې ځان اسلامي نهضتونه، منځلاري مسلمانان او دیموکرات اسلامي احزاب ګڼل د اسلام په سیاسي فهم کې د انحراف له امله او یاهم د ځینو سیاسي مصالحو په خاطر د کفارو مقابلې ته راونه وتل.

دغو خلکو هم د خپل فکري انحراف او یا هم د غرب د مادي او پوځي قوت له وېرې د جهادي بهیر له لارویانو څخه خپله لاره بېله کړه او له غرب سره د پیوند اخیستلو او د هغوی په نړیوال صف کې ځانته د ځای پیدا کولو په مقصد د جهادي فکر او تګلارې خاوندان توند لاري، بنسټ پالي، ترهګر او ورانکاري وګڼل، او پدې کار سره یې د دښمن ادعا تأیید او د هغه تله ور درنه کړه، چې دې کار هم د دوئ اسلامي مصداقیت تر پوښتنې لاندې راووست، او هم یې د امت ډېری ځوانان د جهادي بهیر پر افادیت شکمن کړل چې د دې دواړو و کارونو فایده د دښمن ځولۍ ته ورولوېده.

**د دښمن له فکر سره باید څه وکړو؟**

د دې لپاره چې لکه څنګه مو چې اسلامي ټولنه د کفارو له پوځي اشغاله آزادول غواړو د هغوئ له فکري اشغاله یې هم آزاده کړو نو د فکر،

فرهنګ او تعليمي نصابونو په ډګرونو کې دقيقو، سنجول شويو او د تطبيق وړ اقداماتو ته ضرورت لرو چې ځينې يې په لاندې ډول يادوو:
١– د هغه نظام او هغو سياسي او فکري جهتونو د نسکورولو او مقابلې لپاره بايد جدي، هر اړخيز او مسلسل کوښښ او مبارزه وشي چې په بېلابېلو ډولونو د کفارو د سياسي، اجتماعي او فلسفي افکارو د خپرولو تر شا ولاړ دي. او دا ځکه چې که دوئ په اسلامي ټولنه کې د پرديو د افکارو د خپرولو لپاره په پراخ ډول د کار تر شا ولاړ نه وي نو دښمن مو په مخامخ ډول هر فرد نشي مخاطبولی، او نه مو د ټولنې ډېر خلك تر خپل تاثير لاندې راوستلی شي. د دغې مقابلې لپاره په جهادي صف کې د پوځي او فکري مقابلې د وړتياوو پيدا کول تر ټولو ضروري کار دی.
٢– د ديني او دنياوي تعليم له دواړو نصابونو څخه بايد په پوره زيرکتيا او جديت ټول هغه مفردات او مضامين ووېستل شي چې د کفارو له فکر، فرهنګ، سياست او د هغو له اجتماعي او فلسفي ارزښتونو سرچينه اخلي. که چېرې دولت او رسمي جهتونه دغه کار نه کوي، نو لږ تر لږه په نارسمي مجال کې خو بايد دا کار په حتمي ډول ترسره شي.
٣ – د ديني او دنياوي تعليمي مؤسسو او مدارسو په نصابونو کې بايد د کفر او ګمراهۍ د معاصرو ډولونو، اشکالو او نظرياتو لکه کمونيزم، سيکولرزم، ډيموکراسۍ، ليبراليزم، هيومنيزم،نشنلزم، ګلوبلايزيشن، وضعي قوانينو او د غرب له لوري د جوړ شوي معتدل اسلام په د رد اړه مضامين داخل کړای شي او په معقول، مدلل او مؤثر ډول تدريس شي.
مسلمانان بايد په خپلو نصابونو کې د خپلو لوستونکو لپاره د کفارو د عقيدوي، سياسي، اخلاقي انحطاط معاصر او ښکاره مثالونه وړاندې کړي، ترڅو کفار هغوئ ته د آيډيل او مقتدا په حيث نه بلکې د داسې خلکو په حيث ورښکاره شي چې بايد هدايت وررسول شي او له کفر څخه يې نفرت وشي.

۴ – د مېډيا، ټولنيز ارتباط د وسائلو او د ژورناليزم مؤثر استعمال پدې لاره کې تر ټولو مهم کار دی. او دا ځکه چې دغه ذرائع په دې زمانه کې د پيغام رسولو او د اجتماعي ذهنيت د تشکيل مهم وسائل دي، او په يوه ځل په مليونونو انسان مخاطبوي او په هغوی کې مثبت او يا منفي تحول راولي. غرب د همدغو وسائلو له لارې ټوله نړۍ مسحوره کړې ده او په پراخه پيمانه يې د نړۍ ولسونه تر خپل تأثير لاندې راوستلي دي.
د امريکا په مقابل کې چې جهادي صف تر يوه حده د پيغام رسولو معاصر وسائل وکارول که څه هم چې په ډېر مسلکي شکل او پراخه پيمانه نه وو خو بيا يې هم په نړۍ کې د غرب جادو ورماته کړه، او د همدغو وسائلو له لارې يې نړۍ ته د خپلې بريا او د دښمن د ماتې شواهد وړاندې کړل.
۶ – د اسلام حقيقي تشريح او له هغه څخه د خرافاتو او انحرافاتو څنډل او له نورو نظرياتو سره د هغه د پيوند کارۍ مخه نيول بل هغه مهم کار دی چې د جهادي نظريې او اسلامي فکر خاوندان بايد ورته د خپل کار په اولوياتو کې ځای ورکړي. او دا کار ځکه ضروري دی چې کفار له همدغو عواملو څخه د اسلام په بدنامه او په هغه باندې د نويو نسلونو د باور د کمزوري کولو لپاره کار اخلي.
نن ورځ په اسلامي نړۍ کې او هم په افغانستان کې ډېر داسې څه د اسلام په نامه خپاره شوي چې هغه له ريښتينې اسلام څخه ډېر لرې دي. او هم له داسې ډېرو مهمو اسلامي اعمالو او عقائدو خلك غافل شوي او يا يې ورته په اهميت نه دي کتلي چې هغه په دين کې د لوړې مرتبې اعمال او عقائد دي. نو په کار ده چې د مسلمانان او بيا په خاص ډول د جهادي صف يوازې د کفارو جنګيالي په دښمنۍ ونه نيسي، بلکې اصلي دښمني مو بايد د دښمن له نظرياتو سره وي. او هر هغه څوك چې د دښمن د

افکارو ممثل وي هغه خپل دښمن وګڼو او له هغه سره د مناسب تعامل لارې وپېژنو.

د دښمن د افکارو، نظریاتو، فرهنګ او د هغه د ملګرو او پیروانو خطر ځکه د هغه د پوځونو او جنګیالیو تر خطره ډېر دی چې هغه خو به ماتې وخوري او وبه تښتې، خو افکار او ملګرې به یې په هر حالت کې دلته پاتې وي، او په سلګونو کلونه به دلته د اسلام او مسلمانانو په خلاف په یوه او بل ډول فعالیتونه کوي او په هر نسل کې به یوه برخه خلك د اسلام او اسلامي نظام په خلاف دروي.